


لوړو زده کړو وزارت
ننګرهار پوهنتون
ښوونې اوروزنې پوهنځی
د جغرافیې څانګه




# دنړۍ سیاسي جغرافیه

مولف : پوهندوی کریم الله
کال : ۱۳۹۷ هش

## د پیل خبرې

ترهر څه وړاندې د ښښونکي او څواکمن الله جل جلاله شکر ادا کوم چې را ته يې د خپل مسلک اړوند درسي کتاب د ليکلو او چمتو کولو وړتيا راپه برخه کړه. د هېواد د لوړو زده کړو محترم وزارت تر څتر لاندې د هېواد په ټولو پوهنتونونو او د لوړو زده کړو په موسسو کې د تاليف شوو درسي کتابونو په تېره بيا په پښتو ژبه کې د کمبود ستونزه تر ډېره شته ، خو په دې وروستيو کلونو کې ددغې تشې د ډکولو او دې ستونزې ته د پای ټکي د کېښودلو په پار له نېکه مرغه پام شوی دی. د هېواد پوهنتونونو د استادانو لخوا د پورته يادې شوې ستونزې د حل په موخه هڅه شوې چې په هر مسلک کې ارزښمن علمي اثار تاليف کړي تر څو چې له يوې خوا د محصلينو لپاره د درسي موادو او کتابونو ستونزه يو څه راکمه شي او له بلې خوا د ننني معاصرې نړۍ پوهنتونونو سره د هېواد پوهنتونونه په يوه ليکه کې ودروي.

د کتابونو د تاليف په دې لړۍ کې ما ته هم د ننګرهار پوهنتون جغرافيې څانګې لخوا د سياسي جغرافيې تر سرليک لاندې کتاب تاليف دنده راکړل شوه . چې د لوړو زده کړو وزارت د اکاډميکو چارو د انسجام لوی رياست د محترم مقام له لوري منظور شوه. نو له همدې امله ما هم د خپلو قدرمنو مشرانو استادانو او ملګرو په ځانګړې هڅونه ددې چارې د تر سره کولو جرات وکړ او ددې ستونزمن کار لپاره مې مټې راونغښتې چې دادی د همدې زيار پايله نن د هېواد محصلينو او هم مسلکو لپاره په مخ کې ږدم. متعال خدای جل جلاله دې زما دا چاره د اکاډميکو چارو په لړ کې په يو کوچني خدمت قبول کړي.

د سياسي جغرافيې دا کتاب د جغرافيې څانګې د درسي مفرداتو سره سم په نهه څپرکو کې ترتيب شوی دی، د يادولو ده چې د لويو او کوچنيو سرليکونو تر منځ منطقي تسلسل پکې په پام کې نيول شوی دی. همدارنګه د ځينو موضوعاتو د لا روښانتيا په موخه نقشې، جدولونه، ګرافونه، انځورونه او ضميمې په وړو ځايونو کې ځای پر ځای شوي دي.

ددې کتاب تالیف یوازې زما زیار نه ګڼم ، زه ددې کتاب تالیف د هغو درنو او مخلصو استادانو لارښوونې او مشورې ګڼم چې د کار له پیل څخه یې وړاندې او د کار په موده کې یې ماته کړي ، زه په خپل وار له دې ټولو درنو او فاضلو استادانو څخه مننه کوم .

په اخر کې لازمه ګڼم چې د ټولو هغو فاضلو او منلو استادانو څخه په ځانګړي توګه مننه وکړم چې ما سره یې ددې کتاب د تالیف پر مهال علمي لارښوونې او نېکې مشورې راکړي. په دې ځای کې لازمه ده چې لومړی د خپل د روند او فاضل استاد ښاغلي پوهاند حمیدالله (امین ) څخه هغه چا چې ددې کتاب تر تالیف وړاندې د مفرداتو په جوړولو او د کتاب په کره کولو کې یې لازمې لارښوونې راته کړي ، او پر دې سربېره یې ماته هغه کتابونه هم په واک کې راکړل چې ددې کتاب د تالیف لپاره ډیر اړین وو ؛ د مننې اظهار وکړم تر څنګ یې قدرمن استاد ته د سوکاله ژوند غوښتنه له متعال رب جل جلاله څخه کوم . په همدې ترتیب خپل قدرمن استاد پوهاند عزت الله خان څخه ډیره مننه کوم چې د کتاب په سمونه کې یې زما لارښونه کړې . په همدې ترتیب د خپل قدرمن استاد پوهنوال مستعلي خان نیازي څخه د زړه له کومي مننه کوم چې ددې کتاب په سمونه کې یې هم دریغ ونکړ . همدارنګه د درونډ استاد پوهنوال نقیب الله ثاقب څخه مننه کوم چې یاد کتاب یې په غور ولوست او لازمې سپارښتنې یې راته وکړې . په همدې توګه د قدرمن استاد پوهاند رویان او نورو ټولو استادانو څخه مننه کوم چې ددې کتاب په تالیف کې یې زما مرسته کړې ده .

په اخر کې لازمه بولم یادونه وکړم چې ددې کتاب په لیکلو کې له بېروني او داخلي معتبرو کتابونو ، مجلو ، ژورنالونو ، انټرنېټ بېلابېل سایټونو څخه ګټه اخېستل شوې ده ، ددې ټولو سرچینو له ښاغلو لیکوالو څخه له دې امله ډیره مننه کوم چې د دوی له لیکنو څخه مې د کتاب په تالیف کې د ماخذ په توګه ګټه اخېستې ده ددوی ټولو دې کور ودان وي .

درنښت

پوهندوی کریم الله

# لیکلړ

سرلیک مخ

## دویم څپرکی

## په نړۍ کې د سیاسي جغرافیې د منځته راتګ په اړه ټولیزې څرګندونې



## درېیم څپرکی

## د نړۍ سیاسي نقشې د بدلونونو پلټنه

## ثلورم څپرکی

## د سیاسي جغرافیې د بحث ور مسلې

## پنځم څپرکی

## نړیوالې سیاسي پولې

شپږم څپرکی

باندینۍ سوداګري

اوم څپرکی

نړیوالې اړیکې او باندینی سیاست



اتم څپرکی

داطلاعاتو سیاسي جغرافیه



نهم څپرکی

په نړۍ کې غوره سیاسي او اقتصادي ټولنې

## سریزه

سیاسي جغرافیه د ټولنیزو علومو له پهڅله کې د بشري جغرافیې یوه څانګه ده چې د سیاسي قدرت یا سیاست او جغرافیې تر منځ د اړیکو څېړلو سره مینه لري. سیاسي جغرافیه (Political Geography) او جیوپولیتیک (Geopolitics) یا جغرافیایي سیاست دواړه په جغرافیایي محیط کې د سیاسي ځواک د زیات رول څېړنې سره مینه لري. یوازې په دې توپیر سره چې په جیوپولیتیک یا جغرافیایي سیاست کې د جغرافیایي لاملونو اغېزا چونې د ځواک لرونکو په سیاسي تصمیم نیولو کې تر څېړنې لاندې نیسي، حال دا چې په ټولیز برخورد کې کېدی شي سیاسي جغرافیه (Political Geography) په جغرافیایي محیط کې د ځواک لرونکو د سیاسي تصمیمونو اغېزو په څېړنه بوخته وبنایو.

د جو پاینټر (Joe Painter , 2009) په وینا په دې وروستیو وختونو کې وګړي له سیاسي پلوه په یوه حساسه زمانه کې د نورو غټو بدلونونو سره ژوند کوي. نوموړی د یادې دعوې د ثبوت لپاره له ۱۹۸۴ـ۲۰۰۹ م کلونو پورې د نړۍ سیاسي نقشې کې د پام وړ سره پرتله کوي. د نوموړي په وینا په ۱۹۸۴م کال په نړۍ کې سوړ جنګ په چټکۍ سره روان و، د امریکا په متحده ایالاتو کې رونالد ریګن د دویم ځل لپاره د واک په ګدۍ کېناستو، په مسکو کې هم همداسې لوبې روانې وې او د شوروي په سرانو کې کنستانتین چرنینکو ته واک ورسېدو، په نړیواله کچه هم ناټو (North Atlantic Treaty Organization (NATO او وارسا تړونونه جوړ شوي وو او د امریکا متحده ایالات په لوېدیځه اروپا کې د ټولنیز امنیت (Collective security) تر سرلیک لاندې بهانې له امله د اتومي راکټونو په ځای پر ځای کولو لګیا و.

د اقتصاد دوکتورینو لخوا د ازاد بازار روحیه چې رونالدریګن او مارګریت تاچر لخوا د امریکا په متحده ایالاتو او برتانیا کې طرحه شوې وه، په ټولو صنعتي او پانګه والو هېوادونو کې د پیلېدو په حال کې وه. په چین کې د کلتوري انقلاب یوازې لس کاله وروسته د اقتصادي رېفورمونو تطبیقولو په چټکۍ سره زور اخېستی و. په ختیځه اروپا کې د

یوګوسلاویا په ګډون سیاسي ثبات واکمن و ، په داسې حال کې چې د نړۍ په زیاتو سیمو کې پراخې سیاسي لانجې روانې وې . په جنوبي افریقا کې د اپارتاید (Apartheid ) رژیم پر وړاندې پراخې مبارزې روانې وې او د جنوبي افریقا تورپوستي سیاسي رهبر نلسن ماندیلا تر ډیرې مودې پورې د زندان تورو کوټو ته ولوېد ، په منځنۍ امریکا کې د امریکا متحده ایالاتو په مرسته د نېکاراګوا د ساندانستانو (Sandanists ) په رېفورمي نظام کې سختې جګړې پیل وې .

په ۱۹۹۵م کال کې نړۍ له سیاسي پلوه بشپړه بدله شوه په سهیلي افریقا کې د اپارتاید او د سپین پوستو نظام پای ته ورسېد او نلسن ماندیلا د هغه هېواد جمهور رییس په توګه وټاکل شو . د شوروي اتحاد په نوم هېواد دنړۍ په نقشه کې ځای نه درلود ، په ختیځه اروپا کې نژادي لانجو د هغې سیمې نقشه بدله کړې وه ، د وارسا تړون منحل شوی و او د نړۍ د پاینښت په موخه د نړیوال نوي نظام لپاره جدي هڅې او خبرې روانې وې ، د خصوصي جوړونې پروګرام چې په افراطي بڼه د مارکیټ تاچر د حکومت لخوا په لاره اچول شوی و ؛ ټوله اروپا یې ونېوله . په چین کې د تیانانمن (Tiananmen May 1998 ) جاده یې روانو پېښو وښودله چې د هغه هېواد اقتصادي ریفورمونو څخه باید د سیاسي ازادیو انتظار و نه وېستل شي . په نېکاراګوا کې د ساندانستانو حکومت د متحده ایالاتو سره د اوږدو کلونو لانجو وروسته له منځه ووتو . په اخر کې باید یادونه وکړو چې د نړۍ هغه سیاسي بڼه چې په ۲۰۰۸م کې وه ، په نړۍ کې د پورته یادو شوو پېښو په پام کې نېولو سره په ۱۹۹۵م کې د نړۍ د نقشې سره زیات توپیر درلود .

په ټولیزه او دودیزه توګه بشري جغرافیه په ښاري ، ټولنیزې ، تاریخي او داسې نورو جغرافیو وېشل شوې ده ، له یادو څانګو هره یوه یې ځانګړې ساحه چې د جغرافیایي حقایقو یوه برخه تمثېلوي په بر کې نېسي . د یادولو ده چې بشري جغرافیې د وخت په تېرېدو سره د ځانګړو سیاسي او ټولنیزو شرایطو لاندې پراختیا موندلې ده ، سره ددې چې د بشري جغرافیې د بېلابېلو څانګو پراختیا او پرمختیا په یو ډول نه ده شوې .

سیاسي جغرافیه د بشري جغرافیې یوه بنسټیزه څانګه ده ، سره له دې چې ددې څانګې پوهانددې څانګې لپاره کوم ځانګړی تعریف نه لري ، مګر په ټولو تعریفونو کې مکان یا ځای (جغرافیه) او سیاست (قدرت یا حکومت) ته په سیاسي جغرافیې کې د څېړنو اصلي هستې په بڼه اشاره شوې ده . بناً د پوهانو لخوا د بېلابېلو تعریفونو په وړاندې کولو کې غوره لامل دادی چې یادو پوهانو سیاست او جغرافیه په متفاوته توګه تعریف کړي دي .

د جغرافیه پوهانو له ډلې څخه یو تن د (Derwent Wittlesey) په نوم د دویمې نړۍ والې جګړې په وخت کې سیاسي جغرافیه هېوادونو او ځمکو ترمنځ د اړیکو څېړنه وګڼله . نوموړي پوه جیوپولیتیک پر سیاسي جغرافیې ړومبی ګڼلو او په همدې ترتیب یې سیاسي جغرافیه د هېوادونو په چوپړ کې ورکوله .

یو بله جغرافیه پوه د ریچارد هارتشورن ( Richard Hartshorne ) په نوم په ۱۹۳۹م کال کې سیاسي جغرافیه د هېوادونو جغرافیه او یا د سیاسي متشکله واحدونو جغرافیه ونومول ه . ددې پوه په آند په سیاسي جغرافیې کې د بشري فعالیتونو سیاسي اړخونه د ځای د توپیرونو په پام کې نېولو سره تر څېړنې لاندې نیسي . نوموړي جیوپولیتیک چې هغې وخت کې یوازې په المان کې یې رول درلود د سیاسي جغرافیې څخه په بشپړه توګه بېله رشته او پرته له المانه د ټولو هېوادونو د جغرافیه پوهانو لپاره د نه منلو وړ وبښوده .

ځینو نورو جغرافیه پوهانو په تېره بیا امریکا د جغرافیه پوهانو ټولنې سیاسي جغرافیه د سیاسي چارو او جغرافیایي ساحو ترمنځ متقابل عمل یادوله . په داسې حال کې چې ځینو نورو لکه (Cohen and Rosenthal) بیا سیاسي جغرافیه د یوې سیمې د سیاسي پروسو د ممیزاتو د څېړنې سره د علاقه مندۍ علم ګڼي . د (Pacione) په وینا سیاسي جغرافیه پوه علاقه مند دی تر څو د جغرافیایي تصمیمونو پایلې او سیاسي چارې د هغو جغرافیایي عواملو چې د سیاسي چارو په پایلو کې اغېزمن وي ارزوي . یو بل جغرافیه پوه (Alexander 1963) سیاسي جغرافیه د هېوادونو په داخل کې د اداري واحدونو او د هېوادونو د سرحدونو او سیاسي واحدونو څېړنه بښودلې .

یو بل جغرافیه پوه (Joe Painter, 1995) سیاسي جغرافیه د پوهې هغه څانګه ګڼي چې موږ د هغې نړۍ سره بلدوي چې داخلي کشمکشونه، نوې مفکورې او ډینامیکې پولې د هغې ځانګړنې دي.

په لنډه توګه باید وواېو چې جغرافیه د ټولنیزو علومو څخه یوه پوهه ده چې په کې د جغرافیې او سیاست تر منځ ځو اړخیزې اړیکې ارزول کېږي. د پوهانو له ډلې څخه یو تن (Martin Jones, 2004) په آند جغرافیه او سیاست یو له بل سره د دوه اړخیزو اړیکو لرونکي مثلث په بڼه ښودلي، له دې مثلثونو څخه د یو په راس کې قدرت (Power)، پالیسي (Policy) او سیاست (Politics) ځای لري، په دې ځای کې قدرت هغه عنصر دی چې د پالیسۍ او سیاست پایښت تضمینوي، حال دا چې سیاست د ټولو هغو کړنو ټولګه ده چې د قدرت د ترلاسه کولو او یا ساتلو په اړه د ټاکنو، جنګ یا بلې کومې لارې څخه تر ګټې لاندې راځي. او پالیسۍ هغه پایلې دي چې د قدرت څخه په ګټې اخېستنې سره د هغې په لاسته راوړلو کې توقع کېږي. ددې دواړو پدیدو تر منځ اړیکې معمولاً په سیاسي علومو کې تر څېړنې لاندې نیول کېږي.

د بل مثلث په دریو سرونو کې فاصله یا مکان (Space)، په جغرافیه کې د څېړنې وړ مرکزي نقطه په دویم سر کې سیمه یا ځمکه (Territory) د یو ځانګړي ځای یو برخه د هغې د حدودو او ځانګړنو په پام کې نیولو سره او په دریم سر کې یې په مکان کې یو ځانګړی ځای (Place) قرار لري.




(۱).انځور: دجغرافيې او سياست اړيکې ښيي( ۴ : ۶).

سياسي جغرافيه‌دا مني چې ددې شپږو پديدو ترمنځ جبري اړيکې شتون لري ، په داسې حال کې چې دا اړينه نه ده چې د سياسي جغرافيې په هر څېړنه کې ټولې اړيکې په پام کې ونېول شي . په هر صورت په سياسي جغرافيه کې يو شمېر زياتې متقابلې اړيکې تر ارزونې لاندې نېول کېږي ، چې شونې ده ځينې يې کلتوري ، اقتصادي او تاريخي بنسټونه ولري او له همدې امله د جغرافيه پوهانو پام کلتوري ، اقتصادي او تاريخي جغرافيې ته ور اړوي . په بله ژبه که څه هم په جغرافيې کې د څېړنې ساحه ځانګړې ده مګر نه شو کولی د هغې ځانګړې پولې د جغرافيې د ټولو علومو او شاخونو څخه تثبيت کړو .

د يادولو وړ مطلب دادی چې په سياسي جغرافيه کې د بحث وړ موضوعات په بېلابېلو دورو کې يو ډول نه وو ، د بېلګې په توګه په دې وروستيو کلونو کې په زياترو هېوادونو کې د ښځو نهضت اغېزمنه ترينه او تر ټولو مهمه سياسي قوه ده چې البته سياسي مبارزې ، د نويو قوانينو وضعه کول ، د مجلو چاپ او نشرول او بلاخره د نوې سياسي فلسفې پراختيا د ښځې او نر د مساوي حقوقو د لرلو پر اساس(Feminism) د يوې پوهې يا د ښځو نهضت په بڼه چې پخوا د سياسي پديدې په توګه د سياسي جغرافيې په بحثونو کې نه شمېرل کېدې ،

او دا او دې ته ورته نور بحثونه زياتره په کلتوري او ټولنيزې جغرافيې کې لوستل کېدي . په داسې حال کې چې دا وضعه اوسمهال د بدلون په حال کې ده او يوه نوې او مهمه ساحه يې د ښځو د نهضت سياسي جغرافيې (Feminism Political Geography) په نوم د راڅرګنديدو په حال کې ده .

لنډه دا چې پخوا به سياسي جغرافيې کې د فزيکي محدودې او د هېوادونو د قدرت او د سياسي او نظامي سياليو ترمنځ اړيکې په نړيواله کچه څېړل کېدي ، مګر د شلمې پيړۍ په اوږد کې د وګړو څېړنې ته هم پام واړول شو . نن ورځ د سياسي جغرافيې پوهان سياسي او ټولنيزې مبارزې او ټولنيز خوزښتونه د تېر په پرتله ډېر جدي ګڼي . د کارګرو ، ښځو ، نژادي لږکيو ، معلولو وګړو حرکتونه او محيطي مبارزين نن ورځ د سياسي جغرافيې په برخه کې د علمي څېړنو غوره موضوعګانې جوړوي . اوسمهال پوهان د سياسي جغرافيې په برخه کې د سياسي ، اقتصادي ، ټولنيزو او کلتوري تېوريګانو څخه ګټه پورته کوي او له همدې امله د سياسي جغرافيې د پراختيا يو نوی پړاو د ځلېدو په حال کې دی .

# لومړی څپرکی

## دنړۍ سیاسي جغرافیې تحلیل او شننه

په دې څپرکي کې د سیاسي جغرافیې تحلیل او شننه کېږي ، نو لازمه ده چې لومړی جغرافیه ، سیاست او سیاسي جغرافیه وپېژنو او بالاخره په دوی پورې اړوند موضوعګانې روښانه شي .

جغرافیه د چاپېریال او انسان د اړیکو د علمي مطالعې څخه عبارت ده ، جغرافیه یوه لرغونې پوهه ده ، خو ددې پوهې سیاسي څانګه یوه نوې زېږېدلې څانګه ده چې په ۱۹مې پېړۍ کې رامنځته شوې ده . جغرافیه یوه لرغونې پوهه ده چې موخه یې د انساني نړۍ سم پېژندل او ورسره بلدتیا ده . هغه ځانګړنې چې یاده پوهه له نورو څخه ځانګړې کوي د نړۍ په بېلا بېلو سیمو کې د بدلونونو او په دوی پورې اړوندو مسایلو او موضوعاتو باندې راڅرخېږي .

جغرافیه د علمي طریقې له مخې د وګړو د استوګنې اړوند ځایونو ته ځواب برابروي چې ترڅېره په درې ډوله پوښتنې وي یعنې چېرته؟ ، ولې ؟ او څنګه ؟. جغرافیه تل هڅه کوي چې دې پوښتنو ته ځواب ووایي.

همدارنګه سیاست د ریاست او حکومت چارو په غوره توګه سرته رسولو ته وایي. سیاست د politics مترادفه کلمه ده او یوناني ریښه لري چې د Polis کلمې څخه یې سرچینه اخیستې ده او په یوناني ژبه کې Polic د ښار ــ دولت په معنی ده. نو له دې داسې معلومېږي چې سیاست ښار او دولت پورې اړوند چارو پر مخ بیولو ته ویل کیږي. په هر صورت هر ډول چارې او تدابیر چې د ځانګړو او دولتي کارونو د ترسره کولو په موخه کارول کېږي سیاست ورته وایي.

په اخر کې ویلی شو چې سیاسي جغرافیه د انساني جغرافیې یوه څانګه ده چې په جغرافیایي چاپیریال کې د ځواک او سیاست پر اغېزو بحث کوي.

د سیاسي جغرافیې او جغرافیایي سیاست (جیو پولیتیک) سره په لومړي برخورد کې، دې اصل ته په پام سره د ارزښت وړ دی چې دا دواړه بحثونه د جغرافیې او سیاست له اړیکو څخه غږېږي، له همدې امله غوره ده چې ددې اړیکو مطالعه ددې دواړو بحثونو یعنې جغرافیې او سیاست په لنډو تعریفونو پیل کړو.

# ۱.۱. لومړی. جغرافیه

## ۱.۱.۱. دجغرافیې پېژندنه

د جغرافیې اصطلاح یوناني ریښه لري چې له " جیو ګرافیا" څخه اخیستل شوې، عربان یې بیا "الجغرافیه " بولي. په فارسي کې د "جغرافیا" او "جغرافی" په نومونو کارول شوې، چې دواړه په یوه معنی سره دي. په انګلیسي ژبه کې (Geography) ورته ویل شوې او له دوه برخو یې ترکیب موندلی چې (Geo) د ځمکې او خاورې په معنی دی او (Graphy) د بیان، توضیح، تشریح، کښلو، ښودلو او د تحلیل په معنی دی (۲۰ : ۹).

جغرافیه هغه پوهه ده چې د ځمکې د کرې انساني چاپیریال څېړي ، یا داچې د ځمکې کره د انساني فضایي لیدلوري څخه مطالعه کوي . په بله ژبه جغرافیه د چاپیریال او انسان د اړیکو د علمي مطالعې څخه عبارت ده ، اګر که دا چاپیریال د استوګنې طبیعي چاپیریال وي یا انساني ــ اقتصادي د استوګنې چاپیریال او یا سیاسي او امنیتي ــ ستراتیژیک چاپیریال وي .

جغرافیه یوه لرغونې پوهه ده او له اساسي علومو یا پوهو څخه ګڼل کېږي ، خو ددې پوهې سیاسي څانګه یوه نوې څانګه ده چې د " ملت" او " ملتي حکومت" د مفهوم پیدایښت سره یو ځای په ۱۹مه پېړۍ کې منځته راغله ( ۳۲ : ۲۱) .

## ۱.۱. ۲ . د جغرافیې موضوع

دجغرافیې د پوهې موضوع په وروستیو دوه زره کلونو کې ، ځمکه او ځمکې پورې تړلې پدیدې وې خو په دې وروستیو کې د جغرافیې تعریف د نورو علومو په څېر سم او دقیق شوی دی ، بنا پر دې د جغرافیې موضوع په لاندې توګه توضیح کېږي :

- د یوې ټوټې په بڼه د ځمکې کرې پېژندل .
- د ځایونو بې حده ډولونو پېژندل .
- د ځمکې دکرې د توپیرونو ، ناانډولیو او تضادونو پېژندل .
- د ځمکې د سیارې د طبیعي څېرې (بڼې ) څخه جغرافیایي مطالعه کول .
- د ځمکې د کرې له خورو ورو پدیدو تحلیل او تجزیه .
- د ځمکې د سطحې د څېرو او پدیدو څېړنه چې سیده په انسان او د هغه په اقتصادي ، سیاسي ، فرهنګي او ټولنیزو چارو سره تړاو لري (۲۰ : ۱۳).

## ۱.۱. ۳. د جغرافیې په زده کړه کې غوره مفاهیم

جغرافیه هغه علم دی چې هڅه کوي د سیمو ځانګړنې او د ځمکې پرمخ د پدیدو او انسانانو خواره واره کېدل واضح کړي . جغرافیه د چاپیریال او انسان تر منځ متقابلو اړیکو

تـه ځـانګړی ارزښـت ورکـوي . جغرافيـه د چاپيريـال پېژنـدنې لـه ليـارې د ټـولنيز فرهنـګ پـه لوړولو کې غوره رول لري او د چاپيريال ساتنې او ګټې اخېستنې په اړه پوهاوی ورکوي . په بله ژبه جغرافيه هڅه کوي لاندې پوښتنو ته ځواب ووايي .

څه شی ؟

چېرته ؟

ولې هلته ؟

څه ډول منځته راغلی ؟

څه اغېزې لري ؟

څه ډول ورڅخه ګټه واخېستل شي ، تر څو دځمکې تعادل وساتل شي ؟.

څوک ؟

کله ؟

د جغرافيې د پورته اصلي موخو يادول د چاپيريال په سمه پېژندنې او د هغې دخوندی ساتلو او ورڅخه د سمې ګټې اخېستنې لامل ګرځي . د جغرافيې زده کړه بايد چې لاندې ورتيا په زده کوونکو کې منځته راوړي .

- دجغرافيــې د پــوهې درک او پــرې پوهېــدل ( د جغرافيــې پــوهې مفــاهيم او اصول ) .
- جغرافيايي مهارت .
- د جغرافيـايي موضـوعاتو پـه اړه د منطقـي فکـر کولـو د ځـواک منځتـه راتـګ ( ۲۰: ۱۴) .

ددغو اصلي موخو له امله د جغرافيې پوهه ددې لامـل ګرځـي ترڅـو چـې چاپيريـال پـه هر اړخيزه توګه وپېژنو او د ساتنې منطقي ګټې اخېستنې په اړه يې وپوهېږو.

همدارنګه د جغرافيې يو بل پوه ايرانی حجۀ الاسلام والمسلمين پـه دې اړه پـه لانـدې توګه څرګندونې کوي.

جغرافیه هم د یو علمي روش له مخې د هغو ځایونو لپاره چې وګړي په کې اوسېږي یو لړ پوښتنو ته ځواب وایي . جغرافیایي پوښتنې معمولاً د درې اساسي پوښتنو په طرح کولو پیل کېږي .

**الف : چېرته؟** (where?) : چېرته اساسي پوښتنه ده چې په جغرافیه کې مطرح کېږي ، ځکه د انسان ټولې چارې به په یوځای کې ترسره کېږي ، کلي ، ښارونه ، هېوادونه او لوېې وچې ټول ځایونه ګڼل کېږي چې چېرته؛ته ځواب وایي .

**ب .ولې؟** (Why?) : ځینې پدیدې په ځانګړو ځایونو کې ترسره کېږي ، یعنې په جغرافیه کې دویمه اساسي پوښتنه ولې ده ، چې ولې هلته تر سره کېږي . یعنې کوم لاملونه دي چې دا پدیده یې هلته منځته راوړې

**ج . څرنګه ؟**(How?) : څنګه ددې ټاکلي ځای پدیدې ددې ځای د وګړو پر ژوند اغېزې شیندي ؟( ۱۸: ۲۶).

## ۲.۱ . دویم. سیاست

### ۱.۲.۱ . سیاست پېژندنه

د سیاست معنی اصلاح کول او ښایسته کول دي ، د همدې لغوي معنی پر بنسټ دغه کلمه د ریاست او حکومت د چارو لپاره په زیاته توګه کارول کېږي ، دا ځکه چې د ریاست او حکومت موخه هم د خلکو د حالاتو اصلاح او غوره والی وي . نو په منظمه توګه د حکومت او ریاست د چارو پر مخ بېولو ته سیاست ویل کېږي ( ۱۹ : ۹ ).

سیاست د تدبیر او حکومتولۍ او د ټولنې دسیاست او مدیریت په کارونو کې له تدبیر څخه کار اخېستلو په معنی دی . په اروپا کې تر منځنیو پیړیو پورې سیاست د دین په چوپړ کې و او د هغه یوه برخه ګڼل کېده ، په بله ژبه تر اتلسمې پېړۍ پورې سیاست د انسان د ماورا الطبیعي ایډیولوژۍ په چوپړ کې و . د" ملت " ، " ملتي حکومت" ، " نړیوال

اقتصاد" او " نړیوالو اړیکو" د مفاهیمو په منځته راتلو سره په نوي او عصري پړاو کې سیاست په تدریج سره د اقتصاد په چوپړ کې شو او اقتصادي موخو ته د رسېدو لپاره و کارول شو (۳۲ : ۲۱).

دسیاست کلمه چې عربي رېښه لري د رعیت کارونو ته لاسرسی ، دخلکو د دنیا او اخرت کارونو سمول او د خلکو د ژوند اداري او تدبیرته ویل کېږ ي ( ۳۸ : ۵).

سیاست د عربي ژبې رېښه لري چې لغت کې "د اس ارامولو او قابوکولو" په معنی دی او یا هغې تګلارې ته وایي چې انسان یې په مخ کې لري . په انګلیسي کې"Politics" د برنامې ، کارکولو طریقې ، اساسي اصولو او قواعدو، د لاربښوونې اصول او داسې نورو په معنی دی.

سیاست د ټولنې د مدیریت یا حکومتولۍ په کارونو کې له تدبیرڅخه کار اخېستلو او تدبیر په معنی دی . د سیاست علم د هېواد په چارو کې تدبیر ته وایي په تېره چې د ملت د ژوند چارې سمې او رغوي، د سیاست موضوع ډېره پراخه ده چې په بېلابېلو موضوعاتو کې کېدای شي و کارول شي، مګر د سیاست د علم تعریف د هېواد اداري ته راجع کېږي(۲۰ : ۲۲).

په انګریزي ژبه کې دسیاست هم معنی لفظ( Politics )دی چې پوهان یې رېښه د یوناني ژبې له (Polis ) کلمې څخه اخېستل شوې ګڼي . په یوناني ژبه کې (Polis) د ښار ـ دولت یا ( City_ State ) معنی درلوده . له دې لفظي پېژندنې څخه داسې معلومېږي چې دسیاست د انګلیسي ژبې هم معنی لفظ ( Politics )په ښار او دولت پورې اړوندو چارو ته ویل کېږي (۱۰ : ۴).

د (Politics) کلمه اصلاً له یوناني کلمې څخه ده او د ارسطو له یوناني کتاب چې د حکومت او حکومت دارۍ په اړه یې لیکل شوی ورڅخه اخېستل شوې .یاده کلمه له آره لومړی په لاتیني کې د (Politique) کلمې او وروسته بیا په ۱۵۲۰م کال کې د انګلیسي (Politics )په بڼې یې بدلون موندلی . د ( Politic ) کلمه د لومړي ځل لپاره په ۱۴۳۰م کې په

انګلیسي ژبه کې کارول شوې وه ، البته د فرانسوي د ( Politique ) کلمه چې په خپله د لاتیني (Politicus ) او یوناني کلمې ( Politkus ) رېښه لري ؛ چې" د اتباعو یا ملکي وګړو" په معنی ده . د ( Politics ) کلمه د تابع او ( Polis ) د ښار په معنی اخېستل شوې ده ؛ چې یادې اصطلاحګانې له پخوا کارول کېدې .

په هر صورت په ټولیزه معنی هر ډول تګلاره او یا تدابیر چې د ټولنیزو او یا ځانګړو کارونو د ادارې او بهبود لپاره په کار اچول کېږي سیاست ګڼل کېږي ، لکه چې موږ داقتصاد سیاست ، نظامي سیاست او داسې نورو یادونه کوو. مګر په ځانګړې معنی سره هر کار چې دولت او مدیریت پورې تړاو ولري ورته سیاست وایي ، او یا د ملک دارۍ په چارو او یا په یوه ټولنیزه اداره کې د کارونو د تدابیرو نیولو ته سیاست ویل کېږي ( ۴ : ۱).

## ۲.۲.۱. دسیاست تعریف

د سیاست فن پر سوله ییزو او نا سوله ییزو اړیکو رهبري کول ، د وګړو ډلو او ګوندونو او همدارنګه د حکومتي چارو رهبري د یو هېواد په کور دننه او په نړیواله کچه د دولت او دولتونو تر منځ د اړیکو جوړول دي ( ۲۰ : ۲۷).

## ۳.۲.۱. دسیاست ځانګړنې

دسیاست فن لاندې ځانګړنې لري .

- دقدرت (ځواک) ترلاسه کولولپاره مبارزه .
- د ځواک ساتل .
- د ځواک ښودل او زیاتېدل (۲۰ : ۲۲).

### ۱ . ۲ . ۴ . دسیاست ډولونه

**ټولیز سیاستونه** : هغه اصول دي چې د ذیصلاح مراجعو په وسیله په هېواد کې وضع شوي وي او د یوې نمونې او لارښود په عنوان په ټولنه کې لازم اقدامات او فعالیتونه رهبري کوي (۲۰ : ۲۳).

د ابن خلدون له نظره دسیاست ډولونه په درې ډوله دي .

۱. ) حیواني سیاست . ۲. ) عقلي سیاست او ۳.) دیني سیاست .

**۱. حیواني سیاست** :هغه سیاست دی چې د عقل او قانون تابع نه وي ، یوازې د پا چا او د هغه د درباریانو تابع وي ، او دوی چې څه غواړي کوي یې ، او په دې توګه یې موخه دحیواني غوښتنو تر سره کول وي . دا ډول سیاست د پاچا هانو، امیرانو او پوځیانو په دیکتاتوري نظامونو کې وي .

**۲. عقلي سیاست** : هغه سیاست دی چې هوښیارانو ، پوهانو او د قوم شریفو وګړو یو قانون جوړ کړی وي او موخه یې یوازې دنیاوي ښېګڼې وي ، لکه مشروطه شاهي یاغیر اسلامي جمهوریتونه .

**۳. دیني یا شرعي سیاست** : هغه سیاست دی چې د اسلامي عقیدې او شرعي قوانینو پر اصولو ولاړ او موخه یې د دارینو اصلاح او فلاح وي .

دابن خلدون له نظره د شرعي سیاست ډولونه په لاندې توګه دي :

**الف . د ځان سیاست** : هغه سیاست دی چې هر چا دخپل ځان د کړو وړو د اصلاح لپاره اصلاحي تدابیر جوړ کړي وي او د هغې پلوي کوي .

**ب . د کور سیاست** : هغه تدبیرونه دي چې دخپل کور چارې پرې په ښه توګه پرمخ بېول کېږي .

**ج . د کورنۍ سیاست :** هغه تدبیرونه دي چې د کورني نظام چلولو په موخه په کار اچول کېږي .

**د . د وعظ او نصیحت سیاست :** هغه تدبیرونه دي چې د وګړو د اصلاح او سمون په موخه په کار اچول کېږي .

**ه . مدني سیاست :** هغه مقررات دي چې په هغې سره دحکومت نظم په ښه توګه چلول کېږي .

**و- د بوده وو سیاست :** هغه تدابیر دي چې پرې حیوانات (څاروي) تابع (ایل ) او روزل کېږي ( ۲۳ : ۱، ۲).

## ۱ .۳. درېیم . سیاسي جغرافیه

### ۱.۳.۱ . دسیاسي جغرافیې پېژندنه

د سیاسي جغرافیې لپاره ډیر تعریفونه د بېلابېلو پوهانو لخوا وړاندې شوي دي چې موږ یې ځینې په لاندې کرښو کې را اخلو .

سیاسي جغرافیه د جغرافیې هغه برخه ده چې د هېوادونو د حدودو او مرزونو او همدارنګه د داخلي او نړیوالو اړیکو ،د اداري او ټولنیزو تشکیلاتو او دې ته ورته نور موضوعاتو په اړه بحث کوي ( ۱۶ : ۵۵۷ ) .

سیاسي جغرافیه دانساني جغرافیې یوه څانګه ده چې په جغرافیایي چاپیریال کې دقدرت ( ځواک ) او سیاست اغېز اچولو او اغېز منلو مطالعه کوي ، له همدې ځایه ویلی شو چې سیاسي جغرافیه د سیاسي متشکله واحدونو په څېړنه بوخته ده (۲۱ : ۲).

سیاسي جغرافیه له ټولنیزو پوهو څخه ده ، او د بشري جغرافیې یوه څانګه ده چې د سیاسي قدرت یا سیاست او جغرافیې اړیکې څېړي ( ۴ : ۱).

سیاسي جغرافیه د انساني جغرافیې یوه څانګه ده چې په جغرافیایي چاپیریال کې دقدرت او سیاست د اغېزو اچولو او اغېزو منلو څخه بحث کوي . یا داسې هم ویلی شو چې : سیاسي جغرافیه سیمه ییز سیاسي ورته والي او توپیرونه او د هغو اړیکې له ټولو جغرافیایي ورته والو او توپیرونو سره څېړي ( ۲۰ : ۳۳ ) .

سیاسي جغرافیه د ځمکې سیارې د واحدونو او په انساني او اقتصادي جغرافیایي مسایلو کې د سیاسي فعالیتونو د رول څخه بحث کوي ( ۲۴ : ۱۸ ).

## ۲.۳.۱. دسیاسي جغرافیې موضوع

دسیاسي جغرافیې اصلي موضوع هېواد دی ، سیاسي جغرافیه سیاسي پدیدې د هېواد په داخلي فضاء کې تر بحث لاندې نیسي چې هېواد ، سرحد ، ملت ، حکومت او سرزمین مفاهیمو لرونکی وي (۲۰ : ۳۴ ). هېواد او هېواد پورې اړونـد مفاهیم ددې علـم اصلي موضوع ګڼل کېږي ، د هېواد مفهوم چې په سیاسي جغرافیې کې ځای لري له دریو لاملونو ملت ، حکومت او ځمکې څخه هېواد جوړېږي . بنا پردې په دې مفاهیموپورې تړلي ټول موضوعات لکه دفضا سیاسي تنظیمول ، ملت ، د قدرت مشروعیت ، قلمرو (محدوده ) ، امنیت او ... هېواد پورې تړلي مسایل دي چې نن ورځ په سیاسي جغرافیې کې څېړل کېږي (۲۱ : ۲).

## ۳.۳.۱. دسیاسي جغرافیې اصلي مفهوم

په سیاسي جغرافیې کې اصلي او مرکزي بحث ( هېواد + حکومت = State ) دی . " هېواد " (Country) د سیاسي جغرافیې په مطالعه او څېړنه کې د پام وړ اصلي مفهوم دی ، نورې هغه برخې او مفاهیم چې په دې پوهه کې د بحث او پام وړ دي ، په سیده او اغېزمنه توګه ؛ د" هېواد" د مفهوم سره تړاو پیدا کوي ، او په زیاترو برخو کې دا مفهومونه د هېواد له مفهوم پرته پایښت نه لري .

دپام ورې ده چې (هېواد + حکومت) = State د سياسي جغرافيې د بحثونو مرکزي هسته او اصلي بحث دی . په فارسي ژبه کې دواړو ( هېواد او حکومت ) مفهومونو ته دانګليسي ( State ) او د فرانسوي ( etat ) اصطلاح کارول کېږي . حکومت د قانوني تشکيلاتو سياسي جوړښت عمودي بُعد دی ، چې د وګړو د ټولنيزې خوښې پر اساس په يوه انساني ځانګړې ټولنه کې رامنځته کېږي چې " ځمکه " (سرزمين ) د هغې افقي ځېره ګڼل کېږي . په بله وينا سياسي ځمکه (هېواد) يوه فزيکي پديده ده چې عمودي بُعد ته يې حکومت ويل کېږي . له بله پلوه په فارسي ژبه کې د هېواد اصطلاح له جغرافيايي پلوه د انګليسي ژبې د ( Country )سره همغږې لري ، خو همدا مفهوم په ورځنۍ ګټه اخېستنه کې له ښار څخه بېرون ته = دغرونو لمنو د مفهوم په معنی کارول کېږي . ځينې مهال له سياسي پلوه د( State )مفهوم سره ورته والی کوي . ددې دواړو تر منځ توپير کول د جملې له بڼې معلومېږي ، د بېلګې په توګه د ( State ) اصطلاح په لاندې جمله کې د هېواد په معنی ده ، او دا چې د جملې بشپړ مفهوم په بشپړه توګه جغرافيايي اړخ لري ؛ د ( Country ) له اصطلاح څخه هم کيدی شي ګټه واخېستل شي ( ۳۲ : ۳۳ ).

The two states have defiend their boundaries in the middle of the Parsian Gulf.

يعنې دوه هېوادونو خپلې کرښې د فارس خليج په منځ کې ټاکلې وې .

په داسې حال کې چې په لاندې جمله کې( State ) يوازې سياسي مفهوم لري او د " حکومت " په معنی ده چې د ( Country ) اصطلاح نشي کولی د هغې پر ځای راشي .

The state in this country is known as Islamic republic of Iran.

يعنې حکومت په دې هېواد کې جمهوري اسلامي ايران پېژندل کېږي .

په اخر کې ويلی شو چې حکومت پر يوه ځمکه او ملت د حاکم قانوني تشکيلاتو د سياسي جوړښت عمودي بُعد دی ، چې د ملت په ټوليزه خوښه رامنځته شوی وي ، او هېواد يا ځمکه يا بوم د ياد شوي جوړښت فزيکي افقي ځېره ده . په بله ژبه " ځمکه " (سرزمين يا

Territory ) د حکومت فزیکي ښکارنده (پدیده) ده او حکومت د ځمکې تنظیم کوونکی قانوني او عمودي جوړښت دی ( ۳۲ : ۳۴ ).

### ۴.۳.۱. دسیاسي جغرافیې ځانګړنې

سیاسي جغرافیه د لاندې ځانګړنو لرونکې ده .

**۱. پلټنه یا هڅونه** : د سیاسي جغرافیې د ځمکې فضاء د دودیزې تقریباً ثابتې جغرافیې د فضاء په پرتله د تحرک او پلټنې لرونکې ده ، نو د دولتونو سیاستونو ته په کتلو ، او په ځمکو کې د مستقرو سیاسي نظامونو د جهت نیونې له امله د سیاسي جغرافیې د ځمکې فضاء د لوړ ارزښت لرونکې ده او تل یې د هېوادونو د سیاست سره یوځای بدلون کړی او نوې محدوده یې په‌کې رانغښتې ده (۲۰ : ۳۴ ) .

**۲ـ ځانګړې پوله بندي** : د سیاسي جغرافیې د سیمو پولې ،په دودیزې جغرافیې کې د دودیزو پولو برخلاف د هېوادونو د ځواک او سیمو د نفوذ پر اساس رامنځته کېږي ، چې دا کار هم د هېوادونو اقتصادي او سیاسي قدرت ته په کتلو سره د ستاینې وړ دی . په بله ژبه لویو قدرتونو (ځواکونو) لکه امریکامتحده ایالاتو خپلې پولې د خپلې ځمکې د سرحدونو ور اخوا جوړې کړي او د دولت بېرونۍ سیاستونو ته په کتلو نړیوال امنیت یې د امریکا داخلي امنیت ګڼلی . مګر کوچنیو او کمزورو هېوادونو لکه واتیکان خپلې سیاسي پوله بندي یې آن چې د خپلې ځمکې له سرحدونو هم کمې او تنګې دي ، ځکه چې د ایټالیې هېواد داخلي بدلونونو سره دغه هېواد تل د بنسټیزو او د پام وړ بدلونونو سره مخامخ وي .

**۳ـ دسیاسي جریانونو لوری نیونه** : د دودیزې جغرافیې برخلاف چې له شمال ــ جنوب ، ختیځ ــ لوېدیز او داسې نورو په څېر تشکیل شوې ده ، په سیاسي جغرافیې کې ډېره پاملرنه شما ل ـ جنوب او له مرکز ګرد چاپېره ته کېږي . ځواکمن دولتونه تل په خپلو سیاستونو سره د نړیوالې ټولنې ټول هېوادونه د ځان سره یوځای کړي او د یو ځایي او بېلو دولتونو په قالب کې په متقابلو او ګډو ګټو وېشل کېږي (۲۰ : ۳۴ ، ۳۵ ) .

## ۱.۳.۵ . د سیاسي جغرافیې څرنګوالی او قلمرو

سیاسي جغرافیه د انساني جغرافیې یوه څانګه ده ، نن ورځ د سیاسي جغرافیې د وروستي تعریف پر اساس د سیاسي جغرافیې ځانګړی رول د سیاسي پدیدو فضاء یې شننه او د سیاسي پېښو یا پروسو پېژندل دي . هارتشون په ( ۱۹۵۴م ) کې لومړی منسجم تعریف چې زیاترو جغرافیه پوهانو منلو په لاندې توګه وویلو : "سیاسي جغرافیه سیمهییز سیاسي ورته والي او توپیرونه او د هغوی اړیکې له ټولو جغرافیایي ورته والو او توپیرونو سره څېړي" (۲۰ : ۳۵).

د تیوریکي او سیستماتیکې جغرافیې په پراختیا سره یو نوي تعریف ته اړتیا لېدل کېده ، د ۶۰ مې لسیزې په وروستیو کې لیدونکو بدلونونو او وړاندې شویو تعریفونو دا علم رامنځته کړ. جکسون د سیاسي جغرافیې اساسي کار د هغو په سیمه ییزو ځایونو کې د سیاسي پدیدو څېړنه تعریف کړې ده .

دوه تنو نورو جغرافیه پوهانو د (کوهن اورزنتال) په نومونو سره دنوې مېتودولوژي څخه په ګټې اخېستنې سره یوه بېلګه طرحه کړه چې په ټولنه کې د انسان رول او د ځمکې سره یې د تړاو او له دې تړاو څخه لاسته راغلې پایلې یې د سیاسي نظام په تشکیل کې ښودلې . په دې بېلګه کې د انسان سیاسي رول د سیاسي ایدیولوژۍ ، سیاسي جوړښت او اجرایوي تصمیمونو په بڼه راڅرګندېږي . سیاسي پروسې د هغې د منځته راوړونکو ټولنیزو قوو څخه بېلې نه دي . دا چې دا ځواکونه سیاسي نهادونو ته شکل ورکوي او سیاسي پروسې هم د همدغو نهادونو له لیارې عمل کوي ، بناء پردې دا سیاسي نظام د ټولنیزو ځواکونو ، سیاسي پروسو او هغو پدیدو پورې تړلو جغرافیایي فضاء ( چې یو له بل سره ورته چارې لري ) څخه تشکیلېږي .

سیاسي نظام هم پراخه لمن لري چې دوه سرونه یې په بشپړه توګه خلاص او یا په بشپړ ه توګه تړلي نظامونه تشکیلوي . تقریباً ټولو نظامونو ددې دوو افراط او تفریط سرونو ترمنځ ځای نیولی . د سیاسي نظام د ځمکې سره سیده او پراخې اړیکې لري . خلاص

نظام داسې يو ليد لوری رامنځته کوي چې د متقابل پيوستون محصول وي ، د بېلګې په توګه کولی شو د استوګنې د فشرده نمونې ، له سرچينوڅخه د متمرکز ګټې اخېستنې بڼه ، د ورودي بندرونو پراختيا او د نړيوالو علومو پيدايښت څخه نوم واخلو. په ټرلو نظامونو کې داچې موخه يې پرځان بسيا کېدل دي ، ليد لوري په بڼه ښکاري . په دې نظام کې د استوګنې طرز په خواره واره توګه او له سرچينو څخه ګټې اخېستنې په غير متمرکزه او پراخه توګه ښکاري . په دې نظام کې د هېواد مرکزي برخو ته د شونتياوو او اسانتياوو په برابرولو کې زياته پاملرنه کېږي. او ملي شعارونه او نښې د نړيوالو نښوځای ناستې کېږي . بناءً دسياسي نظام د ترل او خلاص پراساس ،کولی شو دليدو وربدلونونو وړاندوينه يې وکړو(۲۰ : ۳۵،۳۶).

## ۶.۳.۱. دسياسي واحدونومفهوم

د سيمو تهوليز وېش سياسي واحدونه رامنځته کوي چې د ايالتونو يا سياسي هېوادونو ملي ځانګړتياوې په خپل ځان کې رانغاړي لکه د امريکامتحده ايالات او مکزيک هېوادونه يې د بېلګې په څېر ښودلی شو . چې په کور دننه يې ايالتي پولې غالباً انتخابي دي ، چې له دې امله نشوکولی چې د دوی ايالتي اداري د يوخپلواک جغرافيايي واحد په عنوان وکاروو (۲۰ : ۳۸).

## ۷.۳.۱. جيوپوليتيک يا جغرافيايي سياست

سياسي جغرافيه او جغرافيايي سياست يا جيوپولېتېک (Geopolitics) د يوې پوهې دوه بشپړ بحثونه دي چې د "په جغرافيايي چاپيريال کې د سياسي قدرت د زياتوالي پر رول بحث کوي " . په سياسي جغرافيې کې د انسان اغېز پر چاپيريال چې لاندې برخې لکه د کرښو کښل ، د ځمکو وېش او دسيمو په قياس د ملتونو او هويتونو پېژندل په کې څېړل کېږي . په تهوله کې کولی شو ووايو : سياسي جغرافيه عبارت ده له "پر معلومه جغرافيايي فضاء د انسان د سياسي تصمېمونو د اغېز شېندنې څېړنې څخه " ،لکه په جغرافيايي صحنې کې د يو هېواد سياسي وېش او سياسي کرښې .

حال داچې جیوپولیتیک په ټولیزه توګه کیدای شي داسې تعریف کړو : " دقدرت او ځواک لرونکو په سیاسي تصمیم نیولو کې د جغرافیایي لاملونو اغېزو څېړنې ته جیوپولیتیک وایي"، لکه د قدرتونو سیاسي موخو په مختته وړلو اړوند برنامو کې د طبیعي سرچینو او د جغرافیایي موقعیتونو او عوارضو د رول ارزول . په بله ژبه په داسې حال کې چې سیاسي جغرافیه د " هېواد " په چوکاټ کې د چاپیریالي ــ سیاسي زیاتېدونکي رول پر سر غږېږي ، جیوپولیتیک د" قدرت " د مفهوم په چوکاټ کې د چاپیریالي ــ سیاسي زیاتېدونکي رول څخه بحث کوي . له دې امله جیوپولیتیک عبارت دی له " دقدرتونو ترمنځ دسیالۍ او یا د مرستو د اړیکو څېړلو څخه ،د هغو امکاناتو پر بنسټ چې جغرافیایي چاپیریال یې په واک کې ورکوي. یا له هغو امکاناتو څخه چې په دې برخه کې یې له جغرافیایي چاپیریال څخه اخلي .

جیو پولیتیک تر ډیره تر ملت اخوا لید لوری لري ، حال داچې سیاسي جغرافیه تر ډیره د هېواد دننه موضوعاتو یا پدیدو پر رول څرخېږي ( ۳۲ : ۲۱ ، ۲۲) .

سیاسي جغرافیه (Political Geography) او جغرافیایي سیاست (Geopolitic) دواړه په جغرافیایي محیط کې د سیاسي قدرت پیدا کېدلو او زیات رول څېړلو سره مینه لري . خو یوازې په دې توپیر سره چې په جیوپولیتیک کې د جغرافیایي لاملونو اغېزې د قدرت لرونکو په سیاسي تصمیم نیولو کې تر څېړنې لاندې نیسي . حال دا چې په ټولیز برخورد کې کېدی شي سیاسي جغرافیه په جغرافیایي محیط کې د قدرت لرونکو د سیاسي تصمیمونو د اغېزو څېړنه وښایو ( ۴ : ۱).

جغرافیایي سیاست د جغرافیایي لاملونو په سیاسي تصمیم نیولوکې د قدرت لرونکو د اغېزو مطالعه ده ، لکه د عوارضو د رول ارزول ، طبیعي سرچینو او جغرافیایي موقعیتونو او سیاسي موخو د پرمخ بیولو په تړاو د برنامو جوړول .

جغرافیایي سیاست (Geopolitics) د سیمو پر اساس د ځواکونو ترمنځ د سیالیو یا همکاریو مطالعه ده چې جغرافیایي چاپیریال او جغرافیایي شرایط په واک کې لري ، چې په

دودیزه ډول د اطلاعاتو ، جغرافیایي تکنیکونو او لید لورو پر اساس د هېوادونو د بهرنۍ سیاست پر مسایلو را څرخېږي ، چې د کاربردي (عملي ) سیاسي جغرافیې یو ډول ښودل کېږي . له بله پلوه په نړیوالو حوزه یي مسایلو کې چې د جیوپولیتک مطالعاتو قلمرو دی ، په دودیزه توګه په نړیواله کچه د ځواکونو د مناسباتو په باره کې نړیوالو ځواکونو ته لارې پیدا کول او د هغې زیاتوالی بحث او څېړل کېږي (۲۰: ۳۸).

اوسمهال کې هغه بدلونونه چې په نړیوال سیاست کې رامخې ته دي جیوپولیتیک ته یې د بحث زیاتې ځانګې جوړې کړي او د سیاسي جغرافیې ځانګې رنګارنګ او تازه مفاهیم تر بحث لاندې نیسي . ددې ډول مفاهیمو څېړل او پلټل دحکومتولۍ په چاروکې زیاته مرسته کوي .

ځینو دجیوپولیتیک اصطلاح دسیاسي جغرافیې سره مترادف ګڼلې ده، مګر په حقیقت کې د هغې اصلي یا نړیواله معنی د ځواکمنو دولتونو ترمنځ د برترۍ اوتفوق د لاسته راوړلو لپاره سیالۍ دي ، ولې په ستراتېژیک بحث کې جیوپولیتک د هېوادونو د ارضي تمامیت په ساتلو سره اطلاق کېږي (۲۰:۳۹).

## لنډیز

جغرافیه د پوهو په ډګر کې هغه یوازینۍ پوهه ده چې د ځمکې د کرې انساني چاپیریال تر څېړنې لاندې نیسي. جغرافیه یوه لرغونې پوهه ده او له بنسټیزو علومو څخه شمېرل کېږي. د جغرافیې علوم په ټوله کې په دوه لویو ښاخونو وېشل کېږي چې یو یې فزیکي جغرافیه او بل یې انساني جغرافیه ده. سیاسي جغرافیه هم د انساني جغرافیې یوه څانګه ده. د زیاترو پوهانو په آند سیاسي جغرافیه ډېر لرغونتوب نه لري. دا جغرافیه هغه مهال راپیدا شوه چې په دې نړۍ کې د "ملت" او "ملتي حکومت" مفهوم راڅرګند شو، نو ویلی شو چې دا پدیده د ۱۹مې میلادي پېړۍ زېږنده ده.

سیاسي جغرافیه هغه پوهه ده چې د هېوادونو د حدودو، کرښو او همدارنګه د داخلي او نړیوالو اړیکو، د ادارې او ټولنیزو تشکیلاتو او دې ته ورته نورو موضوعاتو په اړه بحث کوي. د سیاسي جغرافیې د بحث وړ موضوع د هېواد هر اړخیزه څېړنه ده.

سیاسي جغرافیه او جغرافیایي سیاست یا جیو پولیتیک دواړه په جغرافیایي سیاست کې د سیاسي ځواک د پیدا کېدو او زیات رول څېړلو سره مینه لري، خو توپیر یې دادی چې جیوپولیتیک کې د جغرافیایي لاملونو اغېزې د ځواک لرونکو په سیاسي تصمیمونو کې څېړي. حال داچې سیاسي جغرافیه په جغرافیایي محیط کې د ځواک لرونکو د سیاسي تصمیمونو اغېزې څېړي.

## پوښتنې

۱.په ټولیزه توګه جغرافیه څنګه تعریفولی شئ !؟.

۲.د جغرافیې غوره موضوعګانې کومې دي ؟.

۳.جغرافیایي پوښتنې معمولاً د کومو بنسټیزو پوښتنو په طرح کولو پیل کېږي ؟.

۴. سیاست په لغت او اصطلاح کې څه ډول تعریفونه لري ؟.

۵.د Politics کلمه څه معنی لري او رېښه یې کومه ده ؟.

۶.سیاسي جغرافیه یعنې څه ؟.

۷.د سیاسي جغرافیې اصلي د بحث موضوع څه ده ؟.

۸.سیاسي جغرافیه او جغرافیایي سیاست یو له بله څه توپیر لري ؟.

۹.جیوپولیتیک اصطلاح څه معنی لري ؟.

۱۰.د state مفهوم څه دی ؟.

۱۱.د Polic اصطلاح څه معنی لري ؟

# دویم څپرکی

## په نړۍ کې د سیاسي جغرافیې د منځته راتګ په اړه تولیزې څرګندونې

که څه هم زیاتره د جغرافیې پوهان په دې آند دي چې سیاسي جغرافیه د ۱۹مې میلادي پېړۍ په وروستیو کې منځته راغلې ده، خو په جغرافیایي چاپیریال د سیاسي پرېکړو اغېزې په پخوا وختونو کې هم درک شوي. نو ویلی شو چې سیاسي جغرافیه هم په دوه غټو پړاوونو وېشل کېږي، چې یو یې تر ۱۹ مې میلادي پېړۍ وړاندې پېر او بل یې تر ۱۹مې میلادي پېړۍ وروسته پېر دی.

ځینې نور پوهان په دې آند دي چې د سیاسي جغرافیې تاریخ په درېو پړاوونو کې وېش شوی، یعنې د سیاسي جغرافیې د پرمختګ، ګوښه کېدو او را ژوندي کېدو پړاوونه.

له ۱۹۸۹ مېلادي کال را پدېخوا د نړۍ سیاسي جغرافیه کې غټ او ژور بدلونونه راغلل، نړۍ له دوه قطبیت څخه ووتله او سړه جګړه پای ته ورسېده او ځای یې بې ثباتۍ ته

پرېښودو . د هېوادونو په کورنيو چارو کې د ځينو ارګانونو لکه ملګرو ملتونو ټولنې او ناټو سازمان لخوا لاس وهنې عملاً پيل شوې.

## ۱.۲. په نړۍ کې د سياسي جغرافيې د منځته راتلو بهير

پوهان سياسي جغرافيه د ۱۹مې پېړۍ د وروستيو وختونو لاسته راوړنه ګڼي ، خو د جغرافيايي چاپيريال د بدلون او يا هم پر جغرافيايي چاپيريال د سياسي پرېکړو د اغېزو نښې موږ له ۱۹مې پېړۍ څخه پخوا په پخواني تاريخ کې هم موندلی شو، په همدې پار د سياسي جغرافيې تاريخي سير ځينې پوهان په دوو پيرونو کې لولي ، چې له نولسمې پېړۍ څخه پخوا وختونو کې د سياسي جغرافيې اثار او له ۱۹مې پېړۍ وروسته د سياسي جغرافيې اثار دي . چې هر يو يې په لاندې توګه په تفصيل سره ليکو.

۱. تر ۱۹مې پيړۍ د مخه سياسي جغرافيه.

۲. تر ۱۹مې پېړۍ وروسته سياسي جغرافيه (۱۰ : ۱۰ ).

خو ځينې پوهان بيا په دې آند دي چې د سياسي جغرافيې تاريخ د يوې علمي رشتې په توګه کولی شو چې په درېو دورو وېش کړو.

**الف** : دپرمختګ پړاو ( د۱۹ مې پېړۍ د وروستيو څخه تردويمې نړيوالې جګړې پورې).

**ب** : دګوښه کېدو پړاو (له ۱۹۵۰ ـ ۱۹۷۰ يمې لسيزې ).

**ج** : د را ژوندي کېدو پړاو ( له ۱۹۷۰ م لسيزې را وروسته ) .

البته کولی شو چې سياسي جغرافيې پورې تړلي آندونه له دې تاريخونو وړاندې وپلټو . ارستو (۲۳۰۰) کلونه وړاندې په لرغوني يونان کې د ځينو مسايلو لکه پولو ، مرکزي ښارونو او د وګړو د ځای ترمنځ تناسب تر مطالعې لاندې نيولي وو ( ۲۰ : ۳۹).

همدارنګه د ځينو نورو پوهانو په آند د تاريخي پلوه کولی شو سياسي جغرافيه په درې بېلابېلو دورو کې تر څېړنې لاندې ونيسو.

۱. د سیاسي جغرافیې د راپورته کېدو پړاو : چې د ۱۹مې پېړۍ له وروستیو څخه تر دویمې نړیوالې جګړې پورې پاینټ مومې .

۲. دانزوا (ګوښه کېدو ) او زوال پړاو : چې د ۱۹۴۰ او ۱۹۷۰ م لسیزو ترمنځ کلونه په بر کې نیسي.

۳. د سیاسي جغرافیې د بیا را ژوندي کېدو پړاو : چې له ۱۹۷۰ م لسیزې را وروسته کلونه رانغاړي .

که څه هم سیاسي جغرافیه په معاصره بڼه د ۱۹ مې مېلادي پېړۍ په وروستیو کې منځته راغله ، مګر سیاسي جغرافیې کې شاملو موضوعاتو تحلیل او مطالعه تاریخي مخینه لري . د لرغوني یونان پوه ارستو ۲۳۰۰ کاله وړاندې د هېوادو په مطالعه کې د چاپیریالي جبر مفکوره د پولوپه ټاکلو کې او همدارنګه د نفوسو او ځای ترمنځ تناسب تر څېړنې لاندې نیولي وو. همدارنګه نوموړي دیوښار پلازمېنې کېدو لپاره شرایط اړین ګڼل . ارستو په دې ډولو بحثونو کې د فزیکي چاپیریال په ماهیت په ځانګړي توګه په آب وهوا دیوټاکونکی لامل په توګه اشاره کړې ده.

تر ارستو درې پېړۍ وروسته ستراډو رومي ـ یوناني جغرافیه پوه په ۱۷ ټوکو کې کتابونه ولیکل چې د هماغه وخت د پېژندل شوې نړۍ توصیف و. ستراډو (Strabo) په خپلو مطالعو کې وارزوله چې د روم امپراتوري څنګه وتوانېده تر څو د یوې موءثرې ادارې په رامنځته کېدو د هغه هېواد مساحت د پراخوالي ستونزې سره سم مقابله وکړي . علاقه مندانو د هغو لاملونو د ارزولو په باره کې چې د یو هېواد بڼې او سیاسي سیمو څرنګوالي ته بدلون ورکوي آب وهوا وګڼله . ستراډو هم لکه د ارستو په څېر د خپلو ملي سختو تمایلاتو په درلودلو سره په دې باورو چې د هغه هېواد (یونان ) غوره آب وهوا او په پایله کې د حکومت کولو غوره تګلاره لري .

په منځنیو پېړیو کې علم او پوهه په اروپا کې د مذهب تر وړانګو لاندې راغله ، حال دا چې په اسلامي نړۍ کې جغرافیې د پام وړ پرمختګ کړی و.

ابن خلدون تاریخ لیکونکی ، فیلسوف او پېژندل شوی ټولنپوه له هغو لیکوالان څخه و ، چې له اوږدو سفرونو وروسته یې خپله مشهوره نظریه د ښار اوقبیلې په اړه واوروله . پر دې واحدونو یې د طبیعي چاپیریال رول د ټاکونکو لاملونو په څېر وښودلو . ددې نظریې له مخې حکومتونه د طبیعي قانون ( ودې ، بلوغ ، زړښت او منځه تلو ) څخه پیروي کوي . که چېرته له قدرت څخه تر لاسه شوې د فساد اواخلاقو کمزورتیا د یو هېواد د عمر د لمنځه تللو لامل نه شي دغه لاندې پنځه ګوني پړاوونه تېروي (۴ : ۸).

۱. داستبداد د دوران پیدایښت یا د ځواک انحصار پړاو.

۲. دخوښۍ پړاو.

۳. داسراف پړاو.

۴. دانحطاط ( وروسته کېدو ) پړاو.

۵. دلمنځه تللو پړاو.

د رونسانس پړاو چې له ۱۶ تر ۱۸ مې پېړۍ منځته راغی ، په دې پړاو کې چې ریفورمونه او نه سیاسي بې ثباتۍ یې ځانګړتیاوې وې ، فلسفې او علوموته په کې بیا پاملرنه زیاته شوه ، دبېلګې په توګه سر ویلیام پټې (Sir William petty) انګلیسي اقتصاد پوه په ۱۶۹۲ م کې په خپل اثر کې چې دآیرلینډ په اړه یې لیکلی و ، د برتانیې حکومت ځواک یې په آیرلینډ کې د هغه هېواد نفوسو او پراخوالي د لاملونو پر اساس ارزیابي کړ (۴: ۹).

اوس نو په لنډه توګه د سیاسي جغرافیې پړاوونه په‌لاندې توګه څېړو.

## ۱.۱.۲. د سیاسي جغرافیې د راپورته کېدو پړاو

المان نوی هېواد د یومتحد هېواد په توګه په ۱۸۷۱ م کال کې منځته راغی ، او د۱۹ مې میلادي پېړۍ په وروستیوکلونو کې د پروس د پاچاهانو تر لارښوونې لاندې یې هڅه

کوله ترڅو د برتانيې ، فرانسې ، روسيې ، اتریش او هنګري هیوادونو په څیر په یو نړیوال ځواک بدل شي ، مګر په مرکزي اروپا کې د جرمني جغرافیایي موقعیت چې په وچه کې راګیر و؛ په دې کې یې محدودیتونه لګول . ددې شرایطو لاندې د پراخوالي او ځواک ترمنځ د اړیکو تامینولو پام د المان منورې ټولنې او په تیره بیا فدریک راتزل (۱۸۹۴-۱۹۰۴م ) ته چې ځینو هغه د جرمني پلار ګڼلو راواړولو . دراتزل اساسي موخه د هغه په علمي چارو کې د المان پراختیا غوښتنې د لایل و. راتزل په خپلو ارزونوکې د داروین او د هغه د پیروانو له تکاملي تیورۍ څخه متاثره و. د همدې تیورۍ له مخې د ژوندیو جسمونو تکامل د هغه د چاپیریال تر اغیز لاندې رامنځته شوی . راتزل د سیاست په چاپیریال کې ددې تیورۍ په تطبیقولوسره هیوادونه هم د ژوندیو جسمونو په څیر ورته ګڼل ، او داسې استدلال یې کولو چې هیوادونه هم د خپل پایښت او دوام لپاره تاکلې حیاتي فضا ته اړتیا لري ، چې راتزل هغه حیاتي فضا (living space) یا(Lebensraum ) ونوموله . راتزل استدلال کولو چې هیوادونه هم لکه د ژوندیو په څیر د ورته (مشابه ) قوانینو لاندې پراختیاکوي ، او له همدې امله که چیرې د اړتیا وړ حیاتي فضاء ( د بیلګې په توګه د نفوسو د پراختیا په بڼه کې ) د یو هیواد لپاره کافي نه وي ، هیوادونه د مجبوریت له مخې د خپلې اړتیا وړ حیاتي فضا د تر لاسه کولو په موخه نویو ځمکو او سیمو په نیولو او اشغال لاس پورې کوي . راتزل د هیوادونو د پراختیا په تړاو اوه بیلابیل قوانین برابر کړي وه ، چې د هغې پر اساس د نورو سیمو نیول آن که په جنګ هم ختمیده د هیوادونو قانوني حق ګڼلو ، په دې اساس راتزل نه یوازې د جرمنیانو د پراختیا غوښتنې لپاره د علمي پلوه قانونیت ورکړ ؛ بلکې هغه یې یوه اړینه او طبیعي عملیه وګڼله . راتزل استدلال کولو چې د جرمنیانو لپاره زیاتې حیاتي فضا لاس ته راوړني لپاره یوازینۍ لاره د هغه هیواد لپاره په افریقا کې استعماري پراختیا ده ، ځکه چې ددې موخې لاسته راوړل په اروپا کې ددې لوې وچې د نفوسو د زیات تراکم له امله ناشونی و ( ۴ : ۹).

د راتزل نظریات وروسته د سویډني محافظه کارانو له ډلې د یو تن رودولف کجیلین (Rudolf Kjellen) ( ۱۸۶۴ - ۱۹۲۲ م ) لخوا تر ګټې اخیستنې لاندې راغلل. نوموړي د راتزل د تیورۍ څخه په ګټې اخیستنې سره د نړۍ هیوادونه ډلبندي او د نړۍ راتلونکی

ځواک يې د هغو د پراخوالي په پام کې نيولو له مخې وښودل . د ( Kjellen )يو له غوره کارونو څخه په خپلومقالوکې د( Geopolitiks ) اصطلاح کارول و، چې په ۱۸۹۹م کې په چاپ ورسېده . وروسته په جرمني کې په (Geopolitik )ته واړول شوه او په ۱۹۲۴م کال کې انګليسي کې په( Geopolitics ) وژباړل شوه ، او موخه يې ترې د سياسي جغرافيې هغه برخه وه چې په‌کې بېرونۍ اړيکې ، ستراتيژۍ او د هېوادونو سياست او ددې پوهې څخه د سياسي موخو لپاره ګټه اخېستنه تر بحث لاندې ونيوله . هغه مهال دسياسي جغرافيې يو بل ښوونځی د سر هال ًفورد ميکېندر ( Sir Hal ford Mekinder ) (۱۸۶۱ ــ ۱۹۴۷م ) په وسيله په انګلستان کې پراختيا وموندە . مکيندر چې د ( ۱۸۸۰ ـ ۱۸۹۰ م ) په لسيزه کې يې د اکسفورد په پوهنتون کې د پروفيسور په توګه دنده ترسره کوله د راتزل په څير د نوې سياسي جغرافيې بنسټ اېښودونکی پېژندل کېږي . مکيندر همدارنګه هڅه کوله تر څو د جغرافيې د پوهې غوره والی او ګټې ثابتې کړي ، په داسې حال کې چې د راتزل برخلاف د مکيندرنظريات د نړۍ په ستراتيژۍ او د ځواک توازن پورې اړوند موضوعاتو په تحليل چې د برتانيې باندينۍ پاليسۍ په طرحه کولو کې هغې ته اړتيا ليدل کېده ، متمرکز و(۴ :۱۰).

د امريکا په متحده ايالاتو کې الفردماهان (Alfred Mahan) ( ۱۸۴۰ـ۱۹۱۴ م ) د هغه هېواد د سمندري قواوو متقاعد افسر په دې آند و ، چې يو نړېوال او نظامي ځواک ته د رسېدو لپاره په سمندري ځواک تکيه کول پکارده . مکيندر په دې اړه د ماهان سره په يو آند نه و . نوموړی په دې آند و ، چې د جغرافيايي اکتشافاتو د عصر په پايښت سره د ځواکونو توازن هم تغيير خوړلی . مکيندر په خپله مقاله کې چې په ۱۹۰۴ م کال کې چاپ شوه ، تاريخ يې په درې بېلابېلو دورو ووېشلو .

۱). له کولمبوس څخه وړاندې پړاو چې په‌کې دوچې ځواک د ارزښت وړ و .

۲). د کولمبوس پړاو چې په‌کې سمندري ځوا ک د ارزښت وړ ګڼل کېدو .

۳)۔ له کولمبوس وروسته پړاو ، چې په هغې کې دسمندري ځواک ارزښت راټیټ شوی ، او د تکنالوژۍ په رامنځته کېدو او د اوسپنې کرښو په پراختیا سره په وچو کې د ډیرو لېږرو واټنونو د نښلولو شونتیا په اسانۍ سره میسر شوه ، او له همدې امله د وچې ځواک ارزښت یو ځل بیا زیات شو (۴ :۱۱) .

مکیندر دې ملحوظاتو ته په پام سره د نړۍ نقشه په درېیو سیاسي سیمو وویشله ، لکه چې په (۱.۲ نقشه ) کې ددې مطلب روښانتیا کېږي .




(۱.۲) نقشه : د میکندر په آند د نړۍ وېش (۴ :۱۱).

پـه پورتـه نقشــه کـې ۱) د بانـدني هـلا ل سـیمه (Outer Crescent) چـې د نـړۍ سمندرونه او افریقا او امریکا لوې وچې په‌کې رانغښتل شوي . ۲) د داخلي هلال سیمه (Inner Crescent) چې د اروپـا لـوې وچـې زیـاتې برخـې او د اسـیا جنـوب سـیمې پـه‌کـې شـاملې وې . او بـالاخره ۳) محـوري سـیمه (Pivot area) چـې د اسـیا او اروپـا (Eurasia) سیمو ته شامله وه (۴: ۱۰).

د مکیندر په آند هر هېواد چې دا محوري سیمه په واک او کنترول کې ولـري ، نړیـوال ځوا ک به وي . لومړۍ نړیوالې جګړې د مکیندر نظریات د ازمایښت لاندې ونېول او د هغو ارزښت یې روښانه کړ. مکیندر په خپل کتاب کې چې په ۱۹۱۹م کال کې چاپ شو د راتـزل نظریات یې تر نېوکو لاندې ونېول ، او یـو ځـل بیـا یـې د ځینـو کوچنیـو تغییراتـو پـه لرلـو سره

خپل نظریات وړاندې کړل ، مکیندر په دې کتاب کې محوري سیمه هارټلینډ (Hearth land) او د اروپا او اسیا لوې وچې یې نړیوالې ټاپو وزمې ونوموله . مکیندر همدارنګه د ختیځې اروپا په ارزښت تاکید وکړ، اوهغه یې د هارټلینډ د کنترول په زمینه کې او پر نړۍ د کنترول لپاره د ارزښت وړ وګڼلې . د مکیندر وړاندیز لویدیځې اروپا ته دا و ، تر څو د سولې ساتلو لپاره د روسیې سره چې پر هارټلینډ حاکمیت لري مساوي قدرت باید ولري ، او پرېښېدي چې جرمني او روسیه د شرقي اروپا د کنترول لپاره یو له بل سره متحد شي . د مکیندر نظریات د وارسای (Versailles) د سولې کنفرانس کې چې نوموړي په کې د برتانیې د پلاوي په توګه ګډون کړی و ، تر ډیره بریده په پام کې ونیول شول .

د ختیځې اروپا هېوادونه چې د روسیې او جرمني هېوادونو ترمنځ د حایل (Buffer) په توګه منځته راتلل ، تر ډیره بریده د مکیندر د وړاندیزونو له امله رامنځته شول . د مکیندر نظریات د امریکا متحده ایالاتو د بېروني پالیسۍ په طرحه کولو کې د سوړ جنګ (۱۹۴۵–۱۹۸۹م) پر مهال د ارزښت وړ وو.

د مکیندر له غټو تېروتنو یوه دا وه چې د خپلې تیورۍ په طرحه کولوکې یې د شمالي امریکا رول ناچیزه یا ډیر کم ګڼلو . او بله دا چې د هوايي ځواک ارزښت ته په کې کمه پاملرنه شوې وه ، د حیرانتیا خبره نه ده چې د مکیندر او راتزل نظریا ت یو ځل بیا د لومړۍ نړیوالې جګړې وروسته په جرمني کې را ژوندي شول (ایضاً :۱۰).

یو له هغو غوره پوهانو څخه چې د راتزل او مکیندر د نظریاتو تر اغېزې لاندې راغلی و ، جغرافیه پوه او نظامي افسر کارل هوشوفر(Karl Haushofer) (۱۸۶۹ ــ ۱۹۴۶ م ) و، چې په المان کې دنازي حزب د تشکیل په اوایلوکې د هغه غړیتوب درلود. نوموړي په ۱۹۲۴م کال کې د جیوپولیتیک مجله نشر کړه ، او وروسته یې په دې برخه کې یوه اکاډمي جوړه کړه . هوشوفر (Houshofer) د راتزل د(Lebensraum ) اصطلاح څخه په ګټې اخېستنې استدلال کولو چې له نفوسو ډک المان اړتیا لیدله چې په چکوسلواکیا او پولنډ کې د متفرقه نفوسو درلودونکې سیمې چې د المان په ګاونډ کې وې ؛ المان پورې وتړي . نوموړي د مکیندر له نظریاتو څخه په ګټې اخېستنې چې د ختیځې اروپا د کنترول په اړه یې

ویلي وو، داسې وړاندیز وکړ چې د روسیې ، جرمني اوجاپان ترمنځ دې اتحاد رامنځته شي ، ترڅو د برتانیې د امپراتورۍ په مقابل کې متبادل ځواک رامنځته شي .

په هره بڼه د المان جیوپولیتیک د نازي المان په وسیله د پولنډ او چکوسلواکیا نیولو کې د ستالین او هټلر د عدم تعرض قراد داد په لاسلیک کې د ارزښت وړ ؛ و . لږترلږه ددې مکتب په نشریاتو سره جرمنیانو د ذهني پلوه دې تجاوز ته چمتو والی وښودلو، او په همدې ترتیب د سیاسي جغرافیې شهرت هم د نازیانو تبعیضي او ظالمانه رژیم د پلوي په بنسټ تورن شو ( ۴ : ۱۱).

## ۲.۱.۲. د سیاسي جغرافیې د انزوا او زوال پړاو

د المان( Geopolitik ) د سیاسي جغرافیې پر علمي ارزښت هم منفي اغېزې واچولې او د جغرافیې پوهانو د دویمې نړیوالې جګړې وروسته کلونوکې هڅه وکړه ترڅو د سیاسي جغرافیې شهرت او ارزښت یوځل بیا منځته راوړي . د جغرافیې پوهانوله ډلې یو تن ریچارد هارتشورن (Richard Hart shorne) په ۱۹۵۰ م کال په سیاسي جغرافیه کې دعملي روش (functional Approach) وړاندیز وکړ، او ویې ویل : ترڅو په سیاسي جغرافیې کې د سیاسي ستراتېژۍ د بڼې ورکولو پرځای د هېوادونو داخلي فعاله (ډینامیک ) عملي او بېرونۍ فعالیتونه تر ډیره د پاملرنې وړ وګرځوي . په داخلي فعاله عملیه کې له مرکزه د تېښتې قوې (Center fugal forces) شاملې دي ، لکه مواصلاتي ستونزې او یا قومي تفاوتونه چې کېدای شي په هېوادونو کې د یو والي پرضد چلند وکړي او یا مرکز ته جذب قوې چې کېدای شي هېوادونو کې د یووالي په راوستوکې اغېزمن وي ، د حکومتي سازمان میکانېزم هم په دې برخه کې مطالعه کېږي . په باندنیو فعالیتونوکې (External functions) دیوهېواد اقتصادي ، د ډیپلوماتیکي او ستراتېژیکي اړیکې د یو بل هېواد سره د پام وړ وي( ایضاً: ۱۱).

هارتشون (Hartshone) ددې عملي تحلیل او ارزونه په سیاسي جغرافیې کې د عملي یا رسمي روش (Functional approach) په نوم یاده کړه . که څه هم په سیاسي جغرافیې

کې عملي روش له دویمې نړیوالې جګړې وروسته یو شمېر زیاتو جغرافیه پوهانو له خوا وکارول شو، مګر کولی شو له هغه څخه د ګټې اخېستنې شواهد آن چې د دوو نړیوالوجګړو په منځ کې په انګلستان او امریکامتحده ایالاتوکې مشاهده کړو . له دې ډلې یو پوه د (Isaiah Bawman) امریکایي و چې په خپل اثر کې یې له نوې نړۍ (The New world) په نوم په ۱۹۲۱ م کال کې له همدې روش څخه ګټه اخېستې وه . نوموړی چې د مکېندر په څېر د وارسای په مزاکراتو کې له ګډونوالو څخه و ، د نړۍ نوې نقشه چې له دې کنفرانس وروسته منځته راغله ؛ متزلزله ، ناثابته او نا عملي وښوده . نوموړي وویل چې ددې نقشې په جوړښت کې اقتصادي او ټولنیز لاملونه لکه طبیعي سرچېنو ته لاس رسی او د نفوسو وېش چې د نوموړي په آند د بې ثباتۍ اصلي لاملونه دي ، په پام کې نه وو نېول شوي . د بومن (Bawman) په آند پر تولیداتو کنترول او د خامو موادو توزیع ، د ځمکې وېش او د وګړو مهاجرتونه ، د مستعمراتو موقعیت او قیمومیت لاندې سېمې ، د سوداګرۍ موانع او په ترانزیتي او مواصلاتي کرښو کنترول ، د وګړو د اقلیتونو څرنګوالی او د هېوادونو په منځ کې سرحدي لانجې د نننۍ نړۍ تر ټولوسختې ستونزې دي.

په همدې ترتیب بومن په سیاسي جغرافیې کې د مطالعې لاندې موضوعګانې په علمي او عملي تحلیل متکي وګڼلې . په ټولیزه توګه له دوېمې نړیوالې جګړې وروسته سیاسي جغرافیې د سیمه ییزې جغرافیې سره ورته والی درلود، او د هغې وېرې سره چې له پخوا څخه یې شتون درلود په جغرافیې کې علمي څېړنو تشریحي او توضیحي بڼه درلوده او د علمي تیوریګانو له ویلو څخه په‌کې مخنیوی وشو . دې وېش د سیاسي جغرافیې په ساحه کې دوه منفي پایلې رامنځته کړې ، یوه دا چې سیاسي جغرافیه یې له تیوریکي انکشافاتو څخه لېرې وساتله او دویم دا چې سیاسي جغرافیه یې د انزوا په حالت کې پرېښوده . آ ن چې په پوهنتونونو کې له تحصیلي نصاب څخه وویستل شوه ( ۴ : ۱۱،۱۲).

## ۳.۱.۲ . د سیاسي جغرافیې د بیا ژوندۍ کېدو پړاو

د ۱۹۷۰م کلونو په لومړیوکې دوو عملیو د سیاسي جغرافیې په پراختیا کې غوره رول ولوبولو ، چې دا دوه عملیې عبارت دي له : په سیاسي جغرافیې کې د تیوریانو بیا پېژندل

او جغرافیې ته د سیاست بیا راګرځېدل ، چې همدې عملیو د سیاسي جغرافیې کې پراختیا کې غوره رول ولوبولو . په بیا را ژوندي کېدو سره یې د سیاسي پخواني روش یا منطقي او عملي روش (functional approach) له منځه لاړو ، غوره بېلګه یې د مقداري تاکنیزې جغرافیې (Qualitative Evectional Geography) را څرګندیدل و ، چې د ۱۹۶۰ م لسیزې په وروستیو کې منځته راغله ، دا یو نوښت و چې د مقداري جغرافیې پوهانو لخوا وشو .

وروسته جغرافیه پوهانو درک کړه چې سیاست د نړۍ ټولې برخې لکه هېوادونه ، محلي حکومتونه ، عامه لګښتونه او د پالېسیو طرحه کو ل هم د سیستم په توګه ارزول کېدی شي . په همدې ترتیب په سیاسي جغرافیې کې څېړنه او تدریس د سیمو پر ځای په مفاهېمو او موضوعاتو متکي شو (۴ : ۱۳).

په هره بڼه د ۱۹۶۰ م لسیزې په وروستیو کې د سوړ جنګ راکمېدل یو ځل بیا د سیاسي جغرافیې مینه والو د زیاتېدو لامل شو . د هېوادونو ترمنځ سیالي او د هغوی د مطالعې شوق په نړیواله کچه راکم شو ، او د هغوی پرځای په ټولو کچو یعنې له نړیوالو تر ملي ، سیمه ییزو او محلي کچو ، ګروپونو او وګړو ترمنځ د منازعاتو او ستونزو د زیاتې پاملرنې وړ وګرځېدل .

په سیاسي جغرافیې کې د علاقه مندۍ پر زیاتوالي سربېره په دې پړاو کې د ټولنیزې او اقتصادي جغرافیې په بحثونوکې د سیاسي لانجو توضیح چې دوه لسیزې وړاندې د انساني جغرافیې غوره څانګې یې جوړولې په سیاسي جغرافیې کې شامل شوې .

ددې دورې یو پوه داوید هاروي (David Harvey) په نوم په خپل اثر چې د ټولنیز عدالت او ښار (Social Justice and the City) تر سرلیک لاندې یې لیکلی و په کې دا وښوده چې په ښارونو کې استوګنه او دې ته په کتو سره چې کوم ځای کې استوګنه کوي اختلاف لري ، د نوموړي په آند فقیر او غني ، ښځه او سړی او بالاخره تور او سپین په نړۍ کې په بشپړه توګه متفاوت ژوند لري . نوموړی په همدې توګه زیاتوي چې په ښارونو کې د ځینو ګروپونو پر وړاندې پرله پسې تبعیض شتون لري . چې البته په ښاري ژوند کې د

سیاسي دایمي لانجو د پیدا کېدو لامل ګرځي، د بېلګې په توګه د یوې نوې پروژې په راتلو او یا د یو سرک په جوړولو سره د موجوده کورونو او یا تاسیساتو د تخریب لامل ګرځي چې په پای کې ددې سیمې د وګړو په ژوند او کسب کې بدلون راوړي چې ښایي د سیاسي ستونزو زیږنده شي (۴ : ۱۳،۱۴).

## ۲.۲. په نړۍ کې د سیاسي جغرافیې بدلونونو ته کتنه

له ۱۹۸۹م کال راپدېخوا د نړۍ په سیاسي جغرافیې کې اساسي بدلونونه رامنځته شول . د دوه قطبي نړۍ حتمیت اوقا طعیت او د سوړ جنګ دوران له منځه ولاړ او پر ځای یې بې ثباتي راغله . ددې بدلونونو رامنځته کېدو یو اصلي لامل د ځینو نهادونو لکه د ملتونو ټولنې او د شمالي اتلانتیک سازمان ( ناټو ) مداخلې د هېوادونو په داخلي چارو کې وې . نړۍ د شرقي تیمور ، کوسوو او عراق په هېوادونو کې د جګړو شاهده وه . دې ډول بدلونونو د نړۍ د بحراني او جګړه کې په بالقوه توګه ښکېل سېمو د بیا ارزونې اړتیا پیدا کړه (۲۰ : ۴۳ ).

سیاسي جغرافیه چې اوسمهال د انساني جغرافیې یوه غوره څانګه ګڼل کېږي ، د ځانګړي ارزښت لرونکې ده . دې جغرافیې له مطرح کېدو څخه یې ترنن پورې په مطالعاتي موضوعاتو او مطالعاتي مقیاس کې ډېربدلونونه لېدلي دي ، چې په لاندې توګه یې په لنډه یادونه کوو.

### ۱.۲.۲. په منځنیو پېړیو کې

په منځنیو پېړیو کې اروپا کې پوهه او علم د مذهب تر واګو لاندې راغلل ، په داسې حال کې چې په اسلامي نړۍ کې جغرافیې د سوداګرو ، مورخینو ، سیلانیانو او فیلسوفانو ترمنځ رواج پیدا کړ. ابن خلدون مسلمان مورخ ، فیلسوف او ټولنپوه یو له هغو لیکونکو څخه و ، چې له اوږدو سفرونو وروسته یې په هغه کتاب کې چې په ۱۴مه مېلادي پېړۍ کې یې د خپلو احوالو په شرح کې لیکلی و، د قبیلې او ښار په اړه یې ویلي او ددې واحدونو د طبیعي چاپېریال په رول د ټاکونکو لاملونو په توګه اشاره کړې (ایضاً: ۴۳ ).

### ۲.۲.۲. په نوولسمه پېړۍ کې

د نوولسمې پېړۍ په لومړیو کې ((کارل ریتر )) په برلین کې د دولت د رشد نظریه د هغې سره ورته خو په لږ توپیر مطرح کړه ، کومه چې ابن خلدون پنځه پېړۍ وړاندې وړاندې کړې وه . خو نوموړي دولت د یو ژوندي موجود سره د پرتلنې وړ ګڼلو ، له همدې امله د نوموړي نظریه د ارګانېزم په نوم يادېږي.

### ۳.۲.۲. په نوي پړاو کې

په نوي پړاو کې په سیاسي جغرافیې کې بدلونونه په الماني فردریک راتزل سره پیلېږي . راتزل په سیاسي جغرافیې کې د نوې مېتودولوژي او مفاهیمو په وړاندې کولو سره ددې پوهې پلار پېژندل شوی . د راتزل سیاسي جغرافیې کتاب لومړنی کتاب دی چې تر دې سر لیک لاندې په دې رشته کې لیکل شوی . همدارنګه راتزل د جیوپولېټیک اساس اېښودونکی هم ګڼل کېږي ، اګر چې په خپله یې یاده اصطلاح نه ده کارولې (۲۰ : ۴۴).

## لنډیز

که څه هم زیاتره پوهان سیاسي جغرافیه د ۱۹ مې میلادي پیړۍ زېږیدلې پدیده ګڼي ، خو زیاتره جغرافیه پوهان په دې آند دي چې سیاسي جغرافیه آن د یوناني لرغون پوه ارستو په اثارو کې هم څرګنده شوې ده . نوموړي پوه د چاپیریال اغېزو څخه د پولو په تړاکلو کې یادونه کړې ده ، همدارنګه یې د یو هېواد پلازمېنې جوړېدو لپاره ځینې شرایط اړین ګڼلي .

په لنډه ویلی شو چې سیاسي جغرافیې هم لکه د نورو پوهو په څېر ډیر پړاوونه تېر کړي دي ، چې د سیاسي جغرافیې د زېږیدو او راپورته کېدو پړاو ، د سیاسي جغرافیې د انزوا او زوال پړاو او بالاخره د سیاسي جغرافیې د بیا راژوندۍ کېدو پړاو څخه یادونه کولی شو .

د ۱۹۸۹م کال راپدېخوا سیاسي جغرافیې بېخي نوی رنګ غوره کړ ، چې د ډیرو بدلونونو شاهده وه . په نړۍ کې د دوه قطبیت موضوع ته د پای ټکی کېښودل شو او د سوړ جنګ لمن هم راټوله شوه . د ملګرو ملتونو ټولنې او شمالي اتلس تړون د هېوادونو لکه ختیځ تیمور ، کوسوو او عراق په داخلي چارو کې بربنډې لاس وهنې پیل کړې ؛ چې له امله یې د سیاسي جغرافیې لپاره د خلکو پاملرنه نوره هم زیاته شوه .

## پوښتنې

۱. سیاسي جغرافیه له کومه وخته راپیدا شوې ده ؟.

۲ـ د جغرافیې پوهانو د سیاسي جغرافیې تاریخي سیر په څو پیرونو کې ښودلی دی ؟.

۳ـ د سیاسي جغرافیې د تاریخ درې پړاوونه کوم دي ؟.

۴ـ ارستو د سیاسي جغرافیې له رول څخه څنگه یادونه کړې وه ؟.

۵ـ المان د یو متحد هېواد په توگه کله رامنځته شوی و او د څه لپاره یې هڅه کوله ؟.

۶ـ راتزل د جرمني د پراختیا لپاره یوازینۍ غوره لار کومه گڼله ؟.

۷ـ میکندر په خپله مقاله کې چې په ۱۹۰۴م کال کې چاپ شوه ، تاریخ یې په کومو دورو وېشلی و ؟.

۸ . د میکندر په آند هېوادونه باید د نړۍ کومه سیمه په واک کې ولري چې په نړیوال ځواک بدل شي ؟.

۹ـ د سیاسي جغرافیې بیا راژوندي کېدو پړاو د کومو غوره عملیو له امله رامنځته شو ؟.

۱۰ـ د سوړ جنگ تر ختمېدو وروسته د سیاسي جغرافیې مینه والو ته کومې موضوعگانې په زړه پورې شوې ؟.

۱۱. د ۱۹۸۹م کال را وروسته سیاسي جغرافیې کې کوم بدلونونه رامنځته شول ؟.

۱۲ـ په منځنیو پېړیو کې د سیاسي جغرافیې وضعه څنگه وه ؟.

۱۳ـ په ۱۹مه میلادي پېړۍ کې د سیاسي جغرافیې وضعیت څنگه و ؟.

۱۴ـ د فدرک راتزل په وسیله په سیاسي جغرافیې کې کومې کړنې شوې دي ؟.

# دریم څپرکی

## د نړۍ سیاسي نقشې د بدلونونو پلټنه

د نړۍ سیاسي نقشه تل د تغییر او بدلون په حال کې وي په تېره بیا دا بدلونونه د وستفالیا تړون، وین کنگرې، ورسای صلحې تړون، د ملګرو ملتونونو د ټولنې منشور او د شوروي اتحاد د ټوټه کېدو او د ختیځې اروپا کې د بدلونونو پر بنسټ ډېر زیات رامنځته شوي. اروپا کې په ۱۶ مې میلادي پېړۍ کې د نړۍ په سیاسي نقشې کې په سل ګونو خپلواک هېوادونو شتون درلود، خو په ۲۰ مې میلادي پېړۍ کې یې دا شمېر یوازې لس ګونو ته راښکته شو.

همدارنګه د دویمې نړیوالې جګړې وروسته په نړۍ کې د لویو امپراتوریو د ټوټه کېدو له امله د خپلواکو هېوادونو شمېر ډېر شو.

هغه عوامل او پروسې چې د نړۍ سیاسي نقشې په شتون او بدلونونو کې رول لري جغرافیایي کشفېدنې، جګړې او جیوپولیتیک غوره بدلونونه او د امپراتوریو ټوټه کېدل او د بېلتون غوښتنې لاملونه ښودل شوي دي.

په لنډو ويلی شو چې د نړۍ سياسي نقشه کې تل بدلونونه لېدل شوي دي ، چې زياتره دا بدلونونه ددې لامل شوي چې د نړۍ په سياسي نقشه کې د هېوادونو شمير کې کمی زياتی راولي .

د نړۍ سياسي نقشه له ۱۶۴۸ م کال څخه هغه وخت چې د وستفالي د تړون پر اساس د حکومتونو د حاکميت حق د هغوی د ځمکو په محدوده کې د اروپايي لويو قوتونو په وسيله په رسميت وپېژندل شو، تر ننه پورې د زياتو بدلونو سره مخامخ شوې ده . دا بدلونونه په يو ځانګړي لوري کې نه دي تر سره شوي ، په دې بڼه چې لومړۍ د خپلواکو سياسي واحدونو شمېر چې په زياته اندازه يې په اروپا کې شتون درلود؛ کم شو . د بېلګې په توګه په المان کې ۹۰۰ دولتونو شتون درلود ، چې د وستفاليا له سولې وروسته يې شمېر تر ۳۵۵ دولتونو او په ۱۸۱۵ م کال ( د وينا کنګرې ) پر بنسټ يې شمېر يوازې ۳۶ دولتونو ته راښکته شول او په ۱۸۷۱ م کال کې يو واحد دولت شو .

په اروپا کې په ۱۵۰۰م کال کې د ۱۵۰۰ په شاوخوا کې سياسي خپلواکو واحدونو شتون درلود ، چې په ۱۹۰۰ ميلادي کې دا شمېر ۲۰ هېوادونو ته راښکته شو ، په دې ترتيب اروپا د نړۍ په نورو سيمو نوی نظم تحميل کړ. له بله پلوه د شلمې پېړۍ له لومړيو څخه ، په ځانګړې توګه د دويمې نړيوالې جګړې وروسته د نړۍ د لويو امپراتوريو په ټوټه کېدو سره د خپلواکو هېوادونو شمېر د ورځې په تېرېدو سره زيات شوی دی ، د بېلګې په توګه د لومړۍ نړيوالې جګړې وروسته د خپلواکو هېوادونو شمېر ۶۷ هېواده و ، په داسې حال کې چې دا شمېر د دويمې نړيوالې جګړې وروسته تر ۸۲ ، او په ۱۹۷۶م کال کې ۱۶۸ ته ، په ۱۹۹۳م کې ۱۸۹ او په ۲۰۰۰ م کال کې تر ۱۹۱ هېوادونو پورې ورسېدو . دلته بايد لټه وشي تر څو هغه پروسې او عوامل چې د نړۍ سياسي نقشې په شتون او بدلونونو کې يې رول لرلی وڅېړل شي .

دا چې هره نقشه د هېوادونو وضع په يوه خاصه موده کې راښيي او دا نمونې تل په بدلون کې دي ، هڅه کېږي چې هغه لاملونه چې د نړۍ د سياسي نقشې په بدلون کې ونډه لري او هغه پړاوونه چې د نړۍ سياسي نقشې طی کړي دي او تر اوسنۍ وضعې رسېدلي

دي د ځيړنې او پلټنې لاندې ونيسي. په ټوليزه توګه هغه پروسو چې د نړۍ سياسي نقشې په موجوديت او بدلون کې يې رول لرلی په لاندې توګه يې له نظره تېروو.

## ۱.۳. جغرافيايي کشفېدنې

د اروپايانو په وسيله د لېرې پرتو سېمو او لويو وچو کشفېدنې او په دوی پسې د اروپايي حکومتونو دعوې، چې پر هغو ځمکو د مالکيت موجب شوې دي، د نوي زيلاند او استراليا په څېر هېوادونو موجوديت د نړۍ سياسي نقشې پر مخ توجيه کوي ( ۳۷ : ۳۶).

## ۲.۳. جګړې او جيوپوليتيکي غوره بدلونونه

جګړه او جيوپوليتيکي غوره بدلونونه څه په پخوا او څه په اوس مهال کې د ګټونکو قدرتونو د ځمکنۍ پراختيا او د ماتې خوړلو هېوادونو د ځمکنۍ تنګتيا لامل شوي دي ( ۲۰ : ۶۶) او ( ۳۷ :۳۶).

## ۳.۳. د امپراتوريو ټوټه کېدنه

د امپراتوريو د ټوټه کېدنې او د خپلواک دولتونو د منځته راتلو په پايله کې د نړۍ په سياسي نقشه کې غوره بدلونونه رامنځته شوي، په پخوا وختونوکې د اترېش. هنګري د امپراتورۍ او د فرانسې او ايټاليې مستعمراتي امپراتوريو ټوټه کېدل چې اسيا او افريقا کې يې د پام وړ پراختيا درلوده ،او په دې وروستيوکې د شوروي اتحاد په ټوټه کېدو او د يوګوسلاويا په بېليدو سره د نړۍ سياسي نقشه کې پراخ بدلونونه منځته راغلي دي ( ۳۷ : ۳۶).

## ۴.۳. د بېلوالي او بېلتون غوښتنې پروسې

بېلتون والی تحميلي لامل يا پروسه ده ،چې د ګټونکو قدرتونو او نړيوال سياست لخوا ترسره کېږي، همدارنګه د تحميلي پولو د پيدايښت موجب ګرځي، لکه د المان وېش په دوو (ختيځو او لوېديځو ) واحدونو، کوريا په دوه شمالي او جنوبي واحدونو، وېتنام په

دوو واحدونو (شمالي او جنوبي) او د انګليس او فرانسې د تصميمونو د محصول په توګه په منځني ختيځ کې د عثماني امپراتورۍ د ځمکو وېشلو او د لاسپوسو هېوادونو منځته راتلل ، دا ټول د بېلتونوالي د پروسو پايلې وې . سره ددې چې بېلتون غوښتنې د نشنليزم او قوم پالنې اساس او همدارنګه د يوې ډلې د غوښتنو محصول دی، چې د ملي دولت د جوړېدو لپاره هڅې کوي . د آيرلينډ جمهوري دولت منځته راتګ د آيرلينډ د خلکو د غوښتنو او له انګلستان څخه د بېلتون غوښتنې په پايله کې و . په همدې توګه د بنګله دېش منځته راتګ د ختيځ پاکستان د خلکو غوښتنه وه چې له لوېديز پاکستان څخه يې بېلتون غوښتو ( ۳۷ : ۳۶) .

نن ورځ د دوو المانونو (۱۹۹۰) ، دوه وېتنامونو او دوه يمنونو بيا يوځای والی د وګړو د يو ځای‌توب غوښتنې پايله وه چې د پرديو په اشاره او غوښتنه بېل شوي وو. ځينې وخت دا دوه د بېلتون غوښتنې او يو ځای توب لاملونو يا پروسو په نوبتي توګه د وخت په تېرېدو سره جالبې کړنې درلودې او د سياسي پولو د بدلون لامل شوي . په دې اړه کولی شو د اريتره او بالتيک هېوادونو ته د بېلګې په توګه اشاره وکړو.

د اريتره هېواد په ۱۸۸۹م کال کې د ايټاليا هېواد تحت الحمايه شو، وروسته د ايتوپې هېواد سره د اتحاد له امله د فدراسيون په بڼه رامنځته شو، يو څه وخت وروسته د ايتوپيا په متمرکز دولت کې ادغام شو او نن ورځ يو ځل بيا د نړۍ سياسي نقشې پر مخ د يو خپلواک هېواد په توګه را څرګند شوی ( اريتره د ۱۹۹۲م کال په دسمبر کې رسماً خپلواک شوی).

همدارنګه د بالتيک هېوادونه يعنې استونې ، لتوني او ليتواني چې لومړی په ۱۹۱۸ م کال کې خپلواک شول ، وروسته په ۱۹۴۰م کال کې د روسيې واک کې پرېوتل او د دويمې نړيوالې جګړې په پای کې د شوروي اتحاد د پنځلس ګوني جمهوريت جز وګڼل شول . د شوروی اتحاد له ټوټه کېدو وروسته لومړني جمهوريتونه وو چې خپل استقلاليت يې اعلام کړ او په هيڅ وجه دې ته چمتونه شول چې(Common wealth of Independent States (CIS مشترک المنافع خپلواک هېوادونو په ليکه کې وشمېرل شي .

د اروپا په نقشه کې هم دې ډول لاملونو یا پروسو په نوبتي توګه چارې ترسره کړې ، په تېر وخت کې اروپايي لويو ځواکونو لکه المان ، فرانسې او انګلستان په منځ کې لانجو او بېلتون ، نن ورځ خپل ځای د اروپا وحدت ته ورکړی او له ډېرو اړخونو يې د هېوادونو تر منځ پولو ارزښت تر ټولو ټيټ حد ته رسولی.

پورته يادو شوو لاملونو ته په کتو سره کولی شو پنځه لاندې مهمې زماني مقطعې وڅېړو . چې د هغو په تېريدو سره د نړۍ په سياسي نقشه کې غوره بدلونونه رامنځته شوي ( ايضاً : ۳۷) .

۱. د ۱۶۴۸ م کال ؛ وستفاليا تړون .
۲. د ۱۸۱۵م کال ؛ ويانا کنګره .
۳. د ۱۹۱۸م کال ؛ د وارسا صلحې تړون .
۴. د ۱۹۴۵ م کال د ملګروملتونو د ټولنې منشور.
۵. د ۱۹۹۱ـ ۱۹۹۲م کلونو د شوروي اتحاد د ټوټه کېدو او د ختيځې اروپا بدلونونه .

## ۳ . ۵ . د نړۍ په سياسي نقشه کې د بدلونونو رامنځته کېدو مهمې زماني برخې

دنړۍ په سياسي نقشه کې د بدلونونو رامنځته کېدو زماني برخې په کوچنيو سر ليکونو کې څېړو .

### ۳ . ۵ .۱ . ۱۶۴۸م کال او د وستفاليا تړون

د وستفالي د ۱۶۴۸م کال تړون چې د اروپايي قدرتونو لکه فرانسې ، انګلستان ، اسپانيې ، المان ، اتريش او هالند ترمنځ د مذهبي ۳۰ کلنو جګړو وروسته لاسليک شو، د سياسي جغرافيې د ليد لوري له مخې له دوو لورو د ارزښت وړ دی . لومړی دا چې د سر زميني دولتونو لخوا په رسميت وپېژندل شو ،او په اروپا کې د قدرت سلسله مراتب نظام په بنسټيزو هېوادونو کې اساس کېښودل شو او وګړو خپل تابعيت له خپلې امپراتورۍ څخه

دسر زميني دولت ته انتقال کړ . په همدې دليل نوموړی تړون معمولاً د نويو نړيوالوحقوقو په لومړني سرليک و پېژندل شو . په ياد تړون کې د حکومتونو د حاکميت حق د خپلې خاورې په محدوده کې رسميت ومونډلو او د ټولو هېوادونو په کارونو کې ګوتې وهل د نړيوالو حقوقو څخه سرغړونې وګڼل شوې . دويم دا چې د المان د (۳۵۵) ايالتونو استقلال په رسمي توګه پېژندلو سره هېوادونو ترمنځ د نظام چوکاټ د لمنځه ولاړ او د نړۍ لومړۍ سياسي نقشه په هغه مفهوم سره چې تعريف شوه منځته راغله ( ۳۷ : ۳۸) او ( ۲۰ : ۶۸).

## ۲.۵.۳. د ۱۸۱۵م کال د ويانا کنګره

دويم غوره بدلون په ټولو لويو وچو او د اروپا په سياسي نقشه کې په (۱۸۱۵م ) کال کې د وين کنګره کې ( چې د ناپيلون د جنګونو په پای او د نوموړي د سقوط په پايله کې تشکيل شوې وه ) منځته راغی . په سياسي نقشه کې هغه بدلونونه چې د وين کنګرې د تصميم نيونې وروسته منځته راغلل د برتانيې ، اترېش ، روسيې او عثماني څو مليتي امپراتوريو ځمکنۍ پراختيا لرونکو خپل موجوديت وساتلو ( ۳۷ : ۳۸ ) .

د روسيې امپراتورۍ د برګران دوشه ورشو ( هغه چې د لهستان پخوانۍ بادشاهۍ څخه پاتې وې ) سيمو په ولکې سره پراختيا وکړه . د برتانيې امپراتورۍ هم د جنوبي افريقا په جنوب کې د کاپ ولايت ( چې پخوا د هالند په لاس کې و) په لاسته راوړلو او د سيلان او مالت په ټاپوګانو سره پراختيا وکړه . اترېش هم د هغو ځمکو په بېرته نېولو سره چې له لاسه يې ورکړې وې او له ايټاليا څخه د دوه ايالتونو لمباردي او وينز په لاسته راوړلو سره ځمکنۍ پراختيا وکړه . د پروس بادشاهۍ د ساکسوني د ځينو ايالتونو او د راين سيمې په تر لاسه کولو سره زمکنۍ پراختيا ومونده او د جرمني کنفدراسيون له ۳۶ دولتونو څخه متشکل شو .

يوازې فرانسې ځمکنی تنګوالی ومونډو . ټيټې ځمکې (هالند او بلژيک ) چې د ډول ډول قومونو لکه والونيان ، فلامنيان او داچيان او په همدې توګه د کاتوليک او پروتستانت مذهب پلويانو څخه جوړې وې ، د پروس او فرانسې ترمنځ د حايلې سيمې د

منځته راتللو په موخه د نوي بادشاهۍ په بڼه منځته راغلې . ناروی هم د سویډن د بادشاهۍ یوه برخه شوه .

د نولسمې پېړۍ په وروستیو لسیزو کې د نړۍ سیاسي نقشه کې بیا بدلونونه راغلل ، دا بدلونونه په اروپا او امریکا کې په ځولیزه توګه د وګړو لخوا د ملیت پالنې نهضتونو محصول وو ، چې د فرانسې د انقلاب ( ازادۍ ، برابرۍ او وروروليۍ ) د پیغام د خورولو تر اغېزې لاندې یې د ملي خود مختارۍ د منځته راتللو لټه کوله . دا وګړي د زیار وېستونکو او ازادۍ غوښتونکو وګړو تر لارښوونې لاندې په دې بریالي شول چې ازادي واخلي ، دبېلګې په توګه د مرکزي او سهیلي امریکا وګړي په ځانګړې توګه د سیمون بولیوار د نظامي رهبرۍ لاندې د اسپانیا د استعمار پر ضد و خوځېدل او ازاد جمهوریت یې جوړ کړ . رومانیا هم په دې وتوانېده چې خپله ازادي له عثماني خلافت څخه ازادي واخلي . اګر چې په ځولو سیموکې ځینې حکومتونه په دې وتوانېدل چې ډېر ملي خوځښتونه مات کړي ( ۳۷ : ۳۹ ) .

په اساسي توګه په هغه وخت کې دا فکر چې ملتونه باید د خپل ځان لپاره ځانګړي دولتونه ولري ؛ یو انقلابي فکر و ، چې د هغه وخت د زورواکو او مشروع حکمرانانو پر ضد د شورش او موجوده وضعې د لمنځه وړلو په معنی و .

د پولنډ د وګړو هڅې له روس څخه د ازادۍ اخېستنې لپاره په ۱۸۳۰ م کال کې او د دویم ځل لپاره په ۱۸۴۸ م کال کې د ماتې سره مخامخ شوې .

د مجارستان د انقلابي جنبش هڅې د کوشوت (Kossuth) تر لارښوونې لاندې په ۱۸۴۸م کال کې د مجارستان د ازادۍ او له اتریش امپراتورۍ څخه د بېلتون په موخه ؛ د روسي عسکرو په مداخلې سره ماتې شوې .

په افریقا کې د اروپا ځواکمن حکومتونه د خپلو مستعمراتو په وېش بوخت وو ،ددې لوې وچې سیاسي کرښې له ۱۸۸۴م کال وروسته منځته راغلې ( ۳۷ : ۴۰) .

## ۳.۵.۳. د ۱۹۱۸م کال د وارسا د صلحې تړون

د لومړۍ نړیوالې جګړې ( ۱۹۱۴م ) په پیل کې دوه خپلواک هېوادونه حبشه او لایبریه د افریقا لوی وچې د نقشې ښکلا ورکوونکې وو او نوره ځمکه د اروپایي ځواکمنو هېوادونو لکه برتانیې ، فرانسې ، المان ، ایټالیې ، پرتګال ، اسپانیې او بلژیک ترمنځ وېشل شوې وه .

د اسیا لویه وچه هم لکه د نورو لویو وچو په څېر د څو لویو ځواکونو تر منځ وېشل شوې وه ، روسانو سایبریا او د لیرې ختیځ ځینې سیمې او مرکزي اسیا ، انګریزانو هندوستان ، برما ، مالایا، سنګاپور اوهانګ کانګ ، فرانسویانو هند وچین ، هالندیانو اوسنۍ اندونیزیا ، پرتګالیانو د تیمور ټاپو، ګوا (هندوستان کې) ، ماکایو (دچین ساحل کې ) او بالاخره امریکایانو فیلیپین په واک کې لرل .جاپان هم پر کوریا او تایوان څارنه درلوده.

د لومړنۍ نړیوالۍ جګړې وروسته جنګ ګټونکو متفقینو هڅه کوله څو د پخوانیو جنګونو تګلارې ته دوام ورکړي او نوې ځمکې په جنګ کې د ماتې خوړونکو له لاسه واخلي ، په پای کې په دې توافق وشو چې د اترېش ـ هنګري امپراتوري باید په دوو هېوادونو ووېشل شي او د المان او عثماني امپراتورۍ باید تجزیه شي . دې ته په پام سره چې ددې دوه امپراتوریو وېش اسان کار نه و. هوکړه په دې وشوه تر څو د عثماني او المان د امپراتوریو پر مستعمراتو د نړیوال نظارت یو نوی سیستم جوړ او پردې مستعمراتو د اداره کوونکو ځواکونو په څېر ، نه د حاکم په ډول عمل وکړي .

د متفقینو رول په حقیقت کې د ګټونکو هېوادونو تر منځ د مستعمراتو وېش د کرښو تعریف او ټاکل او پر هغوی د سرپرستۍ د مودې ټاکل و . دلته متفقه د ملتونو ټولنه چې د جنګ په پای کې منځته راغلې وه ، په ځانګړې توګه د سرپرستۍ دایمي کمېسیون ، په ټول سیستم یې لوړ نظارت درلود ( ۲۰ : ۷۰).

## ۳. ۵. ۴. ۱۹۴۵ م کال او د ملګرو ملتونو د ټولنې منشور

د دویمې نړیوالې جګړې په پای کې د ملګرو ملتونو ټولنه د ملتونو ټولنې (جامعه ملل ) د ټولنې په ځای منځته راغله . یادې ټولنې په خپل منشور کې په ځانګړې توګه په لومړۍ ماده کې " ملتونو ته د خود مختارۍ او مساوي حقوقو ورکول" شعار ته ژمنه وشوه . د منشور ټول مواد د مستعمراتي ځواکونو مسوولیت د مستعمره ملتونو پر وړاندې او آن چې ازادۍ ته د هغوی رسېدل یې ښودل . په منشور کې په همدې توګه نوې پدیدې د امانتي ځمکو په نوم د پخوانۍ متفقه ملتونو ټولنې د سرپرستۍ لاندې نظام ځای ناستې شوې . په دې پدیدو کې موخې لږ کمې یا زیاتې خو د پخواني نظام سره ورته وې . هغه په دې معنی چې ددې ډول ځمکو تدریجي پرمختګ او ازادۍ او استقلال لپاره باید په کې هڅې وشي . سربېره پردې چې اداره کوونکو قدرتونو کلني لیکلي راپورونه ورکول ، په منشور کې دا هم راغلي و ، چې په امانتي ځمکو کې باید چې د ملګرو ملتونو د مقاماتو لخوا پړاویي کتنې هم وشي . په پای کې ویلی شو چې زیاتره هغه خپلواک هېوادونه چې نن د نړۍ په سیاسي نقشه کې لیدل کېږي د ۱۹۴۵م کال وروسته او د ملیت غوښتنې خوځښتونو په اثر رامنځته شوي دي ( ۲۰ : ۷۱).

## ۳. ۵. ۵. د ۱۹۹۱ـ ۱۹۹۲ م کلونو پېښې او د شوروي اتحاد ټوټه کېدل

د ۱۹۹۱ـ ۱۹۹۲ م کلونه د هغو غوره جیوپولیتکي بدلونونو په دلیل د نړۍ د سیاسي نقشې د بدلون د مهمو دورو څخه ګڼل کېږي . په دې کلونو کې شوروي اتحاد ټوټه ټوټه شو او ۱۵ جمهوریتونه یې ازادۍ ته ورسېدل ، د یوګوسلاویا فدرال دولت په پنځو خپلواکو جمهوریتونو ووېشل شو ، دچکوسلواکیا هېواد په دوه جلا هېوادونو چک او سلواک ووېشل شو، دوه المانونه او دوه یمنونه سره یوځای شول ، دابدلونونه د پخوانیو هغو بر خلاف د نړیوالو او یا سیمه ییزو جګړو محصول نه وو، بلکې د شوروي اتحاد په ټوټه کېدو کې په لومړیو کې اقتصادي . ټولنیز بحران اساسي رول ولوبولو، وروسته قومي تضادونو او نشنلستي ځواکونو چې کلونه کلونه د حکومتونو د فشار او سرکوب ( سرکوزۍ ) په وجه تر خاورو لاندې پټ وو د پلاس ورغلې موقع څخه یې ګټه واخیسته او په خوځښت راغلل . د

شوروي اتحاد بدلونونه دختيځې او مرکزي اروپا د بدلونونو موجب شول او په پای کې په ۱۹۹۳م کال کې د ۲۰ په شمېر نوي هېوادونه د نړۍ د خپلواکو هېوادونو په شمېر کې ور زيات شول او د نړۍ سياسي نقشې يوځل بيا په ټوليزه توګه نوې کېدو ته اړتيا پيدا کړه ( ۲۰: ۷۲).

## لنډيز

په دې څپرکي کې دې پايلې ته رسېږو چې د نړۍ سياسي نقشې کې تل بدلونونه رامنځته شوي دي. په اروپا کې په ۱۶مې پېړۍ کې ډېرو زياتو دولتونو شتون درلود، يوازې په پخواني المان کې ۹۰۰دولتونو شتون درلود، چې بالاخره په۱۸۷۱م کال کې يو واحد دولت شو. همدارنګه په ټوله اروپا کې په ۱۵۰۰م کال کې ۱۵۰۰ په‌شاوخوا کې سياسي خپلواکو واحدونو شتون درلود. په ۱۹۰۰م کال کې دا شمير يوازې ۲۰ ته راکوز شو.

د شلمې ميلادي پېړۍ په لومړيو کې تر دويمې نړيوالې جګړې پورې د لويو امپراتوريو په‌ټوټه کېدو سره د هېوادونو په شمېر کې تل زياتوالى راغلى لکه چې د لومړۍ نړيوالې جګړې وروسته په نړۍ کې د خپلواکو هېوادونو شمېر ۶۷ و، خو د هېوادونو دا شمېر بيا د دويمې نړيوالې جګړې وروسته ۸۲ ته لوړ شو چې بالاخره په۲۰۰۰م کال کې د نړۍ په سياسي نقشې کې ۱۹۱ هېوادونو شتون وموند. چې ددې بدلونونو اصلي لاملونه‌جغرافيايي کشفېدنې، جګړې او جيوپوليتيکي بدلونونه، د امپراتوريو ټوټه کېدل‌او د وګړو تر منځ د بېلتون غوښتنې پروسې دي.

## پوښتنې

۱. په المان کې د وستفاليا تر تړون وړاندې د دولتونو شمېر څومره و او څنګه راکم شو ؟

۲. په اروپا کې په ۱۵۰۰م کال کې څو سياسي خپلواکو واحدونو شتون درلود او څنګه بيا دا شمېر راکم شو ؟

۳. دويمې نړيوالې جګړې د خپلواکو هېوادونو په شمېر کې کوم ډول بدلون رامنځته کړ؟

۴. جګړې او جيوپوليتيک بدلونونه څنګه د نړۍ سياسي نقشې ته بدلون ورکوي ؟

۵. د هغو امپراتوريو يادونه وکړئ چې ټوټه شوي او د سياسي نقشې د بدلون لامل شوي ؟

۶. اريتره هېواد د کوم سياسي برخليک سره مخ و ؟

۷. هغه کومې زماني مقطعې دي چې په کې غوره سياسي بدلونونه رامنځته شوي ؟

۸.د وستفاليا تړون کله رامنځته او د کومو ارزښتونو لرونکی و ؟

۹.په افريقا کې زياتره سياسي کرښې څنګه او کله رامنځته شوې ؟

۱۰.د افريقا لويه وچه د کومو اروپايي هېوادونو تر منځ وېشل شوې وه ؟

۱۱.د اسيا لويه وچه د کومو لويو ځواکونو تر منځ وېشل شوې وه ؟

۱۲.له ۱۹۹۱ـ ۱۹۹۲ کلونو کوم غوره جيوپوليتيک بدلونونه رامنځته شول ؟

# څلورم څپرکی

## د سیاسي جغرافیې د بحث ور مسلې

سیاسي جغرافیه د هېواد په دننه کې سیاسي پدیدې څېړي ، چې د ځمکې ، ملت او حکومت مفاهیم په کې رانغښتل شوي دي ، چې له همدغو مفاهیمو څخه هېواد جوړېږي. هېوادونه په بېلابېل ډول کټګوري کېږي ، چې دلته د سیاسي ، اقتصادي او اداري پلوه ډلبندي شوي دي . له سیاسي پلوه هېوادونه په حایل ، متعهد ، نا متعهد ، تړلو ، نا خپلواکو او خپلواکو هېوادونو وېشل شوي دي . همدارنګه له اقتصادي پلوه ، هېوادونه په پرمختللو ، مخ په وده یا پرمختیایي او کم پرمختللو هېوادونو وېشل شوي دي . په همدې ترتیب له اداري پلوه د هېوادونو وېش په ساده دولتونو او مرکب دولتونو کولی شو.

همدارنګه هېوادونه د پراختیا او تنګتیا له مخې هم یو له بل سره برابر او یو شان نه دي . که د نړۍ نقشې ته وکتل شي هیڅ هېواد له بل هېواد سره د پراخوالي له مخې ورته والی نه لري . د هېوادونو پراختیا له هغې جغرافیایي محدودې څخه عبارت ده چې د هېواد ملت په کې استوګنه کوي او دا هېواد په کې بیا د حاکمیت چارې پر مخ بیایي .

د هېوادونو موقعيت هم پر هېوادونو اغېزمن دی، هېوادونه د موقعيت له مخې په څو ډولونو وېشل شوي چې غوره يې مطلقه يا رياضيکي، نسبي، سوق الجيشي، په وچه کې راګېر او اوبو ته د لاس رسی موقعيتونه دي. په همدې ترتيب د هېوادونو هستې او پلازمېنې هم د هېوادونو سياست کې اغېزمنې وي.

سياسي جغرافيه د يو هېواد په داخلي فضا کې سياسي پديدې تر بحث لاندې نيسي، چې په دوديزه توګه دغه مفاهيم لکه سر زمين ( ځمکه ) ، ملت ، حکومت او پولې په کې شامل وي ، دې ته په کتو سره چې يو هېواد د سياسي جغرافيې مطالعاتو په بطن کې ځای لري ، د درې لاملونو يعنې ملت ، حکومت او سر زمين ( ځمکې ) له يو ځای کېدو څخه هېواد جوړېږي ، بناً دا ټولې موضوعګانې په لاندې سر ليکونو کې توضيح کېږي .

## ۱.۴. هېواد

هېواد يو سياسي واحد دی او ددې سياسي واحدونو ټولګه د نړۍ سياسي نقشه جوړوي . يو هېواد د جوړښت له مخې په لاندې دريو عناصرو پورې تړلی دی .

- ځمکه
- ملت
- حکومت

دغه پورتني درې واړه عناصر به ددې څپرکي په وروستيو کې په مفصله توګه تشريح او وڅېړل شي .

### ۱.۱.۴. هېواد ته بنه ورکوونکي لاملونه

د سياسي جغرافيې له نظره " State " د هېواد په معنی له درېيو پديدو يا عناصرو څخه جوړېږي ، چې هر يو يې په خپل ذات کې نور عناصر لري . دا درې پديدې يا عناصر عبارت دي له"ملت ، حکومت او سرزمين " څخه . له پخوانيو حکومتي طرز څخه تر د نوي دوران ديموکراسۍ پورې ، ياد درې مفهومه يو له بل سره يوځای او نه بېلېدونکي شول ،

او د همدې سياسي ـ جغرافيايي مخينې پر اساس دی چې " ديمو كراسي په حكومتي طريقو كې يوه ښه جغرافياي طريقه ده . ددې درېيو "ملت ، ځمكې (سرزمين) او حكومت " مفهومونو نه بېلتون او تړاو ددې لامل شوی چې د يو مېكانېزم يا لامل په څېر په خوځښت راغلی ،د ملت اراده د خاورې د ادارې په پار حكومت ته لېږدوي . ملت خپله اراده د ټاكنو له لیارې حكومت ته لېږدوي او حكومت جوړوي ، چې د ټاكل شوو دولتونو په وسیله چې د حكومت اجرايه ركن دی د ځمكې د ادارې كار تر سره كوي ( ۳۲ : ۳۴).




(۱.۴) انځور: ديو هېواد جوړښت لپاره درې بنسټيز عنصرونه ( ۳۲ : ۳۵).

## ۲.۱.۴. دهېواد ډولونه

هېوادونه بېلا بېل ډولونه لري ، چې دلته يې موږ دسياسي ، اقتصادی او اداري پلوه په ډلبندی غږېږو ( ۳۷ : ۱۱۹).

### ۱.۲.۱.۴. د هېواد ډولونه له سياسي پلوه

د سیا سي پلوه هېوادونه ډير ډولونه لري چې موږ يې په لاندې توګه تشريح كوو.

### الف . حایل هېوادونه

هغه کمزوري هېوادونه چې زیاتره یې د دوو ځواکمنو هېوادونو ترمنځ د اصطکاک او لانجو د مخنیوي په موخه منځته راغلي وي؛ حایل ګڼل کېږي. کلاسیک حایل هېوادونه عبارت دي له: بولیویا، پاراګوای او اوروګوای څخه چې د برازیل، چیلي او ارجنټاین ترمنځ یې د بېلوالي رول په غاړه درلود. بالتیک او لهستان چې المان او روسیه یې یو له بله سره بېلول، افغانستان چې د روسي او هند ترمنځ یې ځای درلود، د نیپال، سیکیم او بوتان سلطنتي هېوادونو چې د چین او هند ترمنځ د غوره غرنیو معبرونو ساتونکي وو، مغولستان چې د روسیې او چین ترمنځ یې ځای درلود او لاووس او احتمالاً تایلینډ چې د انګلستان او فرانسې ځواکونه یې په اسیا کې یو له بله سره بېل کړي وو. ددې هېوادونو زیاترو یې د ناسیونالیزم (نشنلیزم)، دهغوی د ځواکمن کولو او پلنوالي بدلون، د ایدیولوژي (پرته له نشنلیزم) رول او په نړیواله کچه د سرحدي سیمو د لمنځه وړلو ته د میلان او د دقیقو او ټاکل شوو کرښو (مرزونو) له امله د حایل توب رول له لاسه ورکړ.

له دویمې نړیوالې جګړې وروسته د ایډیولوژیک حایلې سیمې په نوم یوه حایله سیمه د ختیځ او لویدیځ بلاکونو ترمنځ راڅرګنده شوه، چې ځینې دولتونو یې د امپراتوریو له ټوټه کېدو وروسته ځان څرګند کړ او ځینې یې د پخوانیو حایلو هېوادونو برخې وګرځېدې، چې بیا یې هم یو بې لوری بلاک منځته راوړلو. ددغسې سیمو رامنځته کیدل ددې لامل شول چې لویو ځواکمنو هېوادنو یوه اندازه انرژي د بې لورو هېوادونو په راجلبولو کې مصرف شي، چې دا چارې پخپله د درېیمې نړیوالې جګړې په مخنیوي او کمولو کې اغېزمنې وې (ایضاً: ۱۱۹).

ځینې هېوادونه د دوو قوي هېوادونو په منځ کې سیاسي استقرار لري، دا ډول هېوادونه په حایل هېوادونو پېژندل کېږي. حایل هېوادونه معمولاً کمزوري وي چې اکثریت یې د دوه قوي هېوادونو په منځ کې د اصطکاک د مخنیوي په موخه منځته راغلي او ځمکنۍ بشپړتیا او ازادي یې د نړیوالو ځواکونو په وسیله تنظېمېږي. که چېرته یو حایل

هېواد تر دې کچې قوي شي چې وکړی شي په خپلواکه توګه له خپلو پولو دفاع وکړي ، نور نو بیا حایل هېوادونه نه ګڼل کېږي (۳۷ : ۱۲۰).

**ب . متعهد هېوادونه**

هغه هېوادونه دي چې د سولې او جنګ پر مهال د بې طرفۍ (Neutraliz) په وضعیت کې پاتې وي او دا وضعیت یې د ټولو هېوادونو په وسیله پېژندل شوی وي .

**ج . نا متعهد هېوادونه**

هغه هېوادونه دي چې د سولې او جنګ پر مهال یې بې لوری توب نه وي ساتلی او په یو ډول نه یو ډول د هېوادونو په ګټه او زیان تمامېږي ( ۲۰ : ۸۴).

**د . تړلي هېوادونه**

هغه دولتونه دي چې حاکمیت یې په ځانګړي توګه په نړیوالو چارو کې بل هېواد پورې تړلی وي ، نو له همدې امله دوی ته نا خپلواک دولتونه یا هېوادونه ویل کېږي او د نړیوالو حقوقو په خپلواکو شخصیتونو کې نه شمېرل کېږي او نړیوالې حقوقي معاملې نه شي تر سره کولی ( ۲۷ : ۴۵).

په نړۍ کې یوازې خپلواک هېوادونه هم نه دي موجود ، بلکې د (تړلو پولو) تر اصطلاح لاندې یو شمېر نا خپلواک هېوادونه هم شتون لري چې په سیاست او سیاسي نقشه کې یې په بېلابېلو نومونو یادوي . تړلې پولې کیدی شي د نړۍ سیاسي نقشې پر مخ د لاندې سرلیکونو څخه په یوې بڼې وښودل شي : مستعمره ، تحت الحمایه (تر حمایې لاندې) ، تر سرپرستۍ لاندې ، امانتي ځمکې ، ګډ حکومت ، بې لورې سیمې ، ازاد ښارونه ، ازاد بندرونه او ازادې سیمې ( ۱۰ : ۷۵ ).

په سیاسي جغرافیې کې د حکومتونو د مطالعې ارزښت ددې خنډ نه دی چې نا خپلواک سیاسي واحدونه یا تړلي هېوادونه چې د خپلو ځانګړو ملیتونو په دلیل ؛ یو له بله بېل وڅېړل

شي . په (۲۰۰۱م) کال کې ۵۹ نا خپلواک سیاسي واحدونو د نړۍ په سیاسي نقشه کې ځای درلود . د ۱۹۹۵ـ ۲۰۰۰ ام میلادي کلونو په اوږدو کې خپلواکۍ ته د رسېدو په موخه د یو شمېر تړلو سیاسي واحدونو شاهدان یو . د مکرونزي فدراتیف هېواد ، د مارشال ټاپوګانو جمهوریت او د پالایو جمهوریت چې ټول د امریکا متحده ایالاتو د څارنې لاندې امانتي ځمکې وې ؛ خپلواکۍ ته ورسېدې . هانګ کانګ چې پخوا د برتانیې مستعمره وه او ماکایو چې د پرتګال مستعمرې په ځېر یې شتون درلود ، نن ورځ د دوو سیاسي واحدونو په ځېر د ځانګړي حاکمیت په لرلو سره د نړۍ په سیاسي نقشه کې شتون لري ( ۳۷ : ۱۶، ۱۷).

## و. خپلوا ک هېوادونه

د نړۍ د سیاسي نقشې جوړولو تر ټولو غوره عناصر خپلواک او ازاد هېوادونه دي په عین حال کې همدا خپلواک هېواد د نړیوال نظام غوره لوبغاړی هم ګڼل کېږي . په دې وروستیو لسیزو کې نړیوال نظام د دوو متضادو لورو سره لرونکی و . له یوه پلوه دخپلواکۍ غوښتنې نهضتونو د هڅو په پایله کې د استعمار له ژغه د ملتونو د خپلواکۍ اخېستلو او د خپلواکو هېوادونو زیاتېدلو او له بله پلوه د اقتصادي او سیمه ییز پایښت په موخه د ملتونو وراخوا لویو واحدونو په بڼه د نویو سیاسي واحدونو د رامنځته کېدو شاهد یو (۱۰ : ۶۴، ۶۵).

د ۲۰۰۱ کال د شمېر له مخې له ۱۹۱ هېوادونو له ډلې یې ۱۹۰ خپلواکو هېوادونو په ملګرو ملتونو کې غړیتوب درلود ، چې د نړۍ د سیاسي نقشې پر مخ ښودل شوي . ددې هېوادونو یا سیاسي واحدونو تر منځ توپیرونه چې د وګړو د شمېر له پلوه دي او که د پراخوالي له پلوه دي ، ډیر په زړه پوري او د سیاسي جغرافیې له مخې د پلټنې وړ دي ( ۳۷ : ۱۶).

خپلواک هېوادنه هغه دولتونه دي چې د هېواد په د ننه او بهر کې له بشپړ حاکمیت څخه برخمن او له نړیوال حقوقي اهلیت لرونکي او د نړیوالو حقوقي ملاملاتو د پلي کولو واک ورسره وي ، دا ډول دولتونه د نړیوالو عمومي حقوقو خپلواک شخصیتونه بلل کېږي ، د خپلواکو هېوادونو شمېره نږدې ۲۰۰ ته رسېږي ، چې یادو هېوادونو د ملګرو ملتونو غړیتوب هم تر لاسه کړی دی ( ۲۷ : ۴۴).

### ۲.۲.۱.۴. د هېوادونو ډولونه له اقتصادي پلوه

**الف . پرمختللي هېوادونه**

پرمخ تللي هېوادونه چې نه يوازې د سړي سر عايد اندازه يې لوړه وي ، بلکې د توليد په پروسه کې له پرمخ تللو روشونو او تکتيکونو څخه ګټه اخلي او د ښوونې او روزنې کچه ، د عمر منځنی حد او د ژوند معيار يې هم نسبتاً لوړ وي ؛ پرمخ تللي هېوادونه بلل کېږي . البته دا کوم ځانګړی او مطلق معيار نه لري ، بلکې په نسبي توګه د نورو پرمختيايي هېوادونو سره پرتله کېږي . په همدې توګه هغه هېوادونه چې د نورو په پرتله پرمخ تللی اقتصاد ، تکنالوژيکه او صنعتي زېربنا ، لوړ ملي او سړي سر عوايد او د ژوندانه لوړ معيار لرونکي وي پرمختللي هېوادونه ګڼل کېږي ( ۲۹ : ۱۲۵).

د پرمخ تللو هېوادونو اصطلاح هغو هېوادونو ته کارول کېږي چې د ځينو معيارونو پر اساس يې پراختيا ته لاس رسی کړی وي . دا معيارونه د بحث وړ دي ، مګر په ټوليزه توګه اقتصادي معيارونه معمولاً د پرمختللو هېوادونو اصلي شاخص ګڼل کېږي ، د بېلګې په توګه د سړي سر عوايدو ميزان يې يو له غوره معيارونو څخه دی او بنا پردې هغه هېوادونه چې د داخلي نا خالص توليد نرخ يې لوړ وي ، پرمختللی ګڼل کېږي ( ايضاً : ۱۲۶).




(۱۰۴) نقشه : دنړۍ پرمختللي (لومړۍ نړۍ) ، مخ په وده (دویمې نړۍ) او وروسته پاتې (درېیمې نړۍ) هېوادونه

http://www.google.com.af/search?dcr=0&biw=1366&bih=598&tbm=isch&sa=1&ei=R1m3WvmpJ8OhsgHazaOACg&q=dByGeOpNo6Q#imgrc=3vLBXFOI0PKd1M:&spf=1521965596142

بل اقتصادي غوره معيار د هېواد د صنعتي کېدو ميزان ، يو بل معيار چې په دې وروستيو کې د وګړو د پام وړ وګرځېدو د انساني پراختيا شاخص دی ، په دې ترتيب هغه هېوادونه چې د انساني شاخص په لوړه نمره کې دي پراختيا موندونکي ګڼل کېږي او نورو هېوادونو ته د پرمختګ په حال کې ويل کېږي(۲۹: ۱۲۶ ).

## ب. مخ په وده يا پرمختيايي هېوادونه

مخ په وده يا پرمختيايي هېوادونو (Developing Countries) ته کله کله د لږو پرمختللو (less developed countries) اصطلاح هم کارول کېږي . معمولاً هغو هېوادونو ته ويل کېږي چې نسبتاً لږ عايد لري ، د خلکو د ژوند سطحه يې ټيټه وي او لږ پر مختللی صنعتي سکتور ولري . دا اصطلاح معمولاً د هغو هېوادونو لپاره کارول کېږي چې پرمختللو هېوادونو سره يې اقتصادي او سياسي واټن ډير وي ( ۲۹ : ۱۲۵) . لږ پراختيا موندونکي هېوادونه د لاتين امريکا ، اسيا او افريقا د دريېمې نړۍ فقير هېوادونه دي . د لږ پراختيا موندونکو هېوادونو د پېژندلو لپاره ددغو اقتصادي ځانګړتياوو لکه داخلي ناخالص توليد ، د سړي سر پرمختګ او داسې نورو څخه استفاده وکړو، داډول هېوادونه د مرستو پلټونکي دي او په نړيواله سوداګرۍ کې نسبتاً لږ رول لري (۲۰ : ۸۵).

## دمخ په ودې مفهوم

وده يوه څو بعدي پديده ده ، چې ډير لاملونه پرې اغېزه لري ، چې همدا لاملونه بيا د ودې بريا او ناکامي ټاکي . اقتصادي علوم ددې ستونزې يوازې يوه برخه څېړي ، چې په کې په ځانګړې توګه کلتوري او ټولنيزو شرايطو ته هم زياته پاملرنه کېږي . د مخ په ودې يو ټوليز تعريف چې ټولو ته د منلو وړ وي ناشونی دی . پخوا د" مخ په ودې " پر ځای " وروسته پاتې " او د "غريب " کلمې کارول کېدې ، مګر نن د پرستيژ او دېپلوماتيکو دلايلو له مخې د ټولو داسې کلمو پر ځای د " مخ په ودې " کلمه کارول کېږي .

ددې تعریف د توضیح لپاره باید ډیر خصوصیات په پام کې ونیول شي ، دا خصوصیات باید د اندازه کېدو وړتیا ولري او یا په ټولیزه توګه وجود ولري .

یوازې " عصریتوب او پرمختګ " د مخ په ودې په مفهوم نه دی ، بلکې په دقیقه توګه د" ژوند د ټولیزو شرایطو ښه کول " د مخ په ودې په مفهوم دي . د ( Nuscheler ) او ( Nohlen ) په آند : رشد (پرمختګ)، کار ، عدالت ، ګډون او استقلال د مخ په وده د مفهوم مهم عناصر دي . خو د ( Seers ) په آند : خوراکي مواد ، کار او ټولنیز عدالت د مخ په ودې مهم عناصر ګڼل شوي دي . په دې بنسټیزو موخو کې هر مخ په وده هېواد ځانګړي د موخو اولویتونه لري . د ټولو دغو موخو مثبت بدلون د مخ په ودې په معنی دی . که ددې موخو تر منځ مثبتې اړیکې موجودې وي ، نو په دغسې حالت کې اضافي ستونزې نه رامنځته کېږي ، برعکس که ددې موخو ترمنځ تضاد شتون ولري نو په دې صورت کې اضافي ستونزې پیداکېږي (۲۵ : ۵).

د مخ په ودې مفهوم په لاندې توګه تعبیرېږي :

د مخ په ودې پروسه (دینامیک لیدنه )

دمخ په ودې حالت ( ستاتیک لیدنه )

د مخ په ودې پروسه له یو زیات شمېر مخ په ودې حالتونو څخه لاس ته راځي ، نو له دې کبله مهمه دنده داده چې د مخ په وده حالت په سمه توګه تثبیت شي او د هغه لپاره د اندازه کولو معیار وټاکل شي . د مخ په وده حالت له دې موضوع سره نږدې اړیکې لري ، چې دیو هېواد وګړو کومه د ژوند سطحه لري او کومه د ژوند سطحه غواړي لاسته راوړي . ددې موخې لپاره باید د ژوند د شرایطو غوره عناصر وټاکل شي (ایضاً: ۵) .

د ټولیزې مخ په ودې د اندازه کولو ستونزه د ټاکلو ټولنیزو ګروپونو د اوسني ژوند د کچې په تثبیتولو کې خلاصه کېږي . یوه مهمه دنده داده ، چې د ژوند د شرایطو هر اړخیز کرکتر په سمه توګه وټاکو ؛ البته چې دا ساده کار نه دی . د ژوند د سطحې د ټاکلو شرایط ډیر زیات دي او ډیر مختلف متضادې ډلبندۍ په اړه شتون لري . د ملګرو ملتونو ځانګړي

سازمانونه داسې یوه ډلبندي چې زیاتره عملي اړخ لري په پام کې نیسي . د ژوند کچې ستندرد او اندازه کول او د هغه اړوند ستونزې د ټولنیزو علومو د څېړنې یوه مهمه برخه ده ، په دې اړه د کارګرانو د نړیوال دفتریا International Labour Office (ILO) وړاندیز د ملګرو ملتونو د متخصصینو لخوا منل شوی دی . چې په دې بنسټ د ژوند کچې غوره عناصر لاندې دي :

- ✓ روغتیا او نفوس.
- ✓ خوراکي مواد او تغذیه .
- ✓ ښوونه اوروزنه .
- ✓ د کار شرایط .
- ✓ د مشغولیت حالت .
- ✓ ټولیزه تقاضا او سپما .
- ✓ ترانسپورت .
- ✓ کور .
- ✓ کالي .
- ✓ تفریح او فارغ وخت .
- ✓ ټولیزه ډاډینه .
- ✓ د وګړو ازادي .

په زیاترو مخ په وده هېوادونو کې ددې شاخصونو ټاکل ستونزمن کار دی ، ځکه هلته دقیق اعداد او ارقام نشته (**۲۵ : ۶**).

دمخ په ودې هېوادونو ټولیز او اقتصادي جوړښت یو له بله زیات توپیر لري او دا جوړښت آن چې په یو هېواد کې هم غیر متجانس دی . هر مخ په وده هېواد ځانګړي خصوصیات لري ، له دې کبله د مخ په ودې هېوادونو لپاره یو ټولیز تعریف چې د ټولو اقتصاد پوهانو لپاره د منلو وړ وي نشته . موږ په هیڅ بڼه د ټولو هېوادونو لپاره ټولیزې اقتصادي نسخې او ټاکلی موسساتي چوکاټ چې د ټولو هېوادو په مختلفو شرایطو کې یو

شان اعتبار ولري نه شو طرحه کولی . د مخ په ودې هېوادونو د وروسته پاتې والي بنسټيزه ستونزه هغه څو اړخيز والی دی چې د اقتصادي ، ټولنيزو او سياسي هڅو ګډې اغېزې د اقتصادي او ټولنيز پرمختګ لپاره ايجابوي .

په ټوليزه توګه په يوه ټولنه کې د خلکو رفاهيت د مذهبي ، اقتصادي او ټولنيز جوړښت سره نژدې اړيکې لري . په يو هېواد کې نفر سر عايد د يوې ټولنې د اقتصادي وروسته پاتې کېدو په څېړنه کې بنسټيز رول لري ، مګر يوازې نفر سر عايد په هېڅ بڼه په يوه ټولنه کې د رفاهيت د ټاکلو لپار ه بس نه ده ، ځکه چې نفر سر عايد د ټولنيزو شاخصونو سره چې د افرادو د رفاهيت او د يو هېواد د اقتصادي ودې لپاره غوره معيار بلل کېږي؛ نژدې اړيکې نه لري . په يو هېواد کې د انکشاف موخه داده چې د ټولو خلکو لپاره د رفاهيت او با حرمته ژوند شرايط تامين شي . انکشافي سياست بايد د اقتصاديت لپاره بنسټونه رامنځته کړي ، پروګرامونه او پروژې د اقتصاد او ټولنيز پرمختګ لپاره بنايي کړي . بايد د وروسته پاتې کېدو لاملونه وپېژندل شي او د فقر او غربت د لمنځه وړلو لپاره په مخ په وده هېوادونوکې عملي کړنې وشي (۲۵ : ۱).

**ج . وروسته پاتې هېوادونه**

ددې ډول هېوادونو بل نوم نه پراختيا موندونکي هېوادونه دي ، زياتره وروسته پاتې هېوادونه هغه د درېيمې نړۍ نوي او ازاد شوي هېوادونه او هغه ځمکې دي چې پخوا په سيده او يا ناسيده توګه د استعمارګرو ځواکونو د سياسي ، اقتصادي ، نظامي او فرهنګي نفوذ لاندې وو . ددې ډول هېوادونو ځانګړتياوې په لاندې ټوګه دي .

- د صحت (روغتيا) او تغذيې (خوراک ) ټيټه سطحه .
- نالوستوب (بې سېوادي ) .
- له چارو څخه بې زاري (زړه بدوالی) او بې ميلي (بې مينې توب ).
- د پانګې کمښت.
- طبقاتي ژور بدلونونه .

- اقتصادي ځو ګونی توب.
- د کرنې لومړیتوب پر صنعت.
- د پولي سیستم نه رسیدل توب .
- پانګې اچونې سره بې مینې توب.
- د اقتصادي کارکوونکو کمښت.
- د پرمختللې فني شېوې او د پراختیا د روحیې نه شتون (۲۰ : ۸۴).

**۳.۲.۱.۴ . د هېوادونو ډولونه له اداري پلوه**

د دولتونو ډولونه د ترکیب اوساختمان له پلوه په دې معنی چې ایا دولتونه واحد او مرکزي قدرت لری او د نورو دولتونو سره به د یو والی او اتحاد په بڼه ترکیب لري ، له همدې امله دولتونه په دوه ډوله وېشل کېږي ، چې یو یې ساده او بل یې مرکب دولتونه دي ( ۱۳ : ۷۱).

**۱.۳.۲.۱.۴. واحد دولتونه**

هغه دولتونه دي چې یوازې یو واحد مرکزي قدرت ولري او د دولت ملي حاکمیت په حقیقت کې د همدې مرکزي قدرت په وسیله تطبیق او عملي کېږي لکه افغانستان ، ایران او داسې نور.

ګارنر ساده دولتونه داسې تعریفوي : که چېرې د قانون پر بنسټ ټول واکونه یوازې د مرکزي دولت په لاس کې وي ، نو دې ډول نظام ته ساده دولت وایي .

د ساده یا بسیطو دولتونو اطلاق په هغو دولتونو کېږي چې د یوې مرکزي واحدې سیاسي تګلارې لرونکی وي او په ټوله کې خپل سیاسي قدرت ، دندې او واکونه د یو واحد حقوقي شخصیت په وسیله چې هماغه بسیط دولت دی ؛عملي کېږي . او ټول هغه افراد چې د یو توغ لاندې موجود وي له یو سیاسې قدرت څخه پیروي کوي او هم یو سیاسي قانون د هماغه دولت په ټول قلمرو کې پر هغوی تطبیقېږي . ځینې مهال ددې لپاره چې په نظم او امنیت کې اسانتیاوې رامنځته شي ، نو هېواد پر یو لړ اداري واحدونو لکه

ولایت ، ولسوالۍ ... باندې وېشي ، او د مرکز تر اغېز لاندې وي ، مرکزي دولت کولی شي د دوی په واکونو کې کموالی یا زیاتوالی راولي( ۱۳ : ۷۱).

**د واحد(ساده) دولتونو وېش**

دساده دولتونو په اړه باید ووایو چې د ساده دولتونو اداري سیستم به یا داسې عیار شوی وي چې واک به په‌کې ټول د مرکز سره وي او یا داسې وي چې په ځینو مواردو کې به یې واک د مرکز او نور واک به یې سیمو او ولایتونو ته سپارلی وي چې له همدې امله موږ کولی شو ساده دولتونه په دوه برخو ووېشو:

**۱.** هغه واحد سیاسي رژیم چې اداري سېستم یې مطلق مرکزیت ولري : دا هغه رژیم دی چې ټول مامورین د مرکز لخوا ولایتونو ته ټاکل کېږي او دوی پر خلکو یا تر اداري لاندې وګړو باندې له دولت څخه استازیتوب کوي او هیڅ ډول ځانګړی صلاحیت نه لري . ټولې اجرایوي پرېکړې د مرکز لخوا ولایتونو ته صادرېږي ، ولې ددې ډول رژیمونو تطبیق نن ورځ ناشونی دی ، ځکه یو تن نه شي کولی چې له مرکز څخه ټول ولایتونو اداره کړي او د هر ولایت غوښتنو اړوند پرېکړې وکړي .

**۲.** هغه واحد سیاسي رژیم چې اداري سېستم یې پر عدم مرکزیت ولاړ وي : دعدم مرکزیت په رژیم کې موضوع داسې وي چې ځینو سیمو یا ولایتونو ته یو حکمي شخصیت ورکول کېږي ، په دې معنی چې ولایت یا سیمه کولی شي چې په مطلقه توګه ځانته عایدات ولري ، خپله بودیجه ترتیب کړي ، په ازادانه توګه پرېکړې وکړي او خپل اړوند مامورین په خپله وټاکي . باید وویل شي ولایتونو ته دا صلاحیت یوازې په هغه حدودو کې ورکول شوی وي چې د دوی سیمه ییزې ګټې یې ایجابوي ، البته په ملي او ټولیزو موضوعاتو کې صلاحیت د مرکزي دولت په لاس کې وي او دې ډول موضوعاتو ته د مرکزي دولت لخوا د حل لارې لټول کېږي ( ۱۳ : ۷۱).

همدارنګه دوکتور میرحیدر دره ساده دولتونه یا واحد دولتونه په لاندې توګه تشریح کوي : واحد هېوادونه هغه هېوادونو ته ویل کېږي چې د یو ډېر ځواکمن مرکز لرونکی او په سیاسي قدرت متمرکز وي، او داخلي تفاوتونه یې ناچیزه وي .

ټول حکومتونه د اداري اوسیاسي موخو لپاره په کوچنیو واحدونو وېشل کېږي او هر یو له دې واحدونو د یو محلي مدیریت لرونکی وي چې د چارو اداره کوي . د واحد حکومتونو په اړه مرکزي دولت ټول محلي مدیریتونه د خپلې څارنې لاندې لري او د هغو د ځواکونو اندازه ټاکي ، آن چې ځینې وخت په موقته توګه د محلي مدیریت رول هم په غاړه اخلي . مرکزي دولت کولی شي خپل تصامیم پر ټولومحلي واحدونو تحمیل کړي ، پرته له دې چې دا تصمیمونه د هغو سیمو د وګړو د قبلولو او احترام وړ دي او که نه ؟. په اړینو مواردو او د ملي بحرانونو په وخت کې مرکزي دولت کولی شي د زیا ت ځواک په لرلوسره چارې تر سره کړي ، بحران لېرې کړي او برعکس د ارامۍ په وخت کې زیاتره مسولیتونه محلي واحدونو ته لېږدوي . پورته مطلب ته په پام سره کولی شو د واحد حکومتونو لپاره لاندې ځانګړنې وښایو ( ۳۷ : ۱۴۸).

۱ .واحد حکومت باید چې پراخه اوډیره پراخه ځمکه ونه لري ، هرڅومره یې چې ځمکه پراخه او پلنه وي ددې احتمال شته چې له یوې خوا فرهنګي ناحیې په کې زیاتې وي او له بله دا چې د مواصلاتي لارو او ارتباطاتو پر وړاندې د طبیعي موانعو شونتیا په کې زیاتېږي .

۲. واحد حکومت باید چې د ګرد او راټول شکل لرونکی وي ، هغه حکومت چې ځمکه یې ټوټه ټوټه او یا لکۍ لرونکی وي د ملي یو والي په لاره کې د ستونزو سره ښایي مخامخ شي او باید چې مختلفو نواحیو ته خود مختاري ورکړي . په ټوټه ټوټه هېوادونو کې د قومي ، نژادي ، مذهبي او ژبني تفاوتونو د شتون شونتیا زیاته وي او یوازې د یو سیاسي فدرال چوکاټ ورته په کار دی تر څو زیاتره وګړي په کې رضا کړي .

۳. واحد حکومت باید چې په ټوله خوره وره خاوره کې یې په یو ډول وګړي استوګن وي . له استوګنو څخه خالي او غیر تولیدي سیمو شتون او د حاصلخېره استوګنې سېمو ترمنځ د انزوا غوښتنې او سیمې پالنې حس پیدا کوي .

۴. واحد حکومت باید یوازې د یوې سیاسی هستې لرونکی وي ، هغه حکومتونه چې د ملي او سیاسي څو ګونو هستو لرونکی وي ، د یوې قوی سیمې پالنې سره مخامخېږي . دا وضع په یو واحدحکومت کې چندانې مطلوبه نه وي . د نظري پلوه د یو واحد حکومت پلازمېنې لپاره تر ټولو وړ ځای د یو را ټول شکل جغرافیایي مرکز دی . دا چاره ددې لامل ګرځي چې د پلازمېنې چاپېره سېمو فاصله کمېږي او په پای کې د پلازمېنې او سیاسي هستې حضور د هېواد په هره څنډه او لوري کې احساسېږي . ښاري مرکز چې د سیاسي مقاماتو د استوګنې ځای وي د زیات سیاسي نفوذ لرونکی وي اوملي احساسات هم په هغې کې په لوړترینه سطحه کې وي . په همدې دلیل د وحدت راوستلو لامل وي او مرکز نه یوازې د خپلې هستې لپاره بلکې د ټول حکومت لپاره ښایي جوړ شي ( ۳۷ : ۱۴۹).

په همدې ترتیب پوهاند دوکتور ودیر صافی ساده دولتونه په لاندې توګه تشریح کوي :
واحد یا ساده دولتونه چې یو مرکزي عالي قدرت ولري او همدغه عالي مرکزي ارګانونه یې یوازیني د اعمالو ارګانونه وي او کورنی او باندینی حاکمیت همدغه ارګانونه تمثیل کړي ، په دې ډول هېوادونو کې قدرت په حکومتي ایالاتونو نه وي وېشل شوی ، بلکې ټول هېواد او د هېواد نفوس له یوه عالي مرکز څخه رهبري کېږي . د نړۍ ډېری دولتونه واحد دولتونه دی ، واحد دولتونه له خپل بنسټي قانون سره سم د یوه عالي مرکزي ارګان لرونکی وي چې په کورنیو چارو کې عمل کوي او هم په نړیوالو اړیکو کې له ټول هېواد څخه استازیتوب کوي ( ۲۷ : ۴۵ ، ۴۶).

### ۲.۳.۲.۱.۴. مرکب هېوادونه

مرکب دولتونه هغه دولتونه دي چې له يوه حکومت څخه لـه زيـاتو ايـالتونو جوړشوي وي ، ددغو دولتونو غوره ډولونه فدرالي (فډرېشـن ) او کنفـدرالي (کانفډرېشـن ) دي (۲۷ : ۴۶).

مرکب دولتونه هغه دولتونو ته وايي چې له نورو دولتونو سره يا د يـو والـي (اتحـاد) په بڼه يو ترکيب ولري او يا د فدرال يا کنفدرال بڼه ولري ، يـا پـه بـل عبـارت مرکب دولتونـه له هغو دولتونو څخه عبارت دي چې يا له دولت سره د قدرت په کړنو کې يو بـل دولت برخه وال وي او يا داچې د دولت په دننه کې دولت ته ورتـه ځينې نور ارګانونه موجود وي ، يـا پـه بل عبارت مرکب دولتونـه هغـه دولتونـو تـه وايـي چې ساده شکل و نـه لـري يـا واحد مرکزي قدرت و نه لري ؛ بلکې هلته څو دولتونه شتون لري (۱۳ : ۷۲).

#### ۱.۲.۳.۲.۱.۴. د مرکب دولتونو ډولونه

مرکـب دولتونـه پـه درې ډولـه وېشـل کېـږی چـې عبـارت دي لـه : دولتونـو اتحـادي سيستم ، د دولتونو فدرېشن سيستم او د دولتونـو کنفدرېشـن سيسـتم څخـه ، چې هر يـې پـه لاندې توګه توضيح کېږي. (۱۳ : ۷۳).

**۱.د دولتونو اتحاد**

د دولتونـو اتحـاد پـه دې معنـی چـې دولتونـه پـه خپلـو ټولـو داخلـي او بانـدينيو چـارو کې خپلواک وي ، مګر د يو دولت رييس د بـل دولـت رييس دنـده هـم ترسره کـوي ، چـې دا ډول اتحاد په دوه ډوله دی چې يو ته يې شخصي اتحاد او بل ته يې عيني (حقيقي ) اتحـاد وايي ، چې هر يو يې په لاندې توګه روښانه کوو:

**الف . شخصي اتحاد:** هغه قرار دادي اتحاد ته ويـل کېږي چې په‌کې د يو دولـت ريـيس د بـل دولت د رييس دنده هم تر سره کوي ،خو د هر دولت ټول وزارتونـه او دولتـي ارګانونـه بـه بېـل وي ، دبېلګې په توګه پـه ۱۷۱۴م کال کې دانګلستان ملکه مړه شوه او هغې وارث نه درلـود ،

نو پارلمان پرېکړه وکړه چې هانور پاچا ( لومړی جورج) دې د انګلستان د پاچا په حیث هم کار وکړي ، چې دې حالت تر ۱۸۳۷م کال پورې پایښت درلود . همدارنګه په ۱۸۳۹ م کال کې د هالند د دولت رییس د لوګزامبورګ د دولت د رییس په حیث هم دنده تر سره کوله .

همدارنګه په ۱۹مه پېړۍ کې د بلجیم او کانګو هېوادونو تر منځ شخصي اتحاد رامنځته شوی و، چې په‌کې د بلجیم پاچا د کانګو پاچا هم حسابېدو، نن ورځ د دغسې اتحاد کوم بېلګه نشته . دا باید څرګنده کړو چې شخصي اتحاد د حقیقي اتحاد لپاره یوه مقدمه ده ، ځکه په دې کې د هېواد رییس چې معمولاً شاه وي او کوښښ کوي چې د دوو هېوادونو ترمنځ واقعي اتحاد رامنځته کړي .

**ب . عیني (حقیقي ) اتحاد:** دا ډول اتحاد د دوو دولتونو هغه اتحاد ته وایي چې د یو تړون په وسیله د یو دولت رییس د بل دولت د رییس په توګه دنده تر سره کوي ، پر دې سربېره درې وزارتونه ( دفاع ، باندینیو چارو او مالیې ) هم سره شریک وي . د بېلګې په توګه په ۱۸۱۵ م کال کې د ناروې دولت د سویډن دولت سره په جګړه کې مات شو ، نو د (TOST) د سولې تړون په وسیله یې یو واقعي اتحاد رامنځته کړ او د ناروې دولت د سویډن دولت ته غاړه کېښوده ، خو د ۱۹۰۵ م کال د اکتوبر ۲۶ ام د هغه شورش په وسیله کوم چې په ناروې کې رامنځته شو ؛ دا اتحاد یې پای ته ورسولو.

په عیني اتحاد کې هر دولت د نړیوالو حقوقو شخصیت لرونکی دی . دا چې ولې دې اتحاد ته عیني اتحاد وایي په لاندې دلایلو کې واضح کېږي .

عین په معنی د شي دی ، همدارنګه د مادیاتو او منافعو په معنی هم دی . یعنې دلته یوازې شخص ګډ نه دی بلکې مادیات چې هغه درې وزارتونه دي هم شریک دي . دویم دلیل دا کېدی شي چې عین د حقیقي او واقعي په معنی هم وکارول شي ، نو ځکه ورته عیني اتحاد وایي چې دا یوازې شخصي اتحاد نه دی ؛ بلکې یو حقیقي او واقعي اتحاد دی (۱۳: ۷۳، ۷۴).

## ۲. د دولتونو فدرېشن

فدراسیون د واحد دولت د تشکیل لپاره د څو سیاسي واحدونو ( ایالتونو یا هېوادونو ) یوځای توب ته وایي . په فدراسیون کې کوچني سیاسي واحدونه دخپل ځان او وګړو لپاره د ځینو واکونو او ځواکونو لرونکی وي او باندنۍ چارې فدراسیون ته په واک کې ورکوي . د فدراسیون یا فدرال حکومت هر غړی ایالت د اداري جوړښت او قانون جوړونې مجالسو لرونکی وي ؛ خو قوانین به یې د فدرال حکومت د بنسټیزو قوانینو سره په ټکر کې نه وي . تر ټولو غوره فدرالي حکومتونه د امریکا متحده ایالات ، کاناډا ، استرالیا ، ارجنټاین ، مکسیکو او هند دي ( ۱۱ : ۵۳ ).

فدرېشن دولتونه هغه دولتونو ته وایي چې په داخل کې له یوه لورې یې مرکزي دولت موجود وي ، خو له بلې لوري هماغه دولت کې ایالتونه هم شتون لري چې هر یو ایالت ځانګړي صلاحیتونه لري ، یعنې ځانته ځانګړې فضاء ، پارلمان اوحکومت لري او په داخلي عادي کارونو کې خپلواک وي ، خو په داخلي مهمو او په ټولو باندینیو موضوعاتو کې دوی خپلواک نه وي او د مرکزي دولت تابع وي ( ۱۴ : ۴۲ ).

د اساسي قانون د حکم پر بنسټ معمولاً فدرالي دولتونه په دوه بڼو منځته راځي .

۱. داچې څو خپلواک دولتونه سره یو ځای کېږي او دامني چې د اساسي قانون پر اساس به دوی فدرال دولتونه جوړوي ، دبېلګې په توګه په ۱۷۸۷ م کال کې د امریکا ۱۳ بېلابېلو دولتونو ژمنه وکړه چې داساسي قانون په وسیله به فدرال دولتونه جوړوي .

۲. یا دا چې یو دولت په داخل کې خپل رژیم ته بدلون ورکوي او فدرالي نظام د خپل نظام په حیث قبلوي ، لکه المان ، هند ، سوېس ، پاکستان او داسې نور ... ، چې فدرالي نظامونه لري . یعنې په لومړي ډول کې څو بېروني دولتونه سره یوځای کېږي او یوفدرال دولت رامنځته کوي ، په داسې حال کې چې په دویم ډول کې د یو موټي کورني دولت په داخل کې دا سیستم منل کېږي .

په فدرال طرم کې د قانون اړوند واکونه د مرکز او ایالاتو ترمنځ وېشل کېږي او مرکزي دولت نه شي کولی چې د ایالتونو واکونه په خپله خوښه لمنځه یوسي . همدارنګه باید یاده کړو چې د مرکز او ایالتونو تر منځ د واکونو وېش په دوه ډوله صورت نیولی شي .

۱. د ایالتونو لپاره واکونه ټاکل کېږي اوپاتې نور واکونه او صلاحیتونه د مرکز سره وي .

۲. لومړی د مرکز لپاره واکونه ټاکل کېږي او پاتې نور واکونه ایالتونو ته ورکول کېږي . مګر په ځینو حالاتوکې پر ځینو واکونو هم د مرکز او هم د ایالتي حکومتونو ګډ کنترول وي لکه د مالیې وضع کول ( ۱۳: ۷۴ ، ۷۵).

فدرالي حکومتونه له ګڼو ایالتونو یا حکومتونو څخه جوړشوي وي ، خو د دوي د جوړښت حقوقي سند د فدرالي نظام بنسټي قانون دی او له هغه سره سم رامنځته کېږی لکه د شوروي اتحاد فدرالي هېوادونه او نور .

یو فدرالي حکومت که څه هم له څو حکومتونو څخه جوړ شوی وي ، خو دفاعي ارګان ، د باندیني سیاست پراختیا ، پولي سیستم یا پولي واحد یې ګډ او مرکزي سیستم لري . د جګړې اعلان او د جګړې د متارکې (پرېښودلو) لاسلیکول له مرکزي ارګانونو څخه د ټول فدرالي هېواد په استازیتوب تر سره کېږي . فدرالي هېوادونه د نړیوالو حقوقو له نظره د نورو ساده هېوادونو په شان دي ، یعنې یو فدرالي هېواد یو نړیوال شخصیت پېژندل کېږي ، پرته له دې چې یو یا دوه یا زیات فدرالي حکومتونه یا ایالتونه لري یعنې نړیوال عمومي حقوق فدرالي هېوادونو ته یوازې د یو نړیوال شخصیت په توګه یا لکه د یو ساده او واحد هېواد په توګه ګوري لکه پخوانی چکوسلواکیا هېواد چې له دوو حکومتونو څخه جوړ و ، امریکا متحده ایالتونه چې له پنځوسو ایالتونو جوړ دی (۲۷ : ۴۶).

دمتمرکز نظام برخلاف چې په‌کې مرکزي دولت خپل ځواک د حکومت په ټولو متشکله برخو په یو ډول عملي کوي ، یو فدرالي نظام کې مرکزي دولت ته دا مجاز دی چې د سرحدونو په دننه کې چې د ګډو علاقو زمینه لکه دفاع ، باندني سیاست او اړیکو کې

دخالت وکړي . همدارنګه د فدرال حکومت هر متشکله سیاسي واحد لکه امریکا متحده ایالاتو کې پخپله د سیاسي مرکز ، لومړي وزیر او داخلي بودجې لرونکی وي . د فدرال حکومت هر سیاسي واحد د فدرال اداري پلازمېنه کې استازی لري ، تر څو له همدې لارې هغه چارو کې چې فدراسیون پورې تړلې دي د نظر څرګندونې وکړي.

تاریخ ښودلې ده چې فدرال حکومتونو هم لکه د واحد حکومتونوپه څېر دوخت په تېرېدلو سره په تدریجي توګه بدلون او بشپړ تیا موندلې ده ، هغه ډول چې دعدم تمرکز په لور د حرکت ځینې نښې لېدل کېږي ، فدراسېونونه هم د زیات مرکزیت په لوري د بدلون په حال کې دي ، دا وضع دقیقاً د امریکا متحده ایالاتو کې رامنځته شوې ده .

نن ورځ د امریکا متحده ایالات د هغو ګڼو بدلونونوپه رامنځته کولوسره چې په بنسټي قانون کې یې د اصلاحاتو ترسرلیک لاندې راوړي ، د هغو ۱۳ لومړنیو ایالتونو چې د فدرال حکومت هلته جوړ وي په کراتو زیات مرکزیت لري ، له بله پلوه ځینې فدرال حکومتونه تردې کچې په مرکزیتوب عمل کوي چې کیدای شي د واحد حکومتونو په لیکه کې وګڼل شي (۳۷ : ۱۵۱).

له نظري پلوه د فدرالېزم نظام پراخ او ډیر پراخ هېوادونو کې وي ، د ټولو هغو پرمختګونو چې د تګ راتګ او تړاوونو په برخه کې ترلاسه شوي ، نن هم ځینې هېوادونه لکه برازیل او زایر د ارتباطي کمزورۍ او د خپلې ځمکې د پراخو ځمکو بې اغېزې اشغال څخه ځورېږي ، همدا د ارتباطاتو او سیاسي کنترول په لاره کې خنډونه ، شونې ده چې د واحد حکومت د تجزیې لامل شي ، په داسې حال کې چې د داسې پېښو تحمل په فدرال حکومتونو کې اسانه وي .

دا ربښتیا ده چې د فدرالېزم نظام د بنې له پلوه د ټوټه ټوټه او تړانګې په څېر هېوادونو تر ټولو غوره حکومتي طریقه ده ، یو هېواد چې له اوږدوالي له پلوه زیات اوږد وي او له یوې څخه د زیاتو سیمه ییزو هستو لرونکی وي ، غوره به ورته دا وي چې فدرال نظام په کې پلی کړي .

فدرال حکومتونه کولی شي له دوه سیمه ییزو هستو څخه د زیاتو په لرلو سره د دوه یمو درجو سیمه ییزو هستو په بنودلو سره همغږي کړي . ننني زیاتره فدرال حکومتونه څو هسته یي دي . د کاناډا ، نایجریا ، پاکستان او استرالیا هېوادونه دیو فدرال بنسټي قانون په تدوین سره کولی شي د بېلابېلو سیمو تر منځ یو ځای توب منځته راوړي . په دې ترتیب سره یو فدرال حکومت معمولاً د زیاتو انساني تجمع مرکزونو لرونکی وي ، چې د پراخو کم مېشتو او بې مولده سیمو په وسیله یو له بل څخه بېل شوی وي چې غوره بېلګه یې د استرالیا او کاناډا هېوادونه دي .

د فدرال حکومتونو پلازمېنې معمولاً له ایالتونو څخه خپلواکې او حکومت پورې تړلې ځمکو کې ځای پر ځای کېږي ، دا چاره د هغو رقیبو او سیالو ایالتونو چې د پلازمېنې کېدو شرایط لري د سیالۍ مخه نیسي (۳۷ : ۱۵۲).

دنایجریا په هېواد کې له لوېدیځو سیمو څخه د یو ښار بېلول او د هغې ټاکل د یو فدرال پلازمېنې په توګه د دوو لاملونو له امله وو.

۱. دا ښار د استعمار پر مهال د دولتي اسنادو خوندي ځای و.

۲. دې ښار د هېواد د غوره بندرونو په توګه کولی شول د شمال وچو تړلو سیمو لپاره د فدرال حکومت داخلي سیمو لپاره د لاس رسي تضمین وکړي (۳۷ :۱۵۳).

د فدرال نظام د هغو ځمکو د اداري لپاره غوره سیاسي لاره ده چې مختلفې پرګنې ( ژبنۍ ، مذهبي ، قومي اوفرهنګي ) په کې استوګنې وي . دا ډول د حل لاره په تېره په هغو برخو کې چې سیمه ییز تفاوتونه په کې وي او د هېواد د هرې سیمې وګړي چې په دې هېواد کې استوګن هېواد خپل هېواد ګڼي.

فدرال چوکاټ د انعطاف قبلونې له امله ، د ځمکو د اداري وړتیا چې مخ په پراخېدونکې حالت کې ده ، اکثریت د هغو سیمو لپاره چې تر دې مهاله ورسره نه وي یو ځای شوې ځانګړي ترتیبات وړاندې کېږي . د امریکا متحده ایالاتو ، هندوستان ، مکزیک

او برازيل خپل څو سيمه ييز موقعيت د قلمرو له سطحې څخه د ايالت سطحې ته چې د فدرال حکومت لومړی درجه وېش ګڼل کېږي لوړ کړي .

د فدرال نظام بل غوره والی د فردي پانګې اچونې د تشويق شونتيا ده . د امريکا متحده ايالاتو د اقتصادي چټکې پراختيا تر ډېره بريده د همدې لامل د پکار اچولو پايله وه ( ايضاً : ۱۵۴).

دحقيقي فدرالي نظام ايجادول په هغو هېوادونو کې چې سربېره پر زياتې پراختيا د قومي ، ژبني تفوق لرونکی وي د چارو اداري د اسانتياوو لپاره وي ( ۳۷ : ۹۹) .

**۳ . کنفدرال هېوادونه**

د څو دولتونو يا هېوادونو يوځای توب ته چې د دفاع او مرستو په موخه سره يو ځای شوي وي ورته کنفدرال حکومتونه يا کنفدراسيون ويل کېږي . کنفدراسيون د هېوادونو پر وګړو د مرکزي ځواک لرلو ته ژمن نه وي او غړي هېوادونه يې په باندېني او داخلي سياست کې ازاد وي . د کنفدراسيون حکومت غړي هېوادونه په نړيوالو اړيکو کې ځانګړو هېوادونو په څېر پاتې کېږي ، مګر جنګ به خپلو منځونو کې تحريموي او د نورو د جنګ پر وړاندې په متحده توګه اقدام کوي (۱۱ : ۵۳ ، ۵۴).

همدارنګه پوهاند دوکتور وديرصافی کښي : کنفدرالي د دوو يا تر دوه زياتو هېوادونو يو والي ته وايي ، چې دا يووالی د يو نړيوال تړون پر اساس منځته راځي . په کانفدرېشن کې د فدرالي نظام برعکس هر هېواد ځانګړی خپلواک شخصيت پېژندل کېږي او د نړيوال حقوقي اهليت لرونکي وي او همدغه اهليت ته لا دوام ورکوي . دا هېوادونه يوازې د خپلو ګټو په پار يوه نړيواله ارتباطي يابهرنۍ شعبه کې ګډې کړنې کوي ، د نړيوالو حقوقو له مخې د کانفډرېشن هر يو غړی يو ځانګړی شخصيت لري ، د دغو هېوادونو حقوقي اهليت او خپلواکي د بل هيڅ هېواد په ګټه نه وي . هر وخت چې د کانفډرېشن غړي هېوادونه خپلې موخې ترلاسه کړي ،نو کانفډرېشن توب ته پای ورکوي .

دا مهال په نړۍ کې د کانفډرېشن هېوادونو کومه بېلګه نېشته . کانفډرېشن هېوادونه ډېرې مهال د متقابلو مرستو او ګډو پېښو له امله رامنځته کېږي ( ۲۷ : ۴۷ ).

کنفدرېشن هغه دولتونو ته ویل کېږي چې دوه یا څو دولتونه د یو تړون له مخې یو له بل سره ژمنه کوي چې په ځینو ځانګړو ساحو کې د بېلګې په توګه سوداګریزو ، نظامي او یا فرهنګي برخو کې به ټولې چارې یو ګډ کمېسیون ته سپاري ، بناءً دا ډول هېوادونه په خپلو نورو ټولو داخلي چارو کې بشپړ ازاد وي ، خو په هماغه اړوند ساحوکې بیا هیڅ یو له نوموړو دولتونو څخه خپلواک صلاحیت نه لري او هماغه شورا صلاحیت لرونکې وي .

په کنفدرېشن رژیم کې د فدرېشن بر عکس هر غړي دولت خپل هویت ساتلی وي او د پوره نړیوالو حقوقي اهلیت لرونکی وي . دې دولتونو یوازې د خپلو ګټو له امله د نړیوالو اړیکوپه یوه شعبه کې سره اتحاد کړی وي .

د یو کنفدرېشن د تحقق لپاره لاندې شرایط لازمي ګڼل شوي دي .

۱ـ د یو څو ازادو دولتونو شتون چې د خپلو چارو په یوه یا څو برخو کې د ګډ برخلیک غوښتونکي وي ، خو نه غواړي چې خپل بنسټیز حاکمیت له لاسه ورکړي .

۲.د کنفدریشن دولتون ترمنځ یو نړیوال تړون یا معاهده موجوده وي چې ددې کنفدرېشن د تشکیل شتون تایید کړي ، او دا تړون د کلي او عمومي شکل لرونکی وي او ټول غړي دولتونه باید هغه تصویب او اطاعت ترې وکړي .

۳.د کنفدرېشن د چارو تنظیم او اداري لپاره د لازمو نهادونو رامنځته کېدل چې په کې د غړو دولتونو استازي سره را ټول شوي وي .

۴.د غړو دولتونو لخوا کنفدرېشن ته د حاکمیت لېږد باید جزوي وي ،هسې نه چې د هغوی حاکمیت د مرکزي حاکمیت قربان شي .

۵.د کنفدرېشن ټول تصمیمونه او پرېکړې د ګډ کمېسیون د استازو د رایو په اتفاق سره تر سره کېږي .

۶. د کنفدرېشن له غړو دولتونو هر يو يې کولی شي په خپل تصميم سره له دغه اتفاق څخه بېرون شي (۱۳: ۷۶ ).

په اخر کې بايد يادونه وکړو چې نن ورځ د کنفدرېشن دولتونه شتون نه لري ، د سوېس دولت په لومړيو وختونوکې د کنفدرېشن بڼه درلوده چې په ۱۸۱۳م کال کې جوړ شو او تر ۱۸۴۸ م کال پورې يې پايښت درلود، چې بيا وروسته په فدرالي دولت وا وښتو .

د فدرالي او کنفدرالي دولتونو تر منځ يو څه ورته والي او توپيرونه شته چې په لاندې توګه يې روښانه کوو :

**۲.۲.۳.۲.۱.۴. دفدرالي او کنفدرالي دولتونو ترمنځ ورته والی**

د فدرال او کنفدرال دولتونو ترمنځ ورته والي په لاندې ډول دي .

۱. په فدرالي او کنفدرالي دواړو کې ازاد او خپلواک دولتونه د يو يا څو ځانګړو موخو لپاره نوموړي نظامونه منځته راوړي .

۲ـ د ګډو موخو د لاسته راوړلو لپاره يو با صلاحيته مرکزي تشکيل رامنځته کوي چې شريکې موخې تر سره کړي (ايضاً:۷۷).

**۳.۲.۳.۲.۱.۴. د فدرال او کنفدرال دولتونو ترمنځ توپيرونه**

د فدرال او کنفدرال دولتونو ترمنځ توپيرونه په لاندې ډول دي .

۱ـ د واحده حاکميت له مخې : په کنفدرېشن کې ګډ دولتونه د واحده حاکميت څخه نه محرومېږي، په داسې حال کې چې په فدرالي نظام کې ګډ دولتونه له خپل واحده حاکميت څخه محرومېږي ؛ او يو نوی دولت منځته راوړي .

۲. د اړيکو له مخې : په کنفدرېشن کې اړيکې يوازې په هماغه مشخصه ساحه کې وي په کومه کې يې چې يو والی کړی وي ، خو په فدرالي نظامونوکې مرکزي دولتونه په سيده توګه د خپلو خلکو سره په اړيکه کې وي او مستقيماً پرې قانون پلی کوي .

۳ـ د قانون له مخې : که په کنفدرال نظام کې ګډ یو والي سره د قانون د وضع کولو صلاحیت نه وي ، نوموړی یو والی یوازې وړاندیزونه وړاندې کوي او قوانین د اړوند دولتونو لخوا وضع کېږي ، خو په فدرالي نظامونو کې مرکزي دولت په هغو چاروکې چې ورته سپارل شوې وي په ازادانه توګه کولی شي چې قانون وضع کړي .

۴. د دولت له مخې : فدرالي نظام د نړیوال اعتبار له مخې یو دولت ګڼل کېږي او په کې شامل دولتونه عموماً د کوم نړیوال سازمان غړیتوب تر لاسه کولی نه شي ، ځکه چې دوی خپلواک نه دي . خو په کنفدرال نظام کې شامل دولتونه بیل بیل حقوقي شخصیت ګڼل کیږي .

۵. د انفصال له مخې : د کنفدرال یو والی موقتي او د یو تړون پر اساس شوی وي او هر وخت کولی شي سره بېل شي ، خو په فدرالي دولتونو کې مرکزي دولت هیڅ یو شامل شوي دولت ته کوم چې فدربشن ته د شاملېدو وروسته ایالتي شکل غوره کوي ؛ د انفصال صلاحیت نه ورکوي .

۶. دجنګ له مخې : که د فدرال دولت د ننه جنګ پیښ شي هغه ته داخلي جنګ ویل کېږی ، خو که د کنفدرال دولتونو ترمنځ جنګ پیښ شي ؛ نړیوال جنګ ورته وایي .

۷. دموخو له مخې : په کنفدرال نظامونو کې د موخو ساحه محدوده وي لکه یوازې دفاع ، بېروني چارې ، سوداګري ... ، خو په فدرالي نظام کې ټولې ملي ګټې او موخې په پام کې نېول کېږي (۱۳: ۷۷ ، ۷۸).

## ۳.۱.۴ . د هېوادونوپراختیا

دیوهېواد پراختیا له ټولې هغې جغرافیایي محدودې څخه عبارت ده چې د هېواد اوسېدونکي په کې استوګنه کوي او دا هېواد په‌کې د خپل حاکمیت او نفوذ چارې ترسره کوي ( ۱۰ : ۳۹).

تر ( ۲۰۱۱م ) کال پورې نژدې ۱۹۳ خپلواکو (ازادو ) هېوادونو په نړۍ کې شتون درلود چې د ملګرو ملتونو په ټولنې کې يې غړيتوب درلود. يو شمېر نور ازاد هېوادونه هم شته چې ددې ټولنې غړيتوب نه لري . سويس يا سويتزرلينډ تر ۲۰۰۲ م کال د بې طرفۍ سياست په لرلو سره ددې ټولنې غړی نه و ، سره ددې چې په ملتونو ټولنې کې يې غړيتوب درلود . د چين ولسي جمهوريت غړيتوب په دې ټولنه کې تر ۱۹۷۱ م کال پورې په تعويق کې اچول شوی و . فدرالي المان او د المان ديمو کراتيک جمهوريت تر ۱۹۷۳ م کال پورې د ملګرو ملتونو ټولنې غړي نه و. يو شمېر نور کوچني هېوادونه لکه اندورا ( Andora ) ، موناکو (Monaco) ، واتيکان (Vatican) او داسې نور هم شتون لري چې د ملګرو ملتونو ټولنې کې غړيتوب نه لري . سره له دې چې ددې ټولنې په ځينو فعاليتونوکې برخه اخلي . په هره برخه دنړۍ هېوادونه دپراخوالي له مخې توپير لري د بېلګې په توګه واتيکان ۱۰۸.۷ مربع ايکړه ، دچين ولسي جمهوريت ۹۵۹۶۹۶۱ کېلومترمربع ، د برازيل هېواد ۸۵۱۴۸۷۷ کېلومترمربع مساحت په لرلو سره يو له بله توپير لري . په همدې توګه دا چې لېدل کېږي د ملګرو ملتونو ټولنې تر ټولو پراخ هېواد روسيه د ۱۷۰۷۵۰۰۰کېلومتر مربع پراخوالي لرونکی ددې ټولنې د تر ټولو کوچني غړي هېواد يعنې توالو (Tuvalu) (چې ۲۶ کېلو متر مربع مساحت لري) څخه ۶۵۶۷۳۰ ځلې زيات پراخوالی لري .

په ټوليزه توګه هغه هېوادونه چې د ۲.۵ مېليون کېلومتر مربع څخه زيات پراخوالی لري لکه ( روسيه ، کاناډا، چين او د امريکا متحده ايالات ډير پراخ هېوادونه ګڼل کېږي . په داسې حال کې چې هغه هېوادونه چې د ۲۵ زره کېلومتر مربع څخه دکم پراخوالی لرونکي هېوادونه لکه (بروناى او لبنان) ډيرکوچني هېوادونه جوړوي .

له ۲۵ زره تر ۱۵۰ زره کېلومترمربع پراخوالي لرونکي هېوادونه لکه (انګلستان او پولنډ ) منځني هېوادونه او هغه هېوادونه چې له ۳۵۰ زره تر ۲.۵ مېليون کېلو مترمربع پراخوالی لري لکه (فرانسه او مکسيکو ) پراخ هېوادونه دي .

د نړۍ د هېوادونو د پراخوالي منځنی حد د ۷۷۷ زره کېلومتر مربع یا د ترکیې او چیلي هېوادونو برابر پراخوالی دی . په داسې حال کې چې د نړۍ له نېمايي څخه زیا ت هېوادونه له ۲۵۰،۰۰۰ کېلو متره مربع پراخوالي څخه کم دي (۴ : ۵۷، ۵۸).

د هېوادونو ډلبندي د پراخوالي له مخې چندان مفیده نه برېښي ، همدارنګه پراخوالی په یو ځای توګه او وګړو او په ځمکه کې د هغو د خورېدو څرنګوالی ، جغرافیايي موقعیت او د ځمکې فزیکي ځانګړتیاوو لکه آب وهوا ، نا اواري او طبیعي منابعوته په نه پاملرنې نه شي کولی د ځواک معیار شي . بناءً غوره به داوي چې د هېوادونو ترمنځ توپیر تر زیاته د کیفي پلوه بر رسي شي ، نه د کمي پلوه ( ۳۷ : ۹۷).

په دې کې شک نیشته چې حاکمیت د نړۍ په یو شمېر هېوادونو کې د هغو له کوچنیتوب له امله تل تر پوښتنې لاندې وي ، د بېلګې په توګه موناکو په ۱۸۶۱ م کال کې د فرانسې تر حمایت لاندې راغی او له هماغه وخته تر ننه پورې د ښه ګاوندیتوب معاهدې له مخې له ځواکمن ګاونډي څخه مرسته اخلي ( ۴ : ۵۸).

د سان مارینو هېواد چې سربېره پر کوچنیتوب د ایټالیې په وسیله په جغرافیايي ډول راګېر شوی ، لکه چې په ( ۲.۴ نقشه ) کې لیدل کېږي ، د کوچنیتوب او ځانګړي وضعیت له مخې د خپل ګاونډي هېواد په اقتصادي او سیاسي ګروګان کې دی .

دسان مارینو جمهوریت له ۱۸۶۲ م کال څخه د ایټالیې سره ګمرکي اتحادیه لري او له اقتصادي پلوه هم د هغه هېواد سره مرسته کوي ، په دې جمهوریت کې په اردو کې خدمت کول د اوطلبانه کار دی او هر وخت چې لازمه وي له ۱۶ـ ۵۵ کلونو عمر لرونکي سړي له هېواده د دفاع لپاره احضارېږي .

د لختن شټاین پرنس نشین هېواد چې د راین سیند په پاسنیو برخو کې موقعیت لري ، د اتریش او سوېس په منځ کې د ۱۹۲۳ م کال د تړون له مخې له ګمرکي پلوه د سوېس متحد ګڼل کېږي او د همدې هېواد له پولي واحد څخه ګټه اخلي ، همدارنګه یې پُستي او ګمرکي اداري د سوېس سره ګډې دي . سوېس د لختن شټاین دیپلوماتیک استازیتوب په

غاړه لري . دا هېواد هم لکه د نورو کوچنيو هېوادونو په څېر فوځ نه لري ، لختن شتاين په ۱۹۹۲ م کال کې د ملګرو ملتونو غړی شو ( ۳۷ : ۹۷ ، ۹۸).

د اندورا موقعيت د اسپانيې او فرانسې تر منځ داسې دی چې اندورا د اسپانيې او فرانسې د کليسا په وسيله په ګډه توګه اداره کېږي . دلته ښايي دا پوښتنه را ولاړه شي چې ايا د اقتصادي او نظامي پلوه حد اقل پراخوالي ټاکل د هېوادونو لپاره اړين دي او که نه ؟ . (۴ : ۵۸)

معمولاً ديو هېواد زياته پراختيا دکمو پراخو هېوادونو په پرتله برتري لري ، د ځواک د لامل په توګه مطرح کېږي . د بېلګې په توګه دسوېس هېواد سره له دې چې د اقتصادي پلوه د اروپا له پرمختللو هېوادونو څخه دی د کم پراخوالي له امله د نظامي پلوه ستونزې لرونکی دی او په همدې دليل يې دخپل تاريخ په اوږدو دسياسي ـ اقتصادي ډلبنديو څخه ځان غاړې ته کړی ، آن چې د ملګرو ملتونو د ټولنې غړيتوب يې هم نه دی قبول کړی . ددې په مقابل کې که چېرې يو هېواد د پراخې بې کښته او له استوګنې څخه تشې ځمکې لرونکی وي او وګړي يې دغرنيو او يا صحرايي سيمو په وسيله يو له بله ليرې پراته وي ، دداسې هېوادونو اداره زېربنايي تاسيساتو ته اړتيا لري ، چې دا کار زيات لګښتونه غواړي ، د بېلګې په توګه د روسيې هېواد زيات پراخوالی د جغرافيايي طول له پلوه ددې لامل شوی چې د ډيرې ختيځې سيمې بيرنګ تنګي او مسکو ترمنځ د وخت له مخې يوولس ( ۱۱) زماني سيمې موجودې دي . دا دساعتونو د وخت زيات توپير مرکزي حکومت ته زياتې ستونزې منځته راوړي . دا موضوع په (۴.۳نقشه ) کې روښانه کېږي ( ۳۷ : ۹۹ ).




(۲.۴) نقشه : په پخواني شوروي کې زماني مهمې سیمې (ایضاً :۹۹).

هغه حکومتونه چې ځمکې یې په داسې بڼې وي چې وګړي یې په حاصلخېزه سیمو کې ګڼ استوګن او پراخې ځمکې یې په مخ کې له استوګنو څخه خالي وي لکه د کاناډا " سپر " سیمه ، داسې هڅه کوي ترڅو وګړي تشویق کړي چې په خالي ځمکو کې استوګن شي او ددې وضعې منفي اغېزې جبران کړي . د یادولو ده چې همدا کار د افغانستان په شمال ولایتونو کې مومند بابا هم کړی و. د سوډان په هېواد کې د ځمکې د پراخوالي مسله د بېلتون غوښتونکو ځواکونو سره نېغ په نېغه په تړاو کې ده ، چې د دولت سره د ازادۍ له وخته په پرله پسې توګه په جګړه کې دي . سوډان یو پراخ هېواد دی چې **۲.۵** مېلیون کېلومترمربع پراخوالی لري چې په شمال کې د عربي افریقا څخه تر جنوب کې تور پوستې افریقا پورې پراخه دی . په پای کې د پلازمېنې په ګاوند کې شمالي سیمو اوسېدونکي له عربي نژاد څخه دي په داسې حال کې چې د جنوبي لمنو اوسېدونکي د نژادي ، فرهنګي او تاریخي پلوه د تور پوستو افریقایانو سره نژدې تړاو لري . ددې دوو استوګنو سیمو ترمنځ واټن کې وچې دښتې او جبه زارې دي ، بنا پردې حاکم هیات ددې دواړو سیمو ترمنځ د تړاو

د پیداکولو او د بېلتون غوښتونکو ځواکونوسره د مخامخ کېدو لپاره تل د ستونزو سره مخامخ وي ( ۳۷ : ۹۹، ۱۰۰).

زیاتره هغه هېوادونه چې په تدریجي توګه یې د ځمکې پراخوالي له پلوه پراختیا کړې وي او پراخه ځمکې یې لاس ته راوړې وي په اخر کې د غیر قابل کنترول مرزي ځمکو ته د نه لاس رسي له امله د مرکزي دولت په وسیله تجزیه شوي وي . دا کار د لرغونو امپراتوریو لکه ( روم، غنا او ازتک ) د ټوټه کېدو لامل و . د وروستۍ استعماري امپراتورۍ آن شوروي اتحاد ټوټه کېدو کې هم یاده چاره اغېزمنه وه . په همدې توګه نن ورځ د سوډان او هندوستان هېوادونه هم د حساس لامل په توګه ګڼل کېږي ( ایضاً : ۱۱۰).

په دې کې شک نیشته چې د نړۍ اوسنیو هېوادونو یو زیات شمېر یې اوسنۍ پراختیا د پراختیا غوښتنې د یوې دورې په پای کې لاس ته راوړي د بېلګې په توګه د فرانسې پراختیا د ختیځ پر لور د پرله پسې کلونو په اوږدو کې شوې ، یا په اوسنۍ بڼې سره رومانیه چې پخوا دوه ځانګړې کوچنۍ سیمې (والاچیا Walachia او مولداویاMoldavia )وې ؛ ورځخه منځته راغلې . یا د مسکو ناحیې اطرافي سلطنت او یا د متحده ایالاتو چې په لومړنیو (۱۳) ایالتونو د تدریجي زیاتوالي په پایله کې راغلی . دا ځمکنۍ پراختیا او رشد چې د هېوادونو نظامې او سیاسي قوتونو په وسیله ترسره شوی ، د ځینو پوهانو په اند طبیعي امر دی ( ۴: ۵۸).

روسو په خپل مشهور اثر کې د ټولنیز قرارداد په نوم چې په ۱۷۶۲م کال کې چاپ شو په دې اړه داسې لیکلي : کولی شو یو سیاسي واحد یا یو هېواد له دوه اړخونو مطالعه کړو ، یو یې د پراختیا او بل یې د نفوسو له مخې . د نوموړي په آند د یو هېواد مطلوبه او مناسبه پراختیا ددې دواړو پدېدو تر منځ تناسب پورې تړاو لري ، ځکه هر هېواد له وګړو څخه متشکل شوی چې په دې هېواد کې ژوند کوي او موجوده ساحه دې وګړو ته د ژوند وسایل برابروي . بنا پردې د هېواد لپاره په بشپړه توګه مطلوب او مناسب پراخوالی هغه دی چې د پراخوالي له مخې اوسېدونکو ته د ژوند او اوسېدلو ټول وسایلو د برابریدو شوتتیا په کې میسره وي . او یا د وګړو شمېر په دې اندازه وي چې د هغه هېواد له ټولو تولیداتو څخه ګټه

وکړای شي . د همدې دوو پدیدو د څرنګوالي په رڼا کې او د تړاو له مخې کولی شو چې د یو هېواد ځواک وارزوو، ځکه که چېرته د یو هېواد پراختیا د نفوسو په پرتله زیاته وي نظامي دفاع یې ستونزمنه وي او له طبیعي سرچینو څخه یې اغېزمنه ګټه نشي کولی ، همدارنګه که چېرې د یو هېواد پراختیا د نفوسو په پرتله کمه وي د اړتیا وړ زیاتره خوراکي توکي یې باید له بېرون وارد شي (ایضاً: ۵۸).

روسو د یو هېواد لپاره د حقیقي اندازې ټاکلو موضوع د هېواد د چارو د ادارې له نظره هم تر بحث لاندې ونیوله او هغه یې د انسان د بدن ودې پورې پرتله کړه . د نوموړي په آند د پراختیا په زیاتوالي سره فرهنګي یو والی له منځه ځي او کلي وحدت منځته راتلو چارې د ستونزو سره مخامخېږي . په دې توګه لکه چې لېدل کېږي روسو د هېوادونو لپاره د یو متعادل پراخوالي د رامنځته کولو په فکر کې و . حال دا چې د نړۍ په سیاسي نقشه کې یو شمېر هېوادونه د متعادل پراخوالي د نه لرلو سربېره کلونه کلونه د سیاسي ازادۍ لرونکي دي . د روسو بله تېروتنه دا وه چې په دې باره کې یې ټول جغرافیایي او اغېزمن لاملونه له پامه غورزولي وو، او یوازې یې د پراخوالي پر لامل تاکید کولو.

له روسو وروسته یو بل تن درینر (G.T. Renner) په نوم پوه هم په ۱۹۴۲م کال کې هڅه وکړه تر څو د نړۍ نوې او احتمالي سیاسي نقشه برابره کړي . د نوموړي په آند کوچني او لږ ځانه د دفاع نه لرونکي هېوادونه باید له منځه ولاړ شي ، او په دې توګه به د هېوادونو سرچینو او پراخوالي تر منځ تعادل منځته راشي ، تر څو په پایله کې یې په ټوله نړۍ کې سوله او قراري رامنځته شي (۴: ۵۹).

په هره بڼه د پراخوالي له مخې تر ټولو غوره پراخوالی هغه ده چې د وګړو خواره واوره مېشت کېدل په کې تر پولو پراخوالی ولري ، په بله ژبه د هېواد خاوره باید تر دې اندازې پراخوالی ونه لري چې یو شمېر برخې یې د ګاونډیو ملتونو په واک کې وي او نه دومره کوچنی وي چې نه شي کولی چې نه شي کولی خپل ملت ته په خپله خاوره کې ځای ورکړي . په لومړي حالت کې د سیاسي استقرار منځته راتلل د ستونزو سره مخامخېږي ، په دې اړه کولی شو د ایټالیې په شمال کې د تایرول (Tyrol) سیمې د الماني ژبې وګړو د

وضعيت يادونه وکړو . په دويم حالت کې هم هېوادونه څه کوي د خپل ملت وګړي بېرته د هغو اصلي ټاټوبي ته ورستانه کړي ، د بېلګې په توګه د چکوسلواکيا د سدوتنلينډ (Sudutenland) سيمې په اړه د المان ادعا چې بالاخره د دغې سيمې وګړي المان ته په ۱۹۴۵م کال کې ولېږدول شول .

په هرصورت اګر چې د پراختيا لامل به يوازې د هېوادونو د پياوړتيا او کمزورتيا وسيله نه وي ، مګر سربېره پر دې چې له پخوانيو زمانو راهېسې يې چې دامپراتوريو د منځته راتلو مفکوره راپورته شوې ، يوازې يې دولکې لاندې ځمکو په پراختيا فکر کولو ځکه د زياتو ځمکو په لاس ته راوړلوسره يې کولی شول چې زيات وګړي هم تر خپلې ولکې لاندې راولي ، بنا پردې د يوې امپراتورۍ زياته پراختيا د هغې د عظمت او ځواک غوره دليل و. لومړنيو وګړو هر مهال زياتې غذا ته اړتيا درلوده ، په څنډو او ګاونډيو يې حمله کوله او د نويو ځمکو په لاس ته راوړلو به يې د ځان لپاره خوراکي سرچينې برابرولې او ځينې وخت به د امپراتوريو جوړولو ته هڅېدل ، آن چې اوس مهال هم د بېلګې په توګه که دوه هېوادونه بلژيک او استراليا پرتله شي لېدل کېږي چې سره له دې چې داقتصادي ، ټولنيز او آن د وګړو د شمېر له پلوه ورته والی لري . په استراليا کې د زيات پراخوالي له امله په راتلونکې کې د يو سياسي لوی ځواک د رامنځته کېدو شونتيا برابره ده . حا ل دا چې بلژيک کې نيشته . پردې سربېره په ځينو هېوادونو کې شونې ده چې د زيا ت پراخوالي ارزښت د نورو لاملونو په وسيله له منځه لاړ شي . د بېلګې په توګه که چېرې د يو هېواد نفوس ډېر لږ وي زيات پراخوالی يې هم د ستونزو لامل ګرځي ، خو که څه وشي تر څو چې وګړي په کم نفوسه سيمو کې ځای پرځای شي . يو له هغو دلايلو څخه چې ددې لامل کېږي چې زيات پراخوالی د يو هېواد د ځواک لاملونو څخه وګڼل شي دادی چې معمولاً هر څومره چې د يو هېواد پراخوالی زيات وي دآب وهوا اومعدني سرچېنو د تنوع شونتيا او په پايله کې يې د کرنيزو ، معدني او صنعتي چارو د پراختيا شونتيا زياتېږي چې په پايله کې هېواد کولی شي داخلي سرچېنو څخه ګټنې وکړي ،د وګړو ژوند تامين کړي او ټولو هېوادونو ته اړ نه شي (۴: ۶۰).

ډېر داسې هېوادونه شته چې له دې قانون څخه په ټوليزه توګه مستثنی دي ، په دې معنی چې پر کوچني والی سربېره د معدني ډول ډول او ګڼو سرچېنو سيمې لري او له همدې امله د پراخو هېوادونو په پرتله غني وي ، د بېلګې په توګه د چک ، سلواک او اسپانيې هېوادونه چې د لويو هېوادونو په پرتله د ډول ډول او زياتو سرچېنو لرونکي دي . په داسې حال کې چې برعکس ايټاليا او ناروي هېوادونه د کوچنيو زياترو هېوادونو په پرتله فقير دی . د لګسمبورګ هېواد چې د پراخوالي له مخې د نړۍ يو له زياتو کوچنيو هېوادونو څخه دی د اوسپنې او ډبرو سکرو د غټو زېرمو په درلودلو سره له غني هېوادونو څخه دی . او په همدې دليل د بنې لکس (Benelux) او ګډ بازار اقتصادي ټولنو کې غړيتوب لرلی .

د زيات پراخوالي بل غوره والی د دښمن د حملو پر وړاندې د زيات مقاومت زمينې برابروالی دی ، په ځانګړي توګه په پخوانيو زمانوکې چې د لېږد را لېږد وسايلو او لارو د نن په پرتله چندان پرمختګ نه و ، کړي . پراخو هېوادونو په اسانۍ کولی شول خپل دفاعي وسايل لېرې پرتو سيمو ته ولېږدوي آن چې نن ورځ هم د علومو او صنايعو پراختيا او نور زيات پرمختګونه چې د لاور او جنګي وسايلو په ساحه کې شوي په پراخو هېوادونو کې له کوچنيو هېوادونو په پرتله په ښه توګه شوي (۴ : ۶۱) .

د يادولو ده چې زيا ت پراخوالی سره ددې چې ګڼ امتيازات لري ، ولې په مقابل کې يې ځينې عيبونه هم لري ، چې له دې ډلې په لومړيو هېوادونوکې د داخلي چارو اداره يو ستونزمن کار دی . په پخوا وختونو کې له مرکزي حکومت څخه د سيمو لېرې توب به ددې لامل کېدو چې په ناخوښو خلکو کې به يې د ازادۍ او بېلتون مفکوره پيدا کوله او په دې ترتيب به يې د مرکزي حکومت لپاره ستونزې زېږولې چې په پايله کې به يې د هېواد سياسي کمزورتيا لپاره زمينه برابروله . آن چې اوسمهال د اړيکو د پرمختګ سربېره په پراخو هېوادونو کې د داخلي چارو اداره د ستونزو سره مخ وي د بېلګې په توګه د سوډان هېوادکې چې ۲.۵ مېليون کېلو مترمربع پراخوالی لري ، د پراخوالي مسله يې د بېلوالي فعاليتونو سره نېغ په نېغه تړاو لري . د سوډان په پراخ هېواد کې ، عربان په شمال او تورپوستي افريقايان يې په جنوب کې استوګن دي ، ددې دواړو استوګنو سيمو تر منځ پراخ ډاګونه او

جبه زارې موجودې دي چې په جنوب کې بېلتون غوښتونکو ځواکونو د مقابلې په چارو کې يې حکومت لپاره ستونزې جوړې کړ ي دي او بالاخره د هېواد په تجزيه تمامې شوې . همدا چارې د لرغونو امپراتوريو لکه روم ، ګانا او ازتک د تو‌ټه کېدو دلايل او لاملونه وو . په پای کې وروستنۍ امپراتورۍ آن چې شوروي هم له دې چارې اغېزمن و او په نن وخت کې هم په ځينو هېوادونو کې لکه هندوستان کې يو حساس لامل ګڼل کېږی .

د يو هېواد پراختيا په ځانګړې توګه که څه هم نفوس يې کم وي بيا هم دستونزو زېږنده وي ، ځکه هغسې چې لازمه وي له طبيعي سرچېنو څخه ګټه نه شي اخېستلی ، په داسې وخت کې د هېوادونو لپاره د دفاعي پلوه هم ستونزې جوړېږي ، په دې معنی که چېرې بې استوګنې څنډې د ګاونديانو د تهديد سره مخامخ کېږي ورڅخه په بشپړه توګه د دفاع شونتيا نه وي ، ددې برعکس که چېرې يو هېواد کوچنی او ډير نفوس ولري او وګړي يې له سرچېنو څخه ګټه واخلي ددې زياته شونتيا لېدل کېږي چې ياد هېواد له اقتصادي پلوه پرمختګ وکړي ، سره له دې چې د دفاعي او نظامي پلوه کېدای شي کمزورى وي ، د بېلګې په توګه د سوېس هېواد چې د پراختيا له مخې کوچنی دی ، مګر له اقتصادي پلوه د اروپا له غوره هېوادونو څخه دی . دا چې د پراختيا له مخې د کوچنيتوب له امله نشي کولی نظامي غوره ځواک جوړ کړي له همدې امله د اروپا له ټولو نظامي او سياسي ډلبنديو څخه يې ځان ګوښه کړی ، آن چې تر ۲۰۰۲ م کال پورې يې په ملګرو ملتونو کې غړيتوب هم نه و؛ اخېستی.

په هره بڼه پورتنيو مطلبونو ته په پام سره دې پايلې ته رسېږو چې پراخوالی په يوازې توګه د يو هېواد د سياسي کمزورتيا يا پياوړتيا لامل نه ګرځي تر څو چې د يوهېواد طبيعي وضعه (جغرافيايي موقعيت ، فزيکي جوړښت ، اقليم او د خاورو ډولونه ) ، د کرنې ، معدني سرچينو ، انساني او اقتصادي وضعې څرنګوالی ورسره يو ځای نه وي ( ايضاً : ۶۲ ).

## ۴.۱.۴. دهېوادونو موقعیت

د یو هېواد موقعیت له دوه اړخه د څېړنې وړ دی : ۱) د ځمکې د کرې پر مخ د ریاضي موقعیت لـه مخې چې د مدارونو (عرض البلد ) او نصف النهارونو (طول البلد) لـه مخې مشخص شوي وي او مطلقه موقعیت ورته ویل کېږي ؛ ۲) د نسبي موقعیت له مخې . مګر د سیاسي جغرافیې ځینې نور پوهان او لیکوالان د هېوادونو موقعیت په ډېرو ډولونو سره ښیي او ټینګار کوي چې د هېوادونو موقعیت له څو اړخونو د څېړنې وړ دی چې په لاندې توګه به یې هر یو روښانه کړو (۳۸ : ۱۰۷).

### ۱.۴.۱.۴. ریاضي یا مطلق موقعیت

دغـه موقعیت تـه ریاضي موقعیت ځکه وایي چې د ځمکې د کرې پرمخ د ریاضی وضعیه کمیاتو (طول البلد او عرض البلد ) پـه ځانګړې توګه لـه استوا کرښې څخه یې د واټن له مخې د هېواد موقعیت ښودل کېږي.

ریاضي موقعیت هغه دی چې د مدارونو او نصف النهارونو کرښو په وسیله مشخص شـوي وي او مطلق موقعیت ورتـه ویـل کېـږي . دا ډول موقعیت ددې ښـودنه کـوي چـې د جغرافیایي پلوه یو هېواد له استوا کرښې څخه څومره لېرې او یا نژدې دی ، او یا لـه استوا او قطبونو څخه دیو هېواد د لېري والي او نژدې والي میزان راښیي ( ۳۷ : ۱۰۸).

دا ډول موقعیت یعنې له استوا څخه لېرې والی او یا نژدې والی لـه دې امله د ارزښت وړ دی چې د اقلیم ټاکونکو لاملونو څخه ګڼل کېږي . پـه یـو هېـواد کـې د اقلیم ښه والی او خرابوالی په نېغه توګه د هېواد په اقتصادي وضعې اغېزه لـري چـې دا وضعه پـه نوبت سره د هېواد د سیاست او نظامي ځواک په څرنګوالي زیا تې اغېزې لري .

یو شمېر زیات پخواني لیکونکي او پوهان چې د چاپېریالی جبر پلویان وو ، د سیاسي موضوعاتو د تحلیل په برخه کې ددې لامل د ارزښت یادونـه هم کړې ده . د اپلاتـون پـه آند ځینې سیمې له طبیعي پلوه د ښو او یا بدو وګړو په تربیه یا پالنه کې لـه نورو سیمو څخه توپیر لري . هېرودت پـه دې اړه لیکي :" د معتدل ډول خواصو لرونکي وګړي د همدې ډول

طبعيت لرونکې سيمې څخه منځته راځي ". يوه ډله پخوانيو او اوسنيو پوهانو د اب وهوا اغېزمنتوب د يوې سيمې د وګړو په تربيت او فکري او روحي شخصيت جوړولو ټينګارکړی ، ځينو نورو بيا تردې هم ډير اغېزمن ګڼلی او هغه يې (د اب وهوا اغېزمنتوب) د شخصيتونو او تمدنونو جوړولو يوازيني لامل ښودلی ، د بېلګې په توګه له ارستو رانقل شوي چې د سړو سيمو وګړي په ځانګړې توګه په اروپا کې زړه ور مګر کم فکره او کم هنره دي ، اسيايان هوښيار او هنرمند مګر بې زړه وي ، يونانيان چې ددې دواړو سيمو ترمنځ استوګن دي له دواړو خاصيتونو برخمن دی يعنې هم زړه ور او هم هوښيار دي ( ۲۰ : ۸۹).

دا ډول نظرونه زيات وو آن چې په ۱۶ مه پيړۍ کې هم د ليکوالانو له ډلې ځينويې لکه جين بودن (Jean Bodin) لکه د ارستو په څېر وايي د منځنيوعرض البلد سيمو اوسېدونکو لخوا د نړيوال سياست کنترو ل د اقليم په مناسب والي پورې تړاو لري . مونتسکيو (Montesquieu) په ۱۸ مه ميلادي پيړۍ کې په ګرموسيمو کې د غلامۍ د رامنځته کېدو او يا په سړو سيموکې د ازادۍ روحيه اقليمي اغېزې ګڼي .

پر پورته يادو شوو څرګندونو سربېره بايد څرګنده شي چې د هېوادونو سياسي ځواک او اقليم ترمنځ نېغ په نېغه تړاو نه شته ، ځکه چې د تاريخ په اوږدو کې مدنيتونو د چاپيريالي جبرونو په معتدله سيمو کې په يوازيتوب پراختيا نه ده کړې . که څه هم په دې اړه آن چې په ۲۰ مې ميلادي پيړۍ کې هم ځينې ليکوالان لکه هنګتنګتن ( Hungtington) د اقليم بدلون اغېزمن او ارزښتمن ګڼلو . په هره بڼه د آب وهوا د اغېزو څخه په دې اړه انکار نه شو کولی . يوازې دا چې دا اغېزې ثابتې ، منظمې او د وړاندوينې وړ وګڼل شي( ۴ : ۶۶، ۶۷).

همدارنګه دوکتور ميرحيدر دره هم خپل کتا ب (مباني جغرافيای سياسی ) کې د اقليم اغېزمنتيا لړه مني ، خو په ټوليزه توګه يې اغېزمنتيا ته قانع نه دی . نوموړي ليکي : نن ورځ دا جوته شوې چې د آب وهوا او د يوهېواد د سياسي ځواک ترمنځ داسې نېغ تړاو نه شته ، په حقيقت کې مادي تمدن او ثروت يا د يو هېواد سياسي ځواک نشي کولی چې د آب وهوا او يا د طبيعي ځانګړتياوو معلول وښيو( ۳۷ : ۱۰۹).

### ۲.۴.۱.۴. نسبي يا مرتبط موقعيت

له نسبي موقعيت څخه موخه له سمندرونو څخه نژدې والی يا نژدېتوب دی ، يا د يو قوي ، ځواکمن او پراختيا غوښتونکي هېواد ګاونډيتوب دي ، له ټاپوګانو جوړ يا هغه هېوادونه چې په ټوليزه توګه په وچه کې راګېر وي ، هغه هېوادونه چې د نړيوال کانال يا تنګي په ګاونډ کې موقعيت لري يو شمېر ښېګڼې او ستونزې لري چې د هغو څېړل د سياسي جغرافيې له پلوه مهم دي . له بله پلوه بايد پوه شو چې که څه هم ديو هېواد نسبي موقعيت ثابت دی ، ارزښت يې د وخت په تېرېدو سره بدلون کوي (۳۷ : ۱۰۹).

د نسبي موقعيت سياسي ارزښت د مطلق يا رياضی موقعيت په پرتله زيات وي ، ځکه د ټولو ځواکمنو او کمزورو هېوادونو په سياسي تصميم نيولو کې د ګاونډي هېواد ښکاره اغېزې لېدل کېږي چې د تاريخ په اوږدو کې يې بدلون موندلی دی او بنا ء پردې تل په نسبي توګه څېړل کېږي . ددې ډول موقعيتونو زياتره يې په حايل سيمو او يا هېوادونو کې لېدل کېږي . حايل هېوادونه معمولاً هغه کوچني هېوادونه يا سياسي واحدونه دی چې د دوو ځواکمنو هېوادونو ترمنځ موقعيت لري ،آن چې ځينې وخت ځمکنۍ بشپړتيا او ازادي يې هم د ملګرو ملتونو د ځواکونو په وسيله تضمن کېږي . د بلجيم ، هالند او لکسمبورګ هېوادونه معمولاً د فرانسې او جرمني ترمنځ د حايل په توګه وو . همدارنګه پولنډ ، چکوسلواکيه او رومانيه د مرکزي اروپا او شوروي ترمنځ د حايل په توګه وو( ۴ : ۶۷).

د يو هېواد نسبي موقعيت د هېواد بېروني مقام او مرتبې په معنی دی ، چې دمناسب موقعيت په لرلو سره دنړيوال ارزښت لرونکي کېږي . د هېوادونو د نسبي موقعيت ځينې بېلګې په لاندې توګه دي .

- د ځواکمن ګاونډيانو سره ګاونډيتوب .
- د ابناګانو او کانالونو په ګاونډ کې موقعيت .
- د تمدنونو او فرهنګونو ترمنځ د تړاو او تبادلې مرکزونه .
- د اوبيزو لارو سره د يو هېواد نسبت (۲۰ : ۹۰، ۹۱).

### ۳.۴.۱.۴. سوق الجیشي موقعیت

ددې ډول موقعیت ارزښت د هېوادونو سیاسي موقف په پام کې نېولوسره بدلون مومي ، د ځینو ځانګړو شرایطو سره کېدای شي ځینې هېوادونه یاځینې سیمې سوق الجیشي ارزښت پیداکړي اوپه داسې ځایونو یا مقامونو بدل شي چې له هغې څخه ګټې اخېستنې سمندري ، ځمکنۍ او هوایي لارې کنترول او وڅارل شي . بنا پر دې له دې ډول ځایونو څخه دهېوادونوپه ساتنې او یا یې برعکس د دښمنانو په تهدید کې ګټه اخیستلی شي ، چې په هره بڼه کې د هېوادونو پر ځواک اغېزمن وي . په دې باره کې یو بل ډول جغرافیایي موقعیت چې دځانګړي ارزښت لرونکی و او اوس هم د هېوادونو د پاملرنې وړ دی د معابرو او ابنا ګانو لکه د انګلیس کانال ، دجبل الطارق ابنا ، سسلي ابنا ، د سویز کانال ، ترکیي ابناګانې ( پاسفورس او در دانیل ) ، د باب المندب ابنا ، هرمز تنګي ، د پانامې کانا ل ، د ماجیلان ابنا او بالاخره د امید نیک دماغې (پوزې ) چې اوس هم د زیات سوق الجیشي اوسیاسي ارزښت لرونکي دي ، په ګاونډ کې یې ځای لرل دي( ۴: ۶۸) .

باید وویل شي چې دسوق الجیشي موقعیت ارزښت دسیاسي قدرتونوپه بدلون او یا د تکنالوژۍ په پرمختګ سره بدلون کوي ، دبېلګې په توګه په ۱۸مه مېلادي پېړۍ کې انګلستان په جنوبي اتلس سمندر کې دفالکلیند ټاپوګان په واک کې واخیستل ځکه چې د سوق الجیشي ارزښت لرونکي وو ، او د هغو په لاس ته راوړلو سره یې په ټولو هغو لارو چې د جنوبي امریکا له جنوب څخه غزېدلې وې ؛ څارنه شونې کړه . دبېلګې په توګه په ۱۹۱۴م کال کې یې د الماني کشتیو په لمنځه وړلو کې غوره رول درلود. په داسې حال کې چې د پانامې کانال په کېندلو سره دې سمندري سوداګریزې او ارتباطي لارې خپل ارزښت له لاسه ورکړ. په لومړیو وختونو کې چې د فالکلیند ټاپوګانو خپل ارزښت له لاسه ورکولو، د آیسلینډ ټاپو ورځ په ورځ ارزښت زیاتولو. له هغه مهال چې اړیکې او تړاوونه په اتلس سمندرکې د کشتیو په وسیله کېدل دآیسلینډ ټاپو موقعیت په شمالي عرض البلدونو کې خطرناک وو ، له همدې امله یې د ګاونډ اوبه کمې ترګټې لاندې راتلې ، مګر د لنډ پروازه هوایي الوتنو له امله یې ارزښت زیا ت شو ، نن ورځ چې اوږد پروازه جیټ الوتکې په یاد

ټاپوکې ناستې نه کوي تر یوه بریده یې ارزښت له لاسه ورکړ. په همدې توګه شمالي کنګل سمندر چې پخوا په بشپړه توګه له پامه لېرې غورزول شوی و ، نن ورځ د هوايي کرښو په وسیله تر ګټې اخېستنې لاندې دی او کاناډا ، ګرینلینډ او داسې نورې قطبي بې حاصله ځمکې داقتصادي اونظامي موخو لپاره تر استفادې لاندې نېول کېږي او سوق الجیشي ارزښت یې پیدا کړ ( ایضاً: ۶۹).

### ۴.۴.۱.۴. په وچه کې راګېر موقعیت

په وچه کې راګېر موقعیت هغې موقعیت ته ویل کېږي چې دغه هېوادونه ازادو اوبو ( سمندرونو او نورو ) ته هیڅ ډول لاس رسی نه لري ( ۲۰ : ۹۸). د هېوادونو مطالعه کې دجغرافيايي ځانګړتیاوو لکه پراختیا ، شکل ، موقعیت او سرحدونو سربېره چې په پام کې نېول کېږي ، وچه کې راګېر توب یا د سواحلو نه لرل هم د ارزښت وړ دی . اګر چې دا ډول ځانګړنې د سمندري هېوادونو په منځ کې په اداري واحدونوکې هم لېدل کېږي ، مګر دا چې ددې واحدونو ستونزې معمولاً اقتصادي یا تخنیکي وي نو په سیاسي جغرافیې کې د پام وړ نه وي . په داسې حال کې چې په وچه کې راګېر هېوادونه د ګڼو ستونزو سره لاس او ګریوان وي ځکه د اوبو او ددې هېوادونو ترمنځ نړیوالې پولې شتون لري ، له همدې امله وچه کې راګېرتوب یوه له نړیوالو مهمو موضوعګانو څخه شمېرل کېږي . ددې ستونزې د غوره والي دوه وجې دادي چې له یوې خوا دا هېوادونه سمندرونو ته لاس رسی نه لري او له بله پلوه نه شي کولی په سمندرونوکې له شته سرچېنو څخه ګټه واخلي . پټه دې نه وي چې دکوچنیو سواحلو لرونکي هېوادونه لکه زایر ، اردن او عراق اوبو ته دلاس رسي په ستونزو اخته دي ؛ مګر اقلاً په نړیوالو اوبوپه کمو برخو دحاکمیت حق لري اوکولی شي په اغېزمنه توګه ورڅخه ګټه واخلي .

ددې هېوادونو اوبوته دلاس رسي یوازینۍ اصلي لاره داده چې دنورو هېوادونو له ځمکو څخه په اغېزمنه توګه ګټه واخلي . په دې اړه مهمه داده چې په ګاونډي هېواد کې د وړلو راوړلو اسانتیاوې لکه سرکونه ، د اوسپنې کرښې ، بندرونه او د لېږد وسایل ولري او د دواړو هېوادونو تر منځ حسنه اړیکې موجودې وي . سربېره پر دې چې سمندري هېوادونو

تـه د مـاليې وركـړه هم پـه زيـاترو برخـو كـې اړيـن ښـودل كېـږي ، ځكـه د سـاحلي هېـواد د نـه هوكړې پـه بڼه كې پـه وچې كې راګېر هېوادونـه پـه هيڅ بڼه سمندرونو تـه لاره نـه شي پيدا كولی . كه چېرې د واتيكان ښار هم يو ځانګړی هېواد وپېژندل شي ، نو ويلی شو چې پـه اوس وخت كې پـه نړۍ كې ۴۲ هېوادونـه پـه وچـه كـې راګېر موقعيت لـري ، چـې لـه دې ډلې يې ۱۵ هېوادونه په اروپاكې موقعيت لري چې زياتره يې د پرمختللو هېوادونو څخه دي .

تصادفي نه ده چې د نړۍ د ډېرو فقيرو هېوادونو له ډلې څخه يو ثلث يې پـه وچـه كـې راګېر هېوادونه جوړوي . د موقعيت له پلوه هغـه هېوادونـه چـې پراخـو لويـو وچـو لكـه افريقا او اسيا په منځ كې ځای لر ي د مالونو ، وګړو او مفكورو د لېږد رالېږد پـه برخـه كـې د زيـاتو ستونزو سره مخامخ وي ( ۴ : ۱۰۵ ).

پـه وچـه كـې راګېر هېوادونه آن چې د اړيكو د جوړولو او پايښت پـه برخـه كـې دفضـا لـه لارې هم د ستونزو سره لاس او ګريوان وي ، ځكه اړ دي چې د فضا لـه لارې تېرېدو لپاره هم له ګاونډي هېواده اجازه واخلي . معمولاً پـه وچـه كـې راګېر هېوادونـه اوبـو تـه د لاس رسي لپاره له لانجو ډک تـاريخ لـري . پـه وچـه كـې راګېر هېوادونـه نـه شي كـولی د ټولـو هېـوادونو سره سيده اونيغ په نيغه اړيكې ولري ، له همدې امله زياترو ته يې اجازه وركړل شوې ترڅـو د نورو هېوادونو له ازادو بنـدرونو اوسمندرونو لـه اوبـو څخـه ګټـه واخلي لكـه چكوسلواكيا هېواد ته چې د خپلو سوداګريزو چارو لپاره يې كولی شول د هامبورګ لـه بندرونو څخـه ګټـه واخلي ( ۲۰ : ۹۹ ) .

( ۱.۴ ) جدول: پـه وچـه كې دراګېر هېوادونو لښتليک ( ۱۷ : ۱۹۴ ).

| لويه وچه | پـه وچـه كې د را ګېر هېواد نوم | شميرېې |
|---|---|---|
| اسيا | ازبكسـتان ، افغانسـتان ، بوتـان ، تاجكسـتان ، قرغزسـتان ، لاوس ، مغولستان ، نيپال ، قزاقستان ، تركمنستان ، اذربايجان او ارمنستان | ۱۲ |
| اروپا | انـدورا ، اتـريش ، اسـلواكي ، سـپينه‌روسـيه ، سـان‌مـارينو ، سـويس ، لوګزامبورګ ، لختن‌شټاين ، مقدونيـه ، مجارستان ، چک ، مولـداوی او واتيكان | ۱۳ |

| | | |
|---|---|---|
| افریقا | ایتوپیا ، مرکزي افریقا ، اوګاندا ، بوتسوانا ، بورکینافاسو ، بوروندی ، چاد ، رواندا ، زامبیا ، سوازیلینډ ، لسوتو ، مالاوي ، مالي ، نیجر ، او زمبابوی | ۱۵ |
| امریکا | بولیویا او پاراګوای | ۲ |
| اقیانوسیه | نه‌یې لري | ۰ |

**۱.۴ . ۴ . ۵ . اوبو ته د لاس رسي موقعیت**

دا چې له اوبو او سمندرونو څخه ګټه اخېستل او اقتصادي او ټولنیزو اړیکو تر ټولو ارزانه او اسانه لاره ده او له همدې لارې دنړۍ ۱۰۰ ازاد هېوادونه او د نورو هېوادونو یو شمېر سیمې له همدې لارې ګټه اخلي ؛ نوویلی شو چې اوبیز موقعیت تر ټولو غوره او مساعد موقعیت ګڼل کېږي ( ۱۱: ۵۷). له دې موقعیت څخه د ګټې اخېستنې شرایط تر یوه بریده په ځینو لاملونو لکه فني او تخنیکي مهارت ، د خلکو د ژوند سطحه ، نظامي ځواک ، د هغو هېوادونو دسوداګرۍ پیمانه چې د هغو سره سوداګریزې اړیکې لري او نړیوالو اړیکوته د نورو هېوادونودرناوی ( ۲۰: ۵۷) .

اوسمهال په نړۍ کې له ۲۸ څخه زیات هېوادونه شتون لري چې په اوبو کې راګېر دي او په بشپړه توګه اوبیز موقعیت لري . برعکس په نړۍ کې زیات شمېر هېوادونه شتون لري چې اوبو کې راګېرنه دي ، مګر د اوبیزو سواحلو لرونکي دی . دسواحلو څرنګوالی د ګټې اخېستلو په برخه کې د سوداګریزو ، سیاسي او نظامي فعالیتونو د پرمخ بېولو په برخه کې د ارزښت وړ دی ، د بېلګې په توګه د شوروي اتحاد ، کاناډا او الاسکا شمالي زیاتې برخې د سختې یخنۍ له امله دیو کال په اوږدو کې نژدې لس میاشتې کنګل وي او د ګټې اخېستنې جوګه نه وي ، او یا په افریقا کې د ګاناسواحل چې ریګي دي او د مصنوعي بندرونو جوړول پرې زیات لګښت غواړي ( ۱۱: ۵۸).

**۱.۴ . ۴ . ۶. خواوو ته د لاس رسي موقعیت**

ابعاد یا لورو ته لاس رسی او سیاسي پولې له یوې سیاسي پولې څخه د بلې سیاسې سیمې د بېلوالي او پېژندلو غوره نښې دي . د همدې ابعادو شتون دی چې یوه سیمه کې

سیاسي یو والی رامنځته کوي ، په هغې سیمه کې چې هیڅ ډول د طبیعي وحدت او یووالي ځرک په کې نه وي (۲۰ : ۱۰۵ ، ۱۰۶).

### ۵.۱.۴ . د هېوادونو هستې

دهېوادنو هسته له هغې سیمې ځخه عبارت ده چې هېوادونه یې تر شاوخوا اباد شوي وي ، د نړۍ زیاتر و هېوادونو د تدریجي تکامل په جریان کې د یوې مرکزي سیمې ځخه سرونه راپورته کړي وي او بېلابېلې بنې یې ځانونو ته غوره کړې وي . په تاریخي لحاظ د هېوادونو د هستې سیمه زیاتره کرنیزه او ګڼ نفوسه سیمه اوسي ، ځکه خو د ډیر زیات یا اضافي کرنیز محصول او پر کرنې سربېره د نورو دندو او بوختیاوو فرصتونه هم په کې موندل کیدی شي . دا ډول هستوي سیمې په جغرافیایي لحاظ په غوره توګه د دفاعی ارزښت لرونکې هم وي ، او همدارنګه د ځانګړو او تبادلې وړ کرنیزو محصولاتو د تولید شونتیاوې هم په کې وي ، له همدې امله سوداګرۍ او صنعت ته زمینه برابریږي او پایله دا کیږي چې په دې سیمه کې سرکونه او ښارونه اباد شي په دې سره د ژوند سطحه لوړیږي . په خلکو کې یې د مرستې او یو والي روحیه پیاوړې کیږي . د سوېس هېواد د اروپا د زیاترو هېوادونو هستوي سیمه ده ، د پولنډ هستوي سیمه د رودر(Ruder ) او وستولا (Vistola) سیندونو په منځ کې پرته ده او د فرانسې هستوي سیمه د راین سیند او د ألپ غرونو لړیو په امتداد تثبیط شوې ده . هغه مهال ددې سیمې پلازمینه په لوګدونام (Logdunam ) یا اوسنی لیون (Lyon) ښار و، چې ددې هېواد په سویل ختیځ کې موقعیت لري . د انګلستان هېواد هسته د تایمز دره ده ، چې له ختیځ ځخه تر شمال بحیرې پورې پرته ده . د روسیې هېواد هسته د کیف سوداګریز ښار تشکیلوي ( ۱۰ : ۵۹ ، ۶۰).

دا ډول هستې د اروپا په ټولو هېوادونوکې لېدل کیږي ، په سوېډن کې د استکهلم لویدیزې دښتې ،په ډنمارک کې کوپن هاګن ته نژدې جزیرې او په یونان کې آتیکا دښتې ددغو ډول هستو ځخه عبارت دي .

په اسیا کې هم هېوادونو د معینو هستوپه شاوخوا کې پراختیا کړې . د بېلګې په توګه د چین هېواد هسته د اوسني چین په شمال لوېدیځو برخو کې د هوانګهو سیند او د هغه دمرستیا ل سیند په درو ( وادیو ) کې موقعیت لري . په همدې ترتیب د هندوستان هېواد هسته د ګنګا وادي وه چې د دوی د فعالیت مرکزهم و او لومړنی پلازمینه یې د کلکتې ښار و(۲۰ : ۹۳).

د نړۍ زیاتره هېوادونه د هغو د تدریجي تکامل په اوږدو کې له یوې مرکزي سیمې څخه چې په هغې کې د هغې هېواد ارمانونو اوحکومت بڼه غوره کړې وي په تشکل پیل کړی وي ، پس د هېوادونو هسته له هغې سیمې څخه عبارت ده چې په هغې یا د هغې په څنډو کې هېوادونه ایجادېږي . دا سیمې زیاتره یې شنې، سمسورې ،کرنیزې او زیات شمېر نفوس لري ، ترڅو په همدې ترتیب د کرنیزو اضافي محصولاتو د تولید شونتیا او په همدې توګه د اضافي وګړو مصروفیت په غیر کرنیزو فعالیتونو کې برابروي ، ددې ترڅنګ دا سیمې د جغرافیایي وړ او مناسب موقعیت په لرلو سره د دفاعي او مواصلاتي پلوه هم د ارزښت وړ وي ، چې البته وروسته دکرنیزو تبادلې وړ خاصو موادو د تولید زمینه ، د سوداګرۍ او صنایعو په ګډون او د هغو په پایله کې د ښارونو اوسرکونو پراختیا په کې مساعده کېږي او بالاخره ددې سمې د اوسېدونکو د ژوند سطحې د لوړېدو لامل شوې وي چې د اوسېدونکو ترمنځ یې د همکارۍ او یووالي روحیه زیاته لیدل کېږي . په دې اړه دسویس کنفدراسیون جوړښت یوه ښه بېلګه ده . دسنت ګوترد (St .Gothard) تونل پرانستل د ۱۳مې پېړۍ په لومړیو کې د آلپ د مرکزي او کم نفوسه غاړو د سوداګرۍ د پراختیا لامل شو ، سوداګرو له ځان سره له ایټالیا څخه غرنیو سیموته چې د هغو د اوسېدونکو د خدماتو څخه یې ګټه اخېسته سیاسي مفکوره او شتمني راوړه . لکه څرنګه چې ځینې خلک مصر دنیل سیند تخفه ګڼي ، سوېس د همدې کوتل تخفه ګڼي ، ځکه چې ددې ځای وګړو ددې سیمې د سوداګرۍ کنترول په لاس کې واخېستو او وروسته د لاسته ورغلو امتیازاتو لپاره یو له بل سره متحد شول . سره له دې چې دکانتونیانو دازادۍ مفکورې له ایټالیې څخه الهام اخېستي و، نو دسوېس هېواد لومړنۍ هسته د همدې کوتل په ګاونډ کې د ځنګلي چارکانتون سیمه وه (۵ : ۱۰۸ ).

د پولنډ هېواد د هغې هستې چاپېره چې د اودر (Oder) او وستولا (Vistula) سیندونو ترمنځ یې موقعیت لرلو ایجاد شوی ، په همدې سیمه کې په اتمه اونهمه پېړۍ کې د نورو ګاونډیوسیمو په پرتله د پراختیا زیاته زمینه برابره وه او د پوزنان (Poznan) ، کنیزنو (Gniezno) او کروزویکا(Kruszwica ) په سیمو کې کوچني ښارونه منځته راغلل . په همدې وخت کې لومړني کسبونه چې له ډلې یې تعمیرونه جوړول د سوداګرۍ په ګډون چې معمولاً له بحیرو څخه په ګټې اخېستنې دشمال پر لور د بالتیک بحیرې د مدخل په لور او د جنوب پر لور د دانیوب په طرف په دې ښارونو کې پراختیا راغله ، دا سیمه دپولنډ لومړنۍ او پخوانۍ هسته وه په اخر کې همدا وروستني د سرحدونو او د هېواد ساحه کې بدلونونه وو چې پلازمېنه لومړي پوزنان (Poznan) وروسته په جنوب کې کراکاو (Krakow) او بالاخره ختیځ کې وارسا (Warswa ) ته انتقال شوه .

فرانسه د هغو هېوادونو لپاره غوره بېلګه جوړوي چې د یوې مرکزي هستې په ګاونډ کې یې پراختیا موندلې . له میلاد څخه وړاندې په لومړۍ پېړۍ کې دفرانسې اوسنۍ ساحه د ایټالیې د لښکرو په وسیله د ژول سزار په مشرۍ انتقال او پولې یې د راین سیند او آلپ غرونو په اوږدو کې تثبیت شول ، چې پلازمېنه یې د لاک دونام (Lagdunam) یا د نني لیون (Lyon) ښار ، ددې هېواد په جنوب ختیځ کې او د رون (Rhone) او سون (Saone) سیندونو د یوځای کېدو په سیمه کې یې موقعیت لرلو ، له همدې ښاره د هغې وخت فرانسې ټولوسیموته سرکونه غزېدلي وو. ترمیلاد وروسته په څلورمه او پنځمه پېړۍ کې داسیمه د جرمني یرغلګرو په وسیله ونېول شوه او په یو شمېر کوچنیو هېوادونو ووېشل شوه . دا هېوادونه یوځل بیا د شارلمان ( ۷۷۱ – ۸۱۴ م ) پړاو کې یوځای شول ، چې البته پر فرانسې سربېره د هالند ، بلجیم ، د جرمني د لوېدیځ یوڅه برخې او د ایټالیې زیاتې برخې یې هم رانغښتلې چې پلازمېنې یې په آشن (Aachen) کې موقعیت درلود . یاده امپراتوري هم په ۸۴۳م کال کې یو ځل بیا په درې برخو ووېشل شوه او هرې یوې یې ځانګړی هېواد جوړ کړ. فرانسه هم په ګڼو ولایتونو ووېشل شوه چې هر یو یې دیو کونت په وسیله اداره کېدو . یو له دې ولایتونو څخه یې دپارس ولایت و ، چې وروسته یې بیا د اوسنۍ فرانسې د ایجاد هسته جوړه کړه . په ۹۸۷ م کال کې د پارېس مدافع قهرمانانو له ډلې د یوه زوی د

شمالي يرغلګرو پر وړاندې ددې سيمې د بادشاه په حيث وټاکل شو ،تر دې وروسته د فرانسې بادشاهان وتوانېدل چې تر ۱۷مې مېلادي پېړۍ پورې د فرانسې پراختيا اوسنۍ بڼې ته ورسوي (۵ : ۱۰۹).

پارېس د ۱۰۰ مېلو په اندازه له سمندر څخه واټن لري او ساين (Seine) سيند دپاسه ددې د دوه مرستيالانو د پيوستون په سيمه کې موقعيت لري . د فرانسې تاريخ له دې څخه په ګټې اخېستنې پورې نژدې تړاو لري . په هره بڼه د فرانسې هسته په يوولسمې پېړۍ کې هم له همدې ارزښت لرونکې وه ، فرانسه له هغو هېوادونو څخه ده چې د حکومت زياتره دندې او ادارې يې په پارېس کې متمرکز ې دي .

انګلستان هم يوه بله او دفرانسې سره ورته بېلګه وه ، رومن نيانو له ۴۹م کال وروسته انګلستان ونيولو، حا ل داچې ددې نېولو اغېزې د ويلز غرينو لمنو او سکاټلينډ کې لږې احساسېدې . ددې هېواد هسته د تايمز وادي وه چې په ختيځ کې تر شمال بحيرې پورې يې پراختيا لرله چې پلازمېنه يې ويرولاميام (Verulamiam) په ښارکې وه ، چې د لندن شمال لوېديز لورته ۲۰ ميلۍ کې يې موقعيت درلود. اوس لندن ددې سيمې سوداګريز لوی مرکز جوړوي . د برتانويانو وحدت د رومن نيانو په پړاو کې د انګلوساکسونيانو د يرغل په وسيله له منځه لاړو او هېواد په قبايلي کوچنيو سلطنتونو ووېشل شو ، مګر د انګلوساکسون وروستيو شاهانو پړاو کې چې يو ځل بيا ددې هېواد وحدت جوړشو لندن د غوره مرکز په څېر ارزښت تر لاسه کړو ، په تېره بيا د نارمن (Narmans) د اشغال په پړاو کې چې لوې کليساګانې او ودانۍ په کې جوړې او دسوداګرۍ او اداري چارو زياتره مرکزونه په کې متمرکز شول . سربېره پردې يو شمېر غوره سرکونه چې د رومن نيانوپه وسيله جوړ شوي وو له دې ښاره هر لوري ته غزېدلي وو. ددې ترڅنګ کشتۍ ګانې د تايمز سيند او لندن بندر څخه په ګټې اخېستنې ددې سيمې تړاو د ټولو سيمو سره تامينولو(۵ : ۱۱۰ ).

د شوروي اتحاد په تاريخ کې د ماسکو سيمه د پارېس او لندن په څېر د ارزښت لرونکې وه . په ټول شوروي اتحاد کې چې اروپايي او اسيايي برخې په برکې نيسي له جنوبه د شمال پر لور پراخ نباتي زونونه لکه سټپ (Steppe) ، ځنګلونه او بالاخره تندرا

(Tundra) ليدل كېږي . د روسيې لومړنى هېواد هم په لومړۍ ياده شوې سيمه كې په نهمه پېړۍ كې تاسيس او منځته راغى ، چې هسته يې دكيف (Kiev) سوداګريز ښار تشكيلوله . دې ښـار د دنيپـر (Dnieper) سـيند او د تـورې بحيـرې او بالتيـک بحيـرې تـر مـنځ د ټولوسيندونو د بهېدو په اوږدو كې پراختيا وموندله . دختيځ پلوه د تاتاريانو د يرغل په وسيله يې سوداګري ځنډ او ښارونه يې وران شول . ددې ځاى وګړي يو شمېريې د شمال په لـور شاته ولاړل او پـه ځنګلي سيمه كې چې وروسته د ماسكو ښارپه‌كې پراختيا وكړه استوګن شول . اوه پېړۍ وروسته يې په جنوب كې له لاسه وتلې سيمې بېرته لاسته راوړې . اصلاً ددې هېواد لومړنۍ هستې پراختيا په ۱۵مه مېلادي پېړۍ كې پيل شوه چې د ماسكو په څنډو كې يې ځاى درلود.

هغـه مهـال چـې يـو شـمېر اوسـېدونكي پـه تـدريجي توګـه ددې سـيمې اطرافـي ځنګلونوكې خپاره شول او په دې ترتيب د روسيې ځمكه په تدريجي مګر په زياته چټكتيا په وروستيو پېړيو يعنې دتزاريانو په دوران كې دهمدې لومړنۍ هستې په څنډوكې پراختيا ومونده (ايضاً:۹۳).

اروپـايي هېوادونـوكې هم همداسې هسـتې ليـدل كېـږي ، لكـه پـه سـوېډن كـې د ستاكهولم غربي دشتو ، په ډنمارک كې دكوپن هاګن نژدې ټاپوګانو او په يونـان كـې د اتيكا (Attica) په دښتوكې دا ډول سيمې ليدلى شو. مګرپـه جرمني كې موضوع بـل ډول ده ، ځكه ددې هېواد ريښتينى وحدت يـوازې پـه ۱۸۷۱م كـال كې منځتـه راغـى ، تـردې مخكـې د جرمني هېواد استازيو چې عملاً ازاد وو ، ځينې وخت د رايـن حـوزې منځنيو ښـارونو لكـه فرانكفـورت (Frankfort) ، مـاينز (Mainz )، وارمـز (Warms) ، سپير (Speyer) او كـولن (Koln) كې ملاقاتونه كول . همدې ناحيې د لرغـوني المـان كلتوري هسـته جوړولـه ، مګـر د المان له وحدت وروسته ددې نـاحيې پر ځاى ددې هېواد واكمنـانو د پراندنبورګ ــ پروشيا Brandenburg- Prussia سيمه ددې هېواد د هستې په بڼه وټاكله ، چې البتـه د برلين غـاړې او څنډې يې رانغښتلې . پـه دې ترتيب جرمني د دوو هسـتو پـه څنډو يعنې يـوه كلتـوري ( راين حوزه ) او بله يې سياسي ( دبرلين حوزه ) كې پراختيا كړې ده (ايضاً: ۱۱۱).

د ایټالیا هېواد هسته په څرګنده د روم د ښار او هغې په څنډه وکې موقعیت لري ، چې البته دا واقعیت یې د ۲۵۰۰ کلونو لپاره ساتلی دی ، سره له دې چې ددې هېواد اقتصادي هسته د شمال پر لور ښارونو کې چې په اوارو سیمو کې دي او غوره یې میلان ښار دی موقعیت لري ، آن چې په منځنیو پېړیوکې هم له دې سیمې د صنعتي او سوداګریزو پراختیاوو په لرلو سره د روم رقیب و .

د بلجیم هېواد شرایط هم المان ته ورته دي ، ځکه داسې یوه سیمه جوړوي چې ۱۸۳۰ م کال کې د هالند تجزیې او فرانسې د پراختیا وروسته په جنوب کې باقي پاتې شوه ، بروکسل د مرکزي موقعیت په لرلو سره له هماغه لومړنیو وختونو څخه د هغې هېواد د پلازمېنې په توګه غوره شو ، حال دا چې د صنعتي پراختیا هسته یې د سمبرـ میوز ( Sambre _ Meux ) سیندونوپه امتداد کې موقعیت لري (۲۰ : ۸۲).

د اسپانیې په هېواد کې د هغې هېواد ظاهري وحدت سربېره درې لومړنۍ هستې په کې لیدل کېږي ، چې دوه هستې یې شمالي لیون (Leon) او بارسلونا (Barcelona) د ایبر (Ebro) په وادي کې موقعیت لري ، البته له کلتوري پلوه لومړنۍ یادې شوې هستې یو له بله سره ورته والی لري ، حال دا چې په جنوب کې د دایمي هستې سره څرګند توپیر لري (۵ : ۱۱۲ ).

د اسیا په لویه وچه کې هم هېوادونو د ټاکلوهستو په خواوشاکې پراختیا موندلې ده . سره له دې چې ځینې وخت د یرغلګرو د حملو له امله یې د پراختیا په چاروکې ځنډ هم رامنځته شوی ، آن چې ځینې وخت ددې ډول وقفو وروسته هېوادونو د نویو هستو په چاپېره پراختیا کړې ده . د بېلګې په توګه لکه په چین کې چې لیدل شوي ، د چین د مدنیت ځای د نني چین په شمال لویدیزو برخوکې د هوانګهو سیند (Hwang ho) او د مرستیالانو په وادي کې یې واقع شوی . ددې ناحیې حاصلخیزه او رسوبي خاورې چې په پرله پسې بڼه د انساني او بادي فعالیتونو په پایله کې نوې شوي د کرنې د پراختیا زمینه یې مساعده کړې ده . د چین پخوانۍ پلازمېنې (Changan) هم په همدې ځای کې ځای درلود. وروسته په تدریجي توګه دې هېواد د ختیځ اوجنوب ختیځ په لوري پراختیا کړې تر څو چې دینګسي

کیانګ (Yangtzekiang) وادی ته ورسیده . اګر چې اقتصادي پراختیا د لومړنۍ ناحیې په پرتله په اخیرالذکرسیمه کې وروسته پیل شوه ، مګر ددې سره د معتدل اقلیم شتون او دنمو اوږد موسم ددې لامل شو تر څو د هېواد جنوبي سیمې د شمالي سیمو په پرتله د غذایي موادو د تولید د یوې غوره سرچینې په توګه وښیي . په همدې توګه د چین امپراتورۍ هسته له شماله د مرکز په لور د ځای بدلون وکړ او د نانکینګ (Nanking) ښار د پلازمېنې په توګه غوره شو ، چې وروسته د هوانګچو (Hwang chow) ښار ته ولېږدول شو ؛ چې له ۱۱۲۷ ـ۱۲۸۰م کلونو پورې بیا هوانګچو ښار د پلازمېنې په توګه یادیدو . په وروستیوکلونوکې د چین د سیاسي قدرت مرکز یو ځل بیا د شمال لورته ولېږدول شو ، دا هغه وخت و چې د مغلو کورنۍ له ۹۰۷ ـ ۱۱۲۷ م او له ۱۲۸۰ـ ۱۳۶۸م کلونو د مغلستان په څرځایونوکې چې د لوېدیز پر لور تر ګوبي دښتې پورې پراختیا لرله ؛ د یوې لوې امپراتورۍ اساس کېښود. ددې لړۍ ګڼې کورنۍ لکه کېتان (Kitan) او یووان (Yuan) په شمال کې د پېکنګ ښار د پلازمېنې په توګه وټاکل شو . په یو لنډ ۲۴ کلنه پړاو کې وروسته له ۱۳۶۸ م کال څخه چې مینګیانو مغلوته ماتې ورکړه پلازمېنه یې نانکېنګ ته ولېږدوله ، حال دا چې په وروستیو کلونوکې آن چې د مینګیانو په پړاو کې پېکنګ د پلازمېنې په توګه پاتې شو . په ۱۷ مه مېلادي پېړۍ کې د مانچو (Manchu) کورنۍ مینګیانو(Ming) ته ماتې ورکړه او دا ښار تر ۱۹۱۱م کال پورې ددې هېواد پلازمېنې په توګه پاتې شو ، ددې کورنۍ د پرځېدو وروسته پلازمېنه یوځل بیا جنوب لورته یعنې نانکېنګ ښار ته (۱۹۲۷ ـ ۱۹۴۹ م ) ولېږدول شوه . حال داچې وروستیو کلونو کې یو ځل بیا پلازمېنه په پېکنګ کې متمرکز شوه.

همدارنګه سره له دې چې د هند سیاسي وحدت د انګریزانو په پړاو کې منځته راغی ، ولې بیا هم یو شمېر زیاتې هغه کورنۍ چې پخوا یې هم ددې پراخ هېواد په ځینو برخو کې حاکمیت درلودو ، د ګنګا وادي یې د فعالیتونو مرکز وګرځولو . انګریزان د سمندر له لارې دې هېواد ته داخل شول بنا پردې د هغو لومړنیو مرکزونو په بندرونو او یا د کشتۍ چلولو وړ سیندونو په خولو کې موقعیت درلود، له همدې امله و؛ چې کلکته دبرتانوي هند دلومړنۍ پلازمېنې په توګه وټاکل شوه ، مګرپه ۱۹۱۱ م کال کې انګریزانو پلازمېنه د ډهلي ښار چې ددې هېواد لرغونې هسته وه ولېږدوله.

د لاتین امریکا ټول هېوادونه له برازیل پرته د اسپانیې امپراتورۍ اداري تقسیماتو پر اساس پراختیا موندلې . اسپانویانوپه دې لویه وچه کې چې زیات نفوس یې نه درلود ، هغه سیمې چې دوی لپاره مساعدې وې د استوګنې لپاره غوره کړې . په ځینو ځایونوکې خو یې آن چې د هغوی نفوذ له همدې سیمو څخه زیاته پراختیا ونه مونده ، حال دا چې ددې لوې وچې وروستیو جمهوریتونو د همدې مرکزونو په څندو کې یې اداري مرکزونو پراختیا کړې . په مرکزي امریکا کې هم همداسې اداري مرکزونه په لوړو او حاصلخېزو سیموکې تاسیس شوي وو. د مکسیکو ښار یوازینی هغه و؛ چې داسپانویانو اداري مرکز په دې ګڼ نفوسه اوپخوانۍ پرمختللې سیمه کې ټاکل شوي و(۲۰ :۸۳ ).

دشمالي امریکا دوه هېوادونو د امریکامتحده ایالاتو او کاناډا تر ډېره بریده د اروپایي مهاجرینو په وسیله پراختیا وموندله . په بله ژبه له دوی څخه په هیڅ یو کې هم له پخوانیو هستو څخه چې هندیانو پورې یې تړاو درلود ؛پراختیا پیل شوې نه ده . هغوی خپل د استوګنې مرکزونه د لېبرادور (Labrador) دختیځو غاړوپه اوږدو کې تر فلوریدا (Florida) او تر زیاتې اندازې د ډېرو ځانګړو موخو پام کې نیولو پرته غوره کړي وو . د یوې پېړۍ تر تېرېدو وروسته تقریباً چې په یو نسبتاً مناسبه غاړه کې راټول شول ، چې له هغې څخه دسنت لارنس (St. Lawrence) وادي ، دفندي (Fundy) خلیج د غاړو سیمې ، د بوستون (Boston) سیمه ، د نیویارک ساحلي سیمه د جنوب پر لور تر بالتیمور(Baltimore) او بالاخره د ورجینیا (Virginia) سیمه د وروستیو هستو په حیث ددې هېواد پراختیا ته د ارزښت وړ وې . البته باید وویل شي چې ددې پنځه ګونوسیمو ترمنځ منظم مواصلاتي سیستم موجود نه و ، په ۱۷۸۷م کال کې د اتلس سمندر په اوږدوکې داستوګنو مرکزي سیمو ترمنځ دیوفدرال قانون له لیارې یو بل سره متعهد شول او هېواد تهیې دجنوب او لوېدیز پر لور تر لټ سمندر پورې پراختیا ورکړه . په کاناډا کې هم د هغه لومړنۍ په کیوبک (Quebec) او انتاریو (Ontario) کې موقعیت لرلو ( ۳۷ : ۱۳۴).

ددې ډول پراختیا له مخې د جنوبي افریقا اتحادیې هېواد هم تر یوه بریده کاناډا سره ورته والی درلود . ځکه د هغه لومړني اروپایي اوسېدونکي په سمندري غاړو کې استوګن

وو ، ځکه يو شمېر له دې اروپايانو جنوبي غاړې په ځانګړې توګه د کپټاون (Cap town) او دوربان (Durban) ښارونه يې د لومړنيو هستوپه ښه غوره کړلې او له هغه ځايه يې دمرکز په لور د پراختيا هڅې پيل کړې ، حال دا چې د هغوی يوې بلې ډلې يوه ښېله هسته ددې هېواد په مرکزي لوړو کې د بلومفونټاين (Bloemfontein) او پريتوريا (Pretoria) ترمنځ منځته راوړه . دا دواده هستې اوس هم په دې هېوادونو کې شتون لري (۵ : ۱۱۴ ).

په ټولو افريقايي هېوادونو کې پرته له مصر ،سوډان او ايتوپې څخه ځانګړې او د يادولو وړ هستې لږې لېدل کېږي . په مصرکې دنيل وادی د سکندرې او قاهرې ترمنځ سيمه کې ، په حبشه کې د اديسه بابا د شاوخوا وادي او په سوډان کې دخرطوم شاوخوا سيمه يا د سپين او آبي نيل د يوځای کېدو سيمه ددې ډول هستو بېلګې شمېرل کېږي .پر پورته يادو شوو ښرګندونو سربېره د نفوسو د تجمع کوچني مرکزونه د نايجريا په شمالي دښتو ، د کينيا په لوړو ، د ويکتوريا جهيل غاړو سيمو ، د ګانا جنوبي ناحيو ، د زمبابوې لوړې سطحې او د زاير اړوند د ګتانګا سيمه هم کولی شو وګورو(ايضاً: ۱۱۵).

په استرالياکې هم اروپايانو خپل د استوګنې کورونه د سواحلو په غاړو کې غوره کړل ، چې البته وروسته له هغو تر ټولو مناسبې سيمو ته يې پراختيا وکړه، چې له هغې ډلې د سدني د خواوشا سيمې په نيوساوت ويلز (New South Wales) کې ، ملبورن په وکتوريا کې او د پرت (Perth) سيمه په غربي استراليا کې کولی شو ددې هېواد پراختيايي هستې وګڼو.

په اوس وخت کې هم د نړۍ په زياترو هېوادونوکې داسې هستې ليدل کېږي چې د ټولنيزو ، اقتصادي او سياسي فعاليتونو زياتره يې په هغو کې متمرکم کېږي او معمولاً ددې هېوادونو د پلازمېنو په غاړو کې ليدل کېږي . اګر چې په ځينو وختونو کې ددې ډول فعاليتونو د تنظيم شونتيا دڅو غوره ښارونو ترمنځ لکه د امريکامتحده ايالاتو کې د واشنګټن او نيويارک ، کاناډا کې د اتاوا ، تررانتو او مونتريال ، د هند په نوي ډهلي ، بمبۍ او کلکتې کې وجود لري . مګر پر دې سربېره هغه سيمې چې د نفوسو او وګړو له مخې له پلازمېنې سيمې څخه پراخه وي ، کېدای شي د پورته يادو شوو مطلبونو په پام کې

ښېولوسره د هر هېواد لپاره وټاکل شي .چې د نفوسو زیاتره تراکم او مواصلاتي نسبتاً منظمو شبکو شتون او د ټولو ارتباطاتو زیاتوالی کولی شو د هغو ممیزات وګڼو . ددې ډول هستو شتون په ځینوځایونو لکه امریکا متحده ایالاتو ، ایټالیې او داسې نورو او همدارنګه د ښاري او کلیوالي سیمو ترمنځ په زیاترو مخ په وده هېوادونو کې کیدای شي د سیاسي ستونزو د منځته راتلو لامل شي ، هغه ستونزې چې هیڅ ډول ژبنۍ او نژادي سرچینه نه لري (۵ : ۱۰۸– ۱۱۸ )او ( ۳۷ : ۱۳۴).

### ۱.۵.۱.۴ . د هېوادونو د هستې جوړېدو لاملونه

لاندې لاملونو ښایي چې د هېوادونو هستې جوړولوکې اغېزمن وي .

- کرنیزې حاصلخېزې ځمکې .
- غوره جغرافیایي موقعیت .
- دفاعي مناسب موقعیت .
- مناسب اقلیم .
- مواصلاتي مناسب موقعیت.
- سمندرونو یا اوبو ته نژدې والی.
- سوق الجیشي موقعیت .
- د ناحیې شکل.
- د هستې مطلقه موقعیت( ۱۰ : ۵۹).

## ۶.۱.۴ . د هېوادونو پلازمېنې

د هېوادونو پلازمېنه یا سیاسي مرکز هغه سیمه ده چې هلته د هېواد سیاسي تمرکز موجود وي او معمولاً د درې ګونو قواوو (اجرایه ، مقننه او قضایه ) د مشرانو ، د هغو د غړو او ټولو وزارتونو ، دولتي ادارو او بهرونۍ سفارتونو د استقرار محل وي . هغو پلازمېنو چې د یو ملت د تاریخ په اوږدو کې یې تل فعاله رول درلود معمولاً د ملي ، فرهنګي او تاریخي نمایشونو په رامنځته کولو او ښودلو پر نورو ښارونو برتري ښیي . البته

په هغو هېوادونو کې چې پلازمېنې ، خپل ځای ته په پرله پسې توګه تغير ورکړی، ښايیه ده دا ځانګړنې په هغو ښارونو کې چې يو وخت يې د پلازمېنې رول درلودلو ومونډل شي . په ځينو افريقايي او جنوبي امريکا پلازمېنو کې د دولت د عمراني بوديجې ډيره برخه د پلازمېنو په پراختيا او جوړولو مصرف شوې .

په ځينوهېوادونو کې د پلازمېنې رول د څو ښارونو ترمنځ وېشل شوی دی ، د بېلګې په توګه د بوليويا په هېواد کې لاپاز ددې هېواد ريښتينې پلازمېنه اومقر دی . په داسې حال کې چې سوکر د قضايه قوې مقر (ځای ) دی . په فدرالي حکومتونو لکه امريکا متحده ايالاتو او استراليا کې پلازمېنه معمولاً په هغې ځمکې کې واقع شوې وي چې له ايالتي قلمرو څخه خپلواک وي لکه د کلمبيا برخه او د استراليا د پلازمېنې منطقه(۳۷: ۱۳۸، ۱۳۹) .

د پلازمېنو د ډلبندۍ په اړه زياتې هڅې شوي دي . يوه ډلبندي چې پلازمېنه د هغې د نسبي موقعيت له مخې او هسته يې سيمو ته په پاملرنې سره څېړي . په دې ډلبندۍ کې پلازمېنې په دايمي ، نويو او وېشل شوو (منقسمو) پلازمېنو ډلبندي شوي ، چې په لاندې ډول يې هره يوه په لنډه توګه له نظره تېروو.

**۱. دايمي پلازمېنې** : هغه پلازمېنې چې خپل عظمت او برتري يې دځمکني تکامل ـ سياسي حکومت پورې په پرله پسې پړاوونوکې ساتلې وي لکه لندن ، پارېس ، روم ، دمشق او بغداد پلازمېنو ته دايمي پلازمېنې ويلی شو.

**۲. نوې رامنځته شوې پلازمېنې** : هغه پلازمېنې چې دنويو موخو او نقشونو د ترسره کولو او د پخوانيو پلازمېنو سره په متفاوته توګه منځته راځي لکه اسلام آباد او برازيليا.

**۳ـ وېش شوې پلازمېنې** : دا ډله پلازمېنې د بې سارو پلازمېنو بېلګې دي ، په دې ډول پلازمېنو کې د پلازمېنو رول د دوو يا څو ښارونو ترمنځ وېش شوی وي ، د بېلګې په توګه په بوليويا ،او جنوبي افريقا کې . په جنوبي افريقا کې اجرايه قوه په پروتوريا ، مقننه قوه په کيپ ټاون او قضايه قوه په بلوم ښارونوکې ځای لري ( ۳۷ : ۱۳۹، ۱۴۰).

پلازمېنې د هر هېواد غوره سیاسي ښار وي ، چې د هغه رول د تاریخ په دورو کې بدلون کوي . اوسمهال د نړۍ په زیاترو هېوادونوکې پلازمېنه د هغې هېواد تر ټولو لوی ښار جوړوي لکه چې د اروپا د ۲۵ هېوادونو له ډلې یې په ۲۳ هېوادونو کې دا حقیقت لیدل کېږي . یوازې په سوېس او فدرالي المان کې د دوی پلازمېنې لویو ښارونو کې نه دي . په جنوبي امریکا کې هم دا موضوع په ځرګنده لیدل کېږي ، حال دا چې په اسیا کې دا ډول حالات زیات استثناءت لري ، په ترکیه کې استانبول د انقرې په مقابل کې ، په اسرایلوکې بیت المقدس د تل ابیب په مقابل کې ، په هند کې بمبئ ، کلکته او مدراس د ډهلي په مقابل کې ، د پاکستان په هېواد کې کراچۍ د اسلام آباد په مقابل کې او یا په چین کې شانګهای د پیکېنګ په مقابل کې د هغې غوره بېلګې دي .

پلازمېنه چې د ازادو هېوادونو له ځانګړنو څخه شمېرل کېږي د هېواد دلومړي شخص او د دولت د حاکم هیات او د مقننه ، اجرایه او قضایه قوو مرکزنه او د هېواد ټولې اداري چارې ورڅخه رهبري کېږي . پردې سربېره د یو شمېر نورو موسیسو نماینده ګان او مشران هم په پلازمېنه کې متمرکز وي (۵ : ۱۱۹ ،۱۲۰).

باید یادونه وشي چې په ټولو هېوادونو کې په تېره د ۱۹ مې پېړۍ راپدېخوا د حکومتونو دندې زیاتې شوي دي . دا چې ددې ډول کارونو زیاتره یې په پلازمېنو کې متمرکزې شوي دي له همدې امله په ښاري ځمکو زیات فشار واردېږي او حکومت د زیاترو ستونزو سره لاس او ګریوان کوي ، آن چې په دې وروستیو کې هڅه شوې ده تر څو په ادارو کې ددې ډول زیاتو کارونو له تمرکز څخه مخه ونېول شي . د یادولو ده چې پلازمېنې معمولاً د باندنیو هېوادونو د سوداګریزو او سیاسي نماینده ګیو د تمرکز ځای هم ګڼل کېږي او مذهبي لوی مرکزونه هم په کې ځای لري .

د نړۍ زیاتره پلازمېنې د هېوادونو د مرکزي هستې په برخه کې منځته راغلي چې د پارېس ، لندن ، روم ، قاهرې ، اتن ، ستاکهولم ، ماسکو او داسې نورېې بېلګې دي . مګر په ځینو نورو ځایونو کې پلازمېنه د ځینو لاملونوله امله د ځای بدلون کړی او نویو هغو ځایونو ته چې د هېواد تازه اړتیا وو ته ځواب ویونکي وي ؛ انتقال کړي . ددې ډول

پلازمېنو غوره بېلګې په برماکې له مندلي (Mandalay) څخه رنګون ته او په تایلینډ کې له ایوتایا (Ayutthaya) څخه بنکاک ته د پلازمېنو لېږدول دي . همدارنګه په هندکې د پلازمېنې لوی ځای د ډهلي او پتنه ترمنځ سیمې کې موقعیت لرلو چې د انګریزانو د تسلط پر مهال کلکتې ته ولېږدیدو او له ۱۹۱۱م راوروسته د سند او ګنګها حوزو ترمنځ په ډهلي کې یې ځای ونیوو . پردې سربېره دا ښار د تاریخې پلوه هم د ارزښت وړ و ، ځکه د شاجهان له دورې ( ۱۶۲۸ ـ ۱۶۵۹م ) را وروسته د مغلو امپراتورۍ پلازمېنه وه ، البته تردې وړاندې د اګره ښار د ډهلي په ګاونډ کې په دې موخه غوره شوی و (ایضاً : ۱۲۰، ۱۲۱).

( ۲.۴ ) جدول : دنړۍ په ځینو هېوادونو کې دپلازمېنو دځای بدلون (۵ : ۱۲۱).

| هېواد | پلازمېنه (موقعیت او وخت یې) | دپلازمېنې ځای بدلون (موقعیت او وخت یې) | بیا دپلازمېنې ځای بدلون (موقعیت او وخت یې) |
|---|---|---|---|
| برازیل | سلوادور | ریودجنیرو(۱۷۶۲م ) | برازیلیا (۱۹۶۰م ) |
| برما | اوا | مندلی (۱۸۵۷م ) | رنګون (۱۸۸۵م ) |
| کاناډا | کنګستون (۱۸۴۱م ) | مونتریا ل (۱۸۴۴م ) | اتاوا (۱۸۵۹م ) |
| سریلانکا | کتمندو | کولمبو | |
| چین | پیکنګ | نانکنګ (۱۹۲۷م ) | پیکنګ (۱۹۴۹م ) |
| هند | ډهلی | کلکته (۱۸۳۳م ) | ډهلی (۱۹۱۲م ) |
| ایټالیا | تورین (۱۸۶۱) | فلورانس (۱۸۶۵م) | روم (۱۸۷۱م) |
| جاپان | کیوتو | توکیو (۱۸۶۸م) | |
| پاکستان | کراچۍ (۱۹۴۷م ) | اسلام آباد | |
| فلپاین | مانیلا | کویزان (۱۹۴۸م ) | |
| شوروي اتحاد | مسکو | ست پترزبورک (۱۷۱۲م) | مسکو(۱۹۱۸م) |
| تایلینډ | ایوتایا | تانبوري (۱۷۶۷م ) | بنکاک (۱۷۸۲م) |
| ترکیه | قسطنطنیه | انقره (۱۹۲۲م ) | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| متحـــــده ایالات | نیو یارک (۱۷۸۷م ) | فلادلفیا (۱۷۹۰م ) | واشنګټن (۱۸۰۰م ) |

**۴.۱.۶.۱. دپلازمېنې ټاکل**

د پلازمېنې ټاکلوکې لاندې شپږ لاملونه اغېزمن دي ، چې هر یو یې په لاندې توګه یادوو.

۱. د دود ـ تاریخ لامل.

۲. د مسلطې ملي ډلې لامل.

۳.د باندیني اړیکو لامل.

۴.دفاعی ـ ستراتیژیک لامل.

۵.د سیاسي مصلحت او سولې لامل.

۶. دمرکزي موقعیت لامل ( ۳۷ : ۱۴۰)

**۴.۱.۶.۲. دپلازمېنې دځای په بدلون کې اغېزمن لاملونه**

د پلازمېنو د ځای په بدلون کې لاندې لاملونه اغېزې لري .

د هېواد اړتیاوو ته د ځواب ویلو نه جوګه کېدل .

نا مناسب جغرافیایي موقعیت .

سیاسي ستونزې .

سیمه ییز اختلافات .

سیمه ییزې ګډوډۍ .

د طبیعي سرچېنو نه شتون .

د نوې سیمې سمسورتیا

ځینې مهال د هېوادونو پلازمېنې د بېلابېلو لاملونو له امله خو زیاتره دسیاسي لاملونو له امله له یو ښار څخه بل ښارته بدلون کوي ، په لاندې جدول کې د یو شو هېوادونو د پلازمېنو بدلونونه په بېلابېلو وختونو کې کتلی شو (۱۰ : ۶۴).

(۳.۴ ) جدول : دنړۍ دځینو هېوادونو دپلازمېنو ادلون بدلون ښیي(۱۰: ۶۴).

| ګڼه | هېواد | دلومړي ځل پلازمینې ځای او وخت | بدل شوي پلازمېنې ځای او وخت یې | بیا ځل بدل شوې پلازمنې ځای او وخت |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | چین | پیکنګ | تانکینګ (۱۹۲۷) | |
| ۲ | افغانستان | کندهار | کابل | |
| ۳ | امریکا | نیویارک (۱۷۸۷) | فلادلفیا(۱۷۹۰) | واشنګټن (۱۸۰۰) |
| ۴ | پاکستان | کراچۍ (۱۹۴۷) | اسلام‌آباد | |
| ۵ | هندوستان | ډیلی | کلکته (۱۸۳۳) | نوی ډیلی (۱۹۱۲) |
| ۶ | روسیه | مسکو | سویتربورک (۱۷۱۲) | مسکو (۱۹۱۸) |

## ۴.۱.۷. د هېواد جوړوونکي عناصر

لکه څرنګه چې مخکې یادونه وشوه چې هېواد له درې عناصرو لکه سرزمین (ځمکې ) ، ملت او حکومت څخه تشکیلیږي نو دا درې واړه عناصر دلته په بشپړه توګه تشریح کوو.

### ۱.۷.۱.۴. سرزمین یا قلمرو

دیو هېواد افقي او فزیکي څېره ده ،ژان ایوناګاتمن د سرزمین په اړه په خپله مقاله کې لیکي : " سرزمین هم سیاسي او هم جغرافیایي مفهوم دی، ځکه چې دځمکې جغرافیایي څېره د سیاسي بېلوالي ښودونکې ده او هم د سیاسي جریان له لوري سازمان کېږي " همدارنګه ارستو وایي: څه شی چې مکان کې ځای نه لري وجود نه لري . بناءً سرزمین د ملت ، حکومت د مفاهیمو د یو ځای والي له پلوه اړین دی ، تر څو د هېواد مفهوم واقعیت پیداکړي (۱۵: ۴۰ ).

سرزمین یا " بوم " په فارسي ژبه کې یوه پخوانۍ اصطلاح ده چې له یوې خوا د هېواد مفهوم سره برابره ده او له بلې خوا چې په اروپایي مفهوم د " سرزمین " یعنې ځمکې سره نژدیوالی مومي . موږ دلته د " سرزمن " یعنې ځمکې د مفهوم سره سروکار لرو ، هغه چې د اروپا په سیاسي جغرافیایي فرهنګ کې د " Territory " مفهوم ورکوي او د بحث وړ دی . ځمکه کیدای شي د هېواد فزیکي یا افقي څېره تعریف کړو ؛ جغرافیایي مفهوم چې دحکومت مفهوم ته پام سره سیاسي اړخ پیداکوي ، او دې او د"ملت " مفهوم ته په پام سره جغرافیایي ـ سیاسي پدیده یعنې هېواد واقعیت مومي ( ۳۲ : ۲۴).

### ۱.۱.۷.۱.۴. د نړیوالو عمومي حقوقو له مخې د یو هېواد سیمه یا قلمرو

د یو دولت ساحه یا قلمرو د هغه دولت له غوره متشکله عناصرو څخه ګڼل کېږي ، چې له دې قلمرو پرته د یو خپلواک دولت منځته راتلل ناشونی دی .

د هېواد ساحه یا قلمرو هغه ځای دی چې د نړیوالو عمومي حقوقو له مخې د اړوند دولت تر صلاحیت او امر لاندې وي ، نو له همدې امله د یو هېواد لایتجزی (نه بېلېدونکې ) برخې لکه ټولې وچې سیمې ، داخلي او ساحلي اوبه ، د وچې په سر فضا او اوبه او تر ځمکې سطحې لاندې او د ځمکې په تل کې اوبه د اړوند هېواد ساحه بلل کېږي . دولت په ټولو پورتنیو یادو شوو سیمو ساحوی صلاحیت لري او د ځان په ګټه ورڅخه ګټه کوي او په

یادو شویو سیمو کې د نړیوالو حقوقو د موازینو سره سم خپل حاکمیت هم پلی کولی شي .
د یو هېواد سیمې یا ساحې چې د دولت قلمرو بلل کېږي لاندې ذکر کېږي:

**۱. وچې سیمې** : د ځمکې هغه برخه چې د ځمکې د کرې پر مخ د ځمکې تر مرکز پورې په مخروطي بڼه امتداد لري ، او د نورو دولتونو د وچو ځمکو څخه د پولو په وسیله او له سمندرونو څخه د سواحلو په وسیله بېلې شوې وي ، د یو دولت وچه ساحه جوړوي . د یو هېواد ټولې وچې سیمې د هغه هېواد وچه ساحه بلل کېږي .

**۲. اوبه** : د دولت دا برخه ساحه (اوبه) بېلابېلو ډولونو ته وېشل شوې ده ، چې لاندې ترې یادونه کوو :

**الف . داخلي اوبه** : د یو هېواد داخلي اوبه د هغه هېواد د سېندونو ، کوچنیو سیندونو ، او کانالونو له ټولو اړخونو څخه چې په بشپړه توګه د هغه هېواد په داخل ساحه کې شتون لري ، او له بله پلوه دسمندر د اوبو ځینې برخې هم داخلي اوبه بلل کېږي لکه داخلي سمندري سیمې ، خلیجونه ، بندرونه ، او داسې نور.

**ب . ساحلي اوبه** : هغه اوبه چې د یو هېواد د ساحل په امتداد پرتې وي د ساحلي اوبو په نوم یادېږي . ساحلي اوبه او د هغه د پاسه فضا ، بستر او د بستر لاندې د همدې ساحوي دولت تر واکمنۍ لاندې دي . د نورو هېوادونو د سوداګرۍ ، مسافر وړونکې بېړۍ او هغه بېړۍ چې لږ تر لږه تخنیکي ستونزې ورته پېښېږي ، د یو ساحلي هېواد اوبو ته د عبور په نیت ، نه د ودرېدلو په نیت د ورننوتلو حق لري .

د ساحلي اوبو پوله هغه اخېرنۍ اوږده پوله ده چې د ساحل په اوږدو کې پرته وي ، د ازاد سمندر او ساحلي اوبو تر منځ د بېلوالي حد دی ، یعنې د ساحلي اوبو پلنوالی ، تر اوسه نه دی ټاکل شوی په دې معنی چې تر اوسه دساحلي اوبو د پلنوالي لپاره په نړیوالو حقوقو کې کومه مقرره نشته چې ټولو هېوادونو دې منلې وي . خو په عملي ډګر کې له درې تر ۱۲ مېلو (Miles) پورې هېوادونو منلې ده ، آن چې په ځینو ځایونو کې تر ۲۰۰ مېلو (Miles) پورې هم ادعا کېږي او رعایت شوې هم ده ( ۲۷ : ۱۰۲) .

**۳. ګاونډ سیمه یا الحاقیه امنیتي ساحه** : د سمندر د اوبو هغه برخه ده چې له ساحلي اوبو وروسته پیل او د هغې په ګډون د ازاد سمندر په امتداد چې پلنوالی یې تر ۱۲ میلو (Miles) زیات نه وي . لکه چې له نوم څخه یې ښکاري ځینې هېوادونه د امنیت د ټینګښت په موخه ساحلي اوبه او د هغې په په تل کې سرچینې (لکه نفت اونور ) د ازادو اوبو یو څه برخه هم د ځان بولي . د امنیتي الحاقیې سیمې اوبه د ساحل له اوبو سره له دوو اړخونو بشپړ توپیر لري . لومړی دا چې ساحلي اوبه د اړوند هېواد تر ساحوي صلاحیت لاندې وي . په داسې حال کې چې ګاونډه سیمه له حقوقي او فزیکې پلوه د ازاد سمندر برخه ګڼل کېږي . دویم دا ، سره له دې چې ساحلي دولت په ساحلي اوبو خپله واکمني پلې کوي ، خو په ګاونډه سیمه کې خپل ساحوي حاکمیت نه شي پلې کولی .

**۴. فضایي ساحه** : فضایي ساحه چې د هېواد د قلمرو یوه برخه هم ګڼل کېږي ، هغې فضا ته ویل کېږي چې د یو هېواد د وچو ځمکو د داخلي او ساحلي اوبو له پاسه وي ، لکه څرنګه چې ګاونډه سیمه یا امنیتي الحاقیه ساحه د یو هېواد تر ساحوي واکمنۍ لاندې نه راځي ، په فضایي ساحه کې هم یو هېواد هیڅ ډول ساحوي صلاحیت نه شي تطبیقولی ، فضایي ساحه تر بېرونیو فضایي پولو پورې غزېدلې وي .

هغه څه چې تر اوسه د هېوادونو هوکړه پرې په ټولیزه توګه تردې مهاله نه ده راغلې ، هغه د یو هېواد د پولو ساحوي فضا ده . خو د نن ورځې تکنالوژۍ د عادي الوتکو د پروازونو په مټ ټاکلې ده ، چې تر ټاکلې برخې اخوا ازاده فضا ده او ټول هېوادونه ور څخه ګټه پورته کولی شي .

ډیری هېوادونه د بېرونیو الوتکو په فضایي ساحه کې د پروازونو اړوند چارې او په خپل قلمرو کې د همغې الوتکې راښکته کېدل د دوه اړخیزو یا څو اړخیزو تړونونو په وسیله تنظیموي . خو هغه به هم د هغه هېواد تر ساحوي صلاحیت لاندې وي ، ځکه د نوموړي هېواد له فضایي ساحې څخه عبورکوي ( ۲۷ : ۱۰۴).

### ۲.۷.۱.۴. ملت

ملت (Nation) د وګړو هغه ټولګه چې د خپل ځان په اړه د ځانګړيتوب احساس ، خپل منځي يوځايتوب ،ګډ تاريخ او کلتور او همدارنګه ډير وخت ( نه هر وخت ) ګډه ژبه ولري (۲۸ : ۴۰ ).

يوې انساني قبيلې ته چې د يو نژاد ، فرهنګ او ژبې لرونکی وي ويل کېږي ، چې د يو حکومت لرونکې وي او يا ددغسې حکومت جوړولو نيت لري (۲۰ : ۷۹).

د ملت (Nation) اصطلاح د لاتين ريښه لري چې له (Natio) څخه اخيستل شوې چې د ګډو نېکونو او د (Naseere) په فعل سره د تولد او توليد شوي په معنی دی (۷ : ۲۴۳) . دا اصطلاح له لاتين ژبې څخه ټولو اروپايي ژبو ته ولېږدول شوه . په پخوانۍ فرانسه کې د Nation اصطلاح د Nacion په بڼه کارول کېده چې د کورنۍ ، ټبر ، ريښې او نژاد معادل وه .دا اصطلاح په الماني ژبه کې د Natie په بڼه کاريده چې په لومړيو کې يې د اصل او ريښې معنی درلوده ، ولې په تدريجي توګه د وګړو په مفهوم سره وکاريده ( ۲ : ۱۲).

په دې حساب ملت غير مادي (معنوي ) شی دی . يو ملت هغه مهال شتون لري چې غړي يې فکر وکړي چې شتون لري . دولت ( هېواد ) يوه جسماني ( مادي ) موسسه ده مګر ملت ((يو روح او معنوي کيفيت دی)).

ملت هغه ولس ته ويل کېږي چې لاندې درې فکتورونه ولري :

**الف .** ګډ ديموګرافيک او کلتوري ورته والي ولري : ګډ مشابهتونه له يوه ولس سره د ملت په جوړولو کې مرسته کوي . دا ورته والي کېدای شي چې ديموګرافيک مشخصات ( ژبه ، نژاد او مذهب ) وي . يا ګډ کلتور او يا هم ګډې تاريخي تجربې او وياړنې ولري . داسې ويل کېدی شي چې د امريکا ملت د دويمې عمومي جګړې ، د مارتين لوتر کېنګ (Martin Luther King) ، مک دونالداو ډيرې نورې دا ډول پېښې ، دامريکا ګډې تجربې ګڼل کېږي . دا مريکا بيرغ او د يک عقاب په شان سمبولونه د امريکايي نېشنلېزم په تقويه کې مرسته کوي .

ب . ګډ ټولنيز احساس ولري : ټولنيز احساس هم د يو ملت په تشګل کې مرسته کوي ، د ملت والي درک او استنباط دلته ډير مهم رول لري . که يو ګروپ هرڅومره عيني (Objective) ورته والي هم سره ولري ، مګر که دوی په زړه کې د ملتوالي عندي (Subjective) احساس ونه لري ملت نشي بلل کېدی . د ګروپ په دننه کې وګړي بايد دا درک او استنباط ولري چې دوی ګډ ورته والی لري او يو له بله سره ددې ګډو ورته والو له امله تړلي دي .

ج . په سياسي لحاظ د ځان د کنترول او اداره کولو غوښتنه ولري : په سياسي لحاظ د ځان د کنترول او اداره کولو غوښتنه يعنې (دسياسي جلاوالي غوښتنه) هم د يوملت د تشګل سره مرسته کوي . د ملت او اتنيکي ګروپ ترمنځ توپير دادی چې د اتنيکي ګروپ برخلاف يو ملت غواړي چې خپل حکومت ولري او يا لږ تر لږه داخلي خود مختاري ولري . د امريکا په متحده ايالاتو کې ډير ګروپونه شته لکه ايټاليايي امريکايان چې ګډ کلتور او د هويت احساس لري ،مګر دا اتنيکي ګروپونه دي ،نه ملتونه . ځکه دوی له امريکا څخه د بېلتون غوښتنه نه لري . په ملي لحاظ په وېشل شوو دولتونو کې لکه قبرس چې ديوناني اکثريت او ترکي اقليت څخه جوړشوی ، اقليت ډلې نه غواړي د اکثريت مشروعيت ته غاړه کېږدي .

دا خبره بايد په ياد ولرو چې د اتنيکي ګروپونو او ملتونو ترمنځ توپير هر مهال روښانه نه دی ، په ډيرو هېوادونو کې داسې اتنيکي ګروپونه شته چې د جلا غوښتنې احساسات لري او يا دا چې ځينې غړي يې جلا غوښتونکي يانشنلستان وي . په کاناډا کې د کيوبيک (Quebec) په ايالت کې ډير فرانسوي کاناډايان د کاناډا په دولت کې له خپل موقف څخه راضي نه دي . ځينې کيوبېکيان له کاناډا څخه د جلاکېدو غوښتنه لري او ځينې يې بيا دا غوښتنه نه لري ( ۱۵ : ۷۴ – ۷۶)

**د ملت والي عناصر** : په ټوليزه توګه ويل کېږي چې ملتونه ځانته ټاکلې ځانګړنې لکه قلمرو (محدوده ) ، نفوس ( وګړي ) ، استقلاليت او حکومت لري . يادې ځانګړنې هره يوه يې په ځينو ځايونو کې تر پوښتنې لاندې راتلای شي ، دا ځکه چې يادې ځانګړنې کله قوي او روښانه او کله بيا کمزورې او يا غايبې وي (۲۸ : ۴۰ ).

### ۴.۱.۷.۳. حکومت

د حکومت بحث په لومړۍ درجه کې د هېواد جوړوونکی عمودي جوړښت او د سیاسي جغرافیې اصلي بحث دی ، ځکه چې دا مفهوم له یوه لوري د جغرافیایي چاپیریال سیاسي کولو ته واقعیت ورکوي او یو جغرافیایي بحث ګڼل کېږي او له بله پلوه هغه مفهوم دی چې په جغرافیایي چاپیریا ل کې سیاسي منځته راتلونکي رول ته ځانګړی تمرکز ورکوي او سیاسي اړخ لري . همدارنګه حکومت په سیاسي جغرافیې کې یوه پراخه موضوع ګڼل کېږي ، له همدې امله د پام وړ ده . په داسې حال چې په چاپیریال کې د حکومت د اغېز او منځته راتلو مطالعه جغرافیایي بحث دی ، د حکومت د حاکمیت چارې حقوقي بحث او د حکومت له خوا د ځمکې یا هېواد اداره کول سیاسي علومو پورې تړلی بحث ګڼل کېږي .

د حکومت اړیکې د خپلې تشکیلاتي بدنې یعنې دولت په وسیله د نورو حکومتونو سره نړیوالې اړیکې ګڼل کېږي . " حکومت " د عمودي بُعد سیاسي ، تشکیلاتي او قانوني جوړښت دی چې په یوه ځانګړې انساني ټولنه کې د اکثریت وګړو د خوښې پر اساس منځته راځي . " ځمکه " (سرزمین ) یا د "هېواد فزیکي بدنه " د یاد شوي سیاسي جوړښت فزیکي یا افقي څېره ده ، په بله ژبه ځمکه (سرزمین ) یا هېواد (کشور) د حکومت فزیکي ښکارنده او حکومت د ځمکې یا هېواد تنظیموونکی عمودي جوړښت دی ( ۳۲ : ۱۰۷ ).

څرګنده خبره ده چې یو ملت باید د خپلو خلکو د اداره کولو په موخه یو جوړښت (سازمان ) ولري . د داسې سازمان نه شتون انارشي رامنځته کوي ، چې حکومت نه وي ملت نه وي . حکومت که څه هم په ځینو ټاکلو حالاتو کې له ملت څخه خپلواک وجود لرلی شي د بېلګې په توګه جلاوطنه حکومتونه چې د اشغال ګرو یا ګوډاګي حکومتونو د شړلو لپاره مبارزه کوي . د لویو وچو کانګرس (Continental Congress) یو لومړنی حکومت و ، چې د ازاد متحده ایالاتونو د تاسیس لپاره منځته راغی ، د همدې لپاره وجنګېدو او په پایله کې ورڅخه د امریکا متحده ایالاتو حکومت راوزېږېدو.

په ۱۹۴۰ م کال کې له فرانسې څخه د جرمنيانو د وېستلو لپاره جنرال چارلس دوګول د " ازادې فرانسې " حکومت اعلان کړ چې ډېرو سترو ځواکونو د فرانسې د حکومت په توګه په رسميت وپېژندلو . په ۱۹۴۴ م کال کې د پارېس له ازادېدو سره له هغه څخه يو داسې حکومت جوړ شو چې قلمرو (محدوده) ، ولس او ازادي يې درلوده.

ديو قانوني حکومت موجوديت خامخا دا معنی نه لري چې دا حکومت به اغېزمن وي او د خپل قلمرو او ولس کنترول به يې په لاس کې وي ، کله چې حکومت کمزوری وي د داخلي او بانديني مخالفت پر وړاندې به د پايښت وس ونه لري ، د بېلګې په توګه د بوګوتا Bogota حکومت د کلمبيا پر ډېرو هغو سيمو چې د مخدره موادو دلالانو او ګوريلايانو په ولکه کې دی ، کنترول نه شي ټينګولی .

پخواني سياسي تيورستان د ملت لپاره پوره بيان شوې ځانګړتياوې لازمې بولي . چېرته چې يو ملت شتون لري خامخا بايد قلمرو ، نفوس (وګړي ) ، ازادي ، حکومت او د ملت نور صفات ولري . معاصرو پوليټيکل ساينټيسټانو د ملت سوچه او خالص حقوقي مفهوم ايسته غورزلی او دعملي واقعيت کې يو غښتلی ولس او يو اغېزمن حکومت لري چې خپل قلمرو اداره کړی شي او که نه ؟ . ځينې چې ځانونه ملت بولي په حقيقت کې د کولمبيا په څېر کمزوري دولتونه دي او ځينې بيا آن د سوماليا په څېر ناکامه دولتونه دي . ډېرملتونه په پرله پسې توګه اوس هم د ملت والي پر لور تکامل کوي(۲۸ : ۴۰– ۴۲).

**۴.۱.۷.۳.۱. دحکومت ډولونه**

حکومتونه د سياسي جوړښت له مخې په دوه ډوله دي ،۱). بادشاهي حکومتونه، چې دا ډول هېوادونه ډېر پخواني دي او ۲) . جمهوري حکومتونه چې د راتزل (Ratzel) په آند اصلي ريښه يې په لرغوني يونان کې ولټول شي.

سنتي او مطلقه يا بادشاهي حکومتونه لکه عربو ټاپوو زمه کې چې باد شاه په هغو کې حاکم وي او د اصلي او وروستي تصميم نيوونکی وي، يا مشروطه او د يموکراتيک حکومتونه لکه چې په زياترو اروپايي هېوادونو کې بادشاهي حاکمه ده چې بادشاه په هغو

کې سمبولیک رول لري او حکومت او حاکمیت په کې په وګړو پورې تړاو لري . او د خلکو اراده د ځمکې یا هېواد د ادارې لپاره منتخبو دولتونو ته چې د حکومت تشکیلاتي جلوه ده انتقالیږي . دې حالت ته پام سره د تداوم اصل او مشروعیت په دواړه ډوله حکومتونو کې " وراثت " دی . نور پاتې قبیله یي حکومتونه چې او سمهال یې بېلګې په افریقا او د فارس خلیج په عربي څنډو کې شتون لري د سنتي او مطلقه بادشاهۍ حکومتونو په ډله کې راځي .

پر دې سربېره د امپراتورۍ نظام چې په یوویشتمه پېړۍ کې پرته له جاپان څخه بل ځای کې عملاً نښته د باد شاهي نظام پراخ شکل دی . په داسې حال کې چې په بادشاهي نظام کې حکومت د یو ملت د موجودیت پر بنسټ منځته راځي او د یو ملت په حدودو پورې محدود وي ، خو امپراتوري د باد شاهي حکومت هغه نظام دی چې له یو ملت څخه زیات په کې ګډون کوي . په همدې زمینه کې د امپریالېزم مفهوم راڅرګندیږي .

امپریالېزم د یو هېواد هغه سیاسي نظام ته ویل کېږي چې خپل حکومتي حاکمیت یا اقتدار په نورو ملتونو یا هېوادونو تحمیلوي . د پخواني امپریالېزم بڼې د پخواني یا کلاسیک استعمار په چوکاټ کې وجود درلود او نوې بڼه یې په نوې بڼه د نړیوالتوب یا ازاد اقتصاد په بڼه رامنځته شوی .

جمهوري حکومت چې د ټولیز حاکمیت یا سیاسي جمهوریت (Pluralism) د اصلي انګیزې پر بنسټ رامنځته کېږي په لرغوني روم کې د سنا لخوا د انتخاب شوي "سزار" فرمان ورکوونکي حکومت کې رېښه لري . د پام وړ ده چې لرغونی روم خپل د باد شاهي نظام له بدلولو وروسته په انتخابي یاد شوي نظام یعنې جمهوریت د امپراتورۍ نظام تبدیل کړ ( ۳۲ : ۱۱۵، ۱۱۶) .

د درېیمې زریزې په پیل کې د نړۍ په سیاسي نقشه کې د ۲۰۰ خپلواکو هېوادونو له ډلې یې ۱۹۳ هېوادونو د ملګرو ملتونو د ټولنې غړیتوب لرلو . باید وویل شي چې هېوادونه پر پراخوالي ، نفوسو ، موقعیت او نورو طبیعي ځانګړتیاوو سربېره د داخلي سازمانونو (

جوړښتونو) او د هغو د پراختیا یي څرنګوالي له مخې هم په دې وروستیو ۲۰۰ کلونو کې یو له بله سره توپیر لري .

له تاریخي پلوه پر مستعمراتو سربېره چې بېلابېل ډولونه یې درلودل او په هغو کې حکومتي مکلفیتونه بېرونیانو پورې تړلي وو ، د نړۍ هېوادونه د دوه ډوله حکومتي سېستمونو یعنې جمهوري او شاهي څخه پېروي کوي چې دا بیا په خپله په ډېرو ډولونو وېشل شوي .

په شاهي رژیمونو کې چې سلاطین ( سلطانان ) ، بادشاهان ، شهزاده ګان ، امپراتوران ، او تزاریان په کې رانغښتل کېږي ، د هغوی حکومت او صلاحیتونه په ځانګړو کورنیو پورې منحصر وي . حال دا چې په جمهوري هېوادونو کې لکه اپلاتون چې هم ویلي و" حکومتونه د خلکو په وسیله او د خلکو لپاره ټاکل کېږي " . او د نړۍ د هېوادونو یو زیات شمېر یې همدې موخې ته د رسېدلو لپاره جمهوري رژیم خوښ کړي ، سره له دې چې ښایي په ربښتیا کې ورڅخه زیات واټن هم لري .

د تاریخ په اوږدو کې او په تېره بیا په تېره یوه پېړۍ کې ددې دري ډوله حکومتونو شمېر کې زیات بدلونونه راغلي دي . په ۱۹۰۰م کال کې شاهي نظامونو د اروپا او استرالیا لوې وچې او جمهوري ډوله حکومتونو شمالي او جنوبي امریکا راګېره کړې وه . په اروپا کې فرانسه او سوېس یوازیني هغه هېوادونه وو چې جمهوري نظامونه یې درلودل . د نړۍ ټولو هېوادونو په لیکه کې یوازې په جنوبي افریقا کې Orange free state او ترانسوال (Transvaal ) کې جمهوري ډوله نظام شتون درلود . حال دا چې په ۲۰۰۰م مېلادي کال کې جمهوري نظامونه د نړۍ د لویو وچو په بېلابېلو هېوادونو کې لېدل کېدل . سره له دې چې په زیاترو برخو کې ښایي دا نظامونه یوازې تش په نامه جمهوري وي ، په شمالي امریکا کې کاناډا هغه هېواد دی چې په کې اوس هم لکه د استرالیا او نوي زیلاند په څېر د برتانیې بادشاه د حکومت رییس په توګه منل شوی . همدارنګه د اروپا په ځېنو هېوادونو لکه ډنمارک ، ناروې ، سوېډن ، هالند ، بلجیم ، اسپانیې او انګلېستان کې هم شاهي نظامونه ، خو د باد شاهانو د محدودو واکونو په لرلو سره موجود دي .

د جاپان امپراتور اوس هم په هغې هېواد کې د حکومت رییس دی . د منځني ختیځ په ځینو هېوادونو کې لکه عربستان ، عمان ، عربي متحده اماراتو ، قطر ، بحرین ، اردن او کوېټ کې هم همدا نظام دود دی (باد شاه يې د حکومت رييس دی) .

د اسیا په جنوب ختیځ کې لکه تایلینډ ، کمبوديا ، مالیزیا او برونای (Brunei) کې هم له همدې نظام څخه پیروي کېږي . په افریقا کې د مراکش ، سوازیلینډ (Swaziland ) او لېسوتو (Lesotho)هېوادونو کې همدا نظام چلېږي .

په هرصورت په شاهي نظامونو کې هم ټولیزه هڅه دا کېږي چې حکومتي زیاتره واکونه د هغې هېواد اوسېدونکو ته ورکړي ( **۴ : ۵۲ ، ۵۳**).

**ډیموکراتیک حکومتونه**

ډیموکراسي ترمیلاد **۵۰۰** کاله وړاندې د لرغوني یونان په ښار ـ دولتونو (City- States) کې منځته راغلې وه او د **۲۰۰۰** کلونو راهیسې وخت نا وخته دلته او هلته وجود لري . په انګلستان کې د ډیموکراسۍ تدریجي پاڅون او د اتلسمې پېړۍ په پای کې د امریکې او فرانسې انقلابونو ډیموکراسي په یوې مهمې سیاسي نظریې واړوله . ولې بیا هم د ډیموکراسۍ خپرېدلو په کراره اوبطي بڼه دوام درلود . په دې وروستیو څو لسیزو کې د ډیموکراسي د پراختیا جریان ډیر چټک شو . ډیموکراسي لږ تر لږه د حکومت داسې سیستم دی چې دوه ډوله حقوق خلکو ته وړاندې کوي . لومړی ډول يې یو ډول سیاسي حقوق دي چې وګړي په ازاده توګه خپلوکاندیدانو ته د رایې ورکولوحق ولري . کاندیدان چې د مختلفو نظریاتو لرونکي وي د انتخاب په بڼه کې به د حکومت د پالیسۍ په جوړولو کې مهم اغېز ولري ، دوهم ډول يې بیا یو لړ مدني ازادۍ دي لکه د بیان ازادي ، د اجتماعاتو ازادي او د قانون پر وړاندې مساوات چې د یو ازاد حکومت لپاره مهم دي ( **۱۵ : ۱۴۲ ، ۱۴۳**).

## لنډيز

دا چې د سیاسي جغرافیې اصلي د بحث وړ موضوع هېواد ده، چې هېواد د ځمکې، ملت او حکومت څخه جوړ دی، د یو هېواد ځمکه یا قلمرو له هغې محدودې ساحې څخه عبارت دی چې د هېواد وګړي په کې ژوند کوي او د همدې هېواد حاکمیت په کې چلېږي، چې په دې محدوده کې د ځمکې وچه برخه، اوبیزه برخه او فضا شامله ده.

هېوادونه بېلابېل ډولونه لري چې د سیاسي، اقتصادي او اداري پلوه یې دلته کټګوري شوې ده. د سیاسي پلوه هېوادونه په لاندې توګه وېشل شوي دي. ۱) حایل هېوادونه: چې د دوو ځواکونو ترمنځ د بېلتون په بڼه رامنځته شوي؛ چې تر ډېره دا هېوادونه بې وزلي دي. ۲) -بې لوري هېوادونه: چې د بې لوري توب وضعیت یې د جنګ او سولې پر مهال ساتلی وي. ۳)-ترلي هېوادونه: چې په نړیوالو چارو کې بل هېواد پورې ترلي وي او خپلواک شخصیتونه نه ګڼل کېږي. ۴)-خپلواک هېوادونه: چې د نړۍ سیاسي نقشې جوړولو تر ټولو غوره عناصر خپلواک او ازاد هېوادونه دي چې د نړیوال نظام لوبغاړي هم دي، د دغسې هېوادونو شمېر نژدې د ۲۰۰ په شاوخوا کې ښودل شوی دی.

هېوادونه د اقتصادي پلوه په، ۱)-پرمختللو هېوادونو یعنې هغو هېوادونو چې په هر اړخیزه توګه یې پر مختګ کړي وي. ۲)- مخ پر وده هېوادونو: چې معمولاً هغو هېوادونو ته ویل کېږي چې نسبتاً لږ عواید لري او د پر مختللو هېوادونو سره یې اقتصادي او سیاسي واټن ډېر وي. او ۳)- وروسته پاتې هېوادونه: وروسته پاتې هېوادونو بل نوم نه‌پراختیا موندونکي هېوادونه دي چې زیاتره یې نوي ازاد شوي هېوادونه دي.

په همدې ترتیب هېوادونه د اداري پلوه هم په ساده او مرکب ډولونو وېشل شوي دي. ساده دولتونه یې هغه دي چې یو واحد مرکزي ځواک ولري او د دولت ملي حاکمیت د همدې مرکزي دولت په وسیله تطبیقیږي. دا ډول حکومتي رژیمونه هم په دوه ډولو وېشل کېږي یعنې ۱)- هغه ساده دولتونه چې اداري سیستم یې پر مطلق مرکزیت ولاړ وي او ۲)- هغه واحد سیاسي رژیمونه چې اداري سیستم یې پر عدم مرکزیت ولاړ وي.

هېوادونه د پراختیا له مخې هم توپیر لري ، تر ۲۰۱۱م کال پورې نژدې ۱۹۳ خپلواکو هېوادونو په نړۍ کې شتون درلود ، خو دا ټول هېوادونه د پراخوالي له مخې برابر او یو شان نه دي . د نړۍ په سیاسي نقشه کې کوچني هېوادونه لکه اندورا ، موناکو ، واتیکان او داسې نور شته ، چې د هېوادونو پر سیاست اغېزې کوي . د دوکتور دره په آند د هېوادونو ډلبندي د پراخوالي له مخې چندان ګټه نه لري ، غوره داده چې د هېوادونو تر منځ توپیر له کیفي پلوه بررسي شي ؛ نه د کمي پلوه.

همدارنګه هېوادونه د ځمکې پر مخ د موقعیت له پلوه هم سره ورته والی نه‌لري ، ځینې هېوادونه په ښو موقعیتونو کې او ځینې یې بیا خراب او ناوړه موقعیت لري . تر ټولو ښه موقعیت اوبو ته د لاس رسي او تر ټولو بد موقعیت په وچه کې راګیر موقعیت ښودل کېږي .

## پوښتنې

۱. هېواد څنګه تعریفولی شئ ؟

۲ـ د هېواد متشکله عناصر کوم دي ؟

۳ـ د یو هېواد داخلي اوبه کومې اوبه دي ؟

۴ـ ساحلي اوبه کومې اوبه دي او نورو هېوادونو ته په کې د کومو کړنو اجازه شته ؟

۵ـ حایل هېوادونه کوم ډول هېوادونه دي او د څه په موخه منځته راغلي دي ؟

۶ـ متعهد یا بې لوري هېوادونه کوم ډول هېوادونه دي ؟

۷ـ نا متعهد هېوادونه کومو هېوادونو ته ویل کېږي ؟

۸ـ تړلي هېوادونه کوم ډول هېوادونه دي ؟

۹ـ خپلواک یا خپلواک هېوادونه کوم ډول ځانګړنې لري ؟

۱۰ـ د پرمختللو هېوادونو اطلاق په کومو هېوادونو کېږي ؟

۱۱ـ د وروسته پاتې هېوادونو ځانګړتیاوې کومې دي ؟

۱۲ـ ساده دولتونه کوم ډول سیستم ته وایي ؟

۱۳ـ مرکب هېوادونه د اداري سیستم له مخې په څو برخو وېشلی شو ؟

۱۴ـ کنفدرالي هېوادونه کوم ډول اداري سیستم لري ؟

۱۵ـ فدرالي هېوادونه کوم ډول هېوادونه دي ؟

۱۶ـ د نړۍ کوچنیو هېوادنو بېلګې کوم هېوادونه دي ؟

۱۷ـ د هېوادونو ډلبندي د پراخوالي له مخې څومره ګټوره ده ؟

۱۸ـ د روسو په آند يو هېواد بايد د كومو اړخونو له مخې مطالعه شي ؟

۱۹ـ د هېوادونو زيات تنګوالی كومې ستونزې لري ؟

۲۰ـ د هېوادونو زياته پراختيا كومې لانجې را ټوكوي ؟

۲۱ـ ترټولو ښه موقعيت كوم دی او ولې ښه ګڼل كېږي ؟

۲۲ـ ترټولو ستونزمن موقعيت كوم دی او ولې ؟

۲۳ـ د هېوادونو هستې يعنې څه؟

۲۴ـ د هېوادنو هستې جوړوونكي عناصر كوم دي ؟

۲۵ـ د پلازمېنې د ځای په بدلون كې اغېزمن لاملونه كوم دي ؟

۲۶ـ ديو هېواد قلمرو څومره اړين دی ؟

۲۷ـ ملت څنګه تعريفوئ او ملت كوم فكتورونه لري ؟

# پنځم څپرکی

# نړیوالې سیاسي پولې

سیاسي پولې (سرحدونه) هغه ټاکل شوې کرښې دي چې د ځمکې پر مخ د سیاسي سیمو دمحدودولو په موخه کارول کېږي. سرحد یا طبیعي وي او یا مصنوعي، چې طبیعي پولې د طبیعي پدیدو په مرسته لکه غرونو، سیندونو، روانو اوبو، دښتو، جهیلونو او داسې نورو په‌مرسته بېلېږي. مصنوعي پولې د هندسي کرښو او یا کواردینیټونو او یا داسې نورو په وسیله ټاکل کېږي. سرحدونه ډېر ارزښت لري چې یو یې د منطقي او بل یې د تخنیکي پلوه دی.

د سرحدونو ټاکل او مفهوم په پخوا وختونو کې د نن ورځې د سرحدونو څخه توپیر درلود. په پخوا وختونو کې پراخې سیمې د پولو په توګه ټاکل کېدې. په منځنیو پېړیو کې پولې ډېر ژر بدلېدې، یعنې هر مهال به نوې کېدې. په وروستیو کې دا چې د ځمکې ارزښت

د ورځې په تېرېدو زياتېدو ، د سرحدونو ټاکلو ته هم پاملرنه کېده ؛ چې بايد څلور پړاوونه تېر کړي .

دا چې د سرحدونو ارزښت ورځ تر بلې د ځمکې د ارزښت په رامنځته کېدو سره زياتېږي ، نو له همدې امله د سرحدونو (پولو) ځای مرزونو (کرښو ) ونيولو . مرزونه هغه نرۍ پديدې دي چې موږ له هغوی څخه بېلوي .

همدارنګه هر هېواد خپلې ځمکنۍ ، اوبيزې او هوايي پولې لري چې د يو هېواد لپاره حتمي او اړينې دي او له پولو څخه پرته د هېواد شتونتيا نا شونې ده .

## ۱.۵. دسرحدونو تعريف

سياسي سرحدونه له يوې متشکله سيمې څخه د بلې سياسي متشکله سيمې د بيلتون يا جدا والي غوره نښې دي . چې شونې ده دا نښې طبيعي او يا مصنوعي وي .

سياسي کرښې هغه ټاکل شوې کرښې دي چې د ځمکې پرمخ د سياسي سيمو د محدودولو په موخه کارول کېږي . البته که د سياسي سيمې څخه موخه يو ملک وي په دغه بڼه کې دا سرحدونه د نړيوالو سرحدونو په نوم يادېږي، که چېرته د سياسي سيمې څخه موخه يو ولايت يا ولسوالي وي چې د يو هېواد په داخل کې سياسي پولې رامنځته کوي نو دې ډول سرحدونو ته ملي سرحدونه وايي ( ۵ : ۸۲) . او يا په بله ژبه د يو هېواد سرحدونه هغه ټاکل شوې کرښې دي چې د يو هېواد سيمه د بل هېواد له سيمې څخه بېلوي .

د يو هېواد سرحدونه يا خو طبيعي او يا مصنوعي وي . طبيعي سرحدونه هغه سرحدونو ته ويل کېږي چې يوه سيمه له بلې سيمې څخه د طبيعي پديدو په مرسته لکه غرونو ،سيندونو، روانو اوبو، دښتو، جهيلونو او داسې نورو په وسيله بېلېږي . مصنوعي سرحدونه د هندسي کرښو او يا کوارډينټونو او يا داسې نورو نښو په څير د وګړو په وسيله لکه پوستو ،تيږو ،ديوالونو ، سرکونو ، پايو (سيمنټي پايو ) پيلرونو په مرسته ټاکل کېږي ( ۲۶: ۷۷).

## ۲.۵. دسرحدونو ارزښت

سرحدونه معمولاً ډېر ارزښت لري چې موږ یې ارزښت له دوو اړخونو څخه څېړو چې یو یې له منطقي اړخه او بل یې په تخنیکي اړخه .

**الف . له منطقي اړخه :** که چېرته موږ فکر وکړو سرحدونه له هغو کرښو څخه عبارت دي چې د هغو په وسیله د یو هېواد د قلمرو سیمې ځانګړې کېږي . نو اړینه ده چې د یو هېواد قلمرو باید ځانګړی شوی وي ، ځکه چې قلمرو د هېواد له متشکله عناصرو څخه یو مهم عنصر دی او د قلمرو په نه موجودیت کې دولت منځته راتلی نه شي ، پس دا چې سرحد دومره اړینه موضوع څرګندوي نو منطقي ده چې د سرحد ارزښت ومنو.

**ب . له تخنیکي یا حقوقي اړخه :** له تخنیکي یا حقوقي اړخه هم د سرحدونو په ارزښت ډېر ښه پوهیدی شو ، په حقوقي لحاظ سرحدونه له دوو اړخونو څخه با ارزښته ګڼل شوي . یو د ملي حقوقو له اړخه او بل د نړیوالو حقوقو له اړخه .

د ملي حقوقو له اړخه سرحدونه ډېر مهم او اړین دي ځکه چې د یو دولت ډېرې اړینې موضوعګانې د سرحدونو په دننه کې سرته رسیږي د بېلګې په توګه د مالیاتو د اخیستلو لپاره د سرحدونو موجودیت ته اړتیا ده ، همدارنګه د نفوس شمېرنې پر مهال هم سرحدونه اړین دي تر څو د خپل دولت وګړي پرې معلوم شي او په نفوس شمېرنه کې وګڼل شي ، په همدې ترتیب د داخلي او بیرونیو وګړو د تفکیک لپاره هم سرحدونه اړین دي .

د نړیوالو حقوقو له اړخه هم د سرحدونو د ارزښت څخه سترګې نشو پټولی د بېلګې په توګه د بیرونیو تصرفاتو او تېریو د مخنیوي لپاره اړینه ده تر څو د یو دولت سرحدونه څرګند وي ، په همدې ترتیب د بیرونیو وګړو د داخلیدو د مخنیوي او همدرانګه د وارداتو او صادراتو اندازې د ټاکلو لپاره د سرحدونو موجودیت اړین دی.

همدارنګه په سوداګرۍ ي موضوعګانو کې د محصولاتو د اخېستلو له اړخه هم د سرحدونو موجودیت ضرور برېښي ، که چېرته سرحدونه دقیق ټاکل شوي نه وي نو پر سرحدونو باندې د اختلافاتو د پیدا کیدو شونتیا زیاته وي ، همدارنګه پر سرحدنو باندې اختلافات هغه مهال هم را پیدا کېږي چې سرحد د بدلون په حال کې وي. د بېلګې په توګه که چېرته یو سیند د سرحد په توګه ټاکل شوی وي هغه مهال چې سیند خپل اصلي مسیر پرېږدي نو پدغه وخت کې په سرحدنو باندې کشمکشونه راپیداکېږي ،خو که چېرته دا موضوع په نړیوالو تړونونو کې مخکې له مخکې روښانه شوې وي نو پدغه حالت کې د دوو دولتونو تر منځ پر سرحدنو نانديږ او ګواښونه نه پیدا کېږي ، نو له دې څخه څرګندیږي چې د سرحدونو معلومول او سم ټاکل د یو هېواد لپاره ډېر اړین برېښي ( ۹ : ۱۳، ۱۴).

## ۵.۳. د سرحدونوټاکل

تاریخي نښې نښانې دا ښيي چې د سرحد مفهوم په پخوا وختونوکې د نن ورځې د سرحدونوسره په پرتله ایزه توګه توپیرلري. لکه چې پخوابه معمولاً سرحدونه د یوې کرښې په بڼه نه وو. اود دوو امپراتوریو ترمنځ به د بیلتون وسیله یوه پراخه سیمه ټاکل کېده اود دغه ډول سرحدونو ټاکلو به ځانګړې موخې درلودې، د بیلګې په توګه چینایانو او رومیانو سرحدونه ددې لپاره ټاکلې وو چې خپل مدنیت د وحشت او بربریت څخه خوندي وساتي . چې په دې باره کې د رومیانو د راین او دانیوب سیندونو او د چینایانو د چین دیوال څخه یادونه کولی شو(۹: ۱۲).

په منځنیو پیړیو کې هم د سرحدونو څه عجیبه غوندې حال و په دغه دوره کې د یو هېواد تړلې سرحدي کرښې د بل هېواد سره د بدلون او تحول په حال کې وې .ځکه چې امپراتورانو به خپلې د امپراتورۍ سیمې او د هغې اوسیدونکي خپل ملکیت ګڼل .نو کله به یي چې خوښه شوه د خپلې امپراتورۍ سیمه به یي د زامنو ترمنځ وېشله او یا به یي پرنورو وګړو باندې پلورله او په دې توګه به هر وخت نوي سرحدونه رامنځته کېدل . سربېره پردې د

پیاوړي مرکزي حکومت په نه موجودیت سره به د هېوادونو ځمکې په ځانګړو ټوټوا او خورو ورو شکلونو لیدل کېدې . ولې په دې وروستیو پېړیو کې هېوادونو یو واحد شکل غوره کولو او مرکزي قوي حکومت رامنځته کېدو چې ورسره سرحدونو هم ورو ورو د کرښو بڼه غوره کړه (۵ : ۸۲).

په هر حال د هغه وخت راپدېخوا چې هېوادونه او حکومتونه د ملتونو د غوښتنو پر بنسټ جوړ شول نو سرحدونو د نن ورځې د سرحدي کرښو مفهوم غوره کړ. او په تدریجي توګه سرحدي سیمې په سرحدي کرښو بدلې شوې . ځکه چې په وروستیو وختونو کې د ورځې په تېریدو سره د نفوسو زیاتوالی او د دوی اړتیاوې ځمکو اوله ځمکې څخه پلاس راونې ددې لامل شوې تر څو چې هېوادونه د سرحدي کرښو په نښه کولو کې له ډېرې ځیرکتیا او جدیت څخه کار واخلي (۹: ۱۳).

اوس مهال د سرحدي کرښو ټاکل معمولاً د بېلا بېلو پړاوونو د تیرولو وروسته تر سره کېږي .چې دا پړاوونه به په لاندې څو کرښوکې ذکر کړو.

**لومړی پړاو: د سرحدي کرښوټاکل**

پدې پړاو کې د دواړو هېوادونو د باندینو چارو وزیران او یا د دواړو هېوادونو استازي د مناسبو خبرو او پروتوکولونو د سرته رسولو وروسته په هر هېواد پورې تړلې سیمې ځانګړې کوي اوټاکي یې، سره لدې چې کېدای شي دواړه خواوې اویا یو لوری یې په خپله خوښه ونه مني د بېلګې په توګه د اسرایلو او د هغه د ګاونډیو عربي هېوادونو ترمنځ خبرې اترې چې په ناخوښۍ سره پای ته ورسیدې او یا هم د افغانستان او برتانوي هند ترمنځ د ډیورند سرحدي کرښه یا (Durand Line ) چې پر افغانستان په ناخوښۍ تحمیل شوې او هېڅ وخت هم د افغانستان وګړو ته د منلو او قبلولو وړ نه ده ( ۵ : ۹۴).

**دویم پړاو : د سرحدي کرښو محدودول**

پدې پړاو کې سرحدي کرښه له هغو سیمو او یا فزیکي پدیدو څخه چې دغه کرښه ورڅخه تیریږي ورته ډیره پاملرنه راړول کیږی . ددې پړاو بشپړیدل معمولاً د دواړو هیوادونو د رسمی استازو په وسیله او د سیمې د بشپړې څیړنې او نقشو څخه په ګټې اخیستلو سره سر ته رسیږي (۹: ۱۴).

**دریم پړاو: د سرحدي کرښو په نښه کول**

پدې پړاو کې د دواړو هیوادونو استازي سرحدي کرښه د ځمکې پرمخ چې په پروتوکول کې یاده شوې وي په نښه کوي . دا پړاو د سرحدونو په ټاکلو کې یو پیچلی پړاو دی . چې د ځمکې د جوړښت په نظر کې نیولو سره کېدی شي ډیره او یا لږه موده په برکې ونیسي .

پټه دې نه وي چې سرحدي نښې (پیلر) په ګڼ نفوسه سیمو کې د واټن له مخې یوه له بلې څخه د نیم میل واټن (0,5 mile) څخه په کم او په کم نفوسه سیمو کې ۳ میله څخه په زیات واټن کې درول کیږي . ددې پړاو پایلې په ډیره ځیرکتیا په نقشوکې ځای په ځای کیږي او د حکومتونو په واک کې ورکول کیږي (۱۰: ۹۳).

**څلورم پړاو: قانوني تایید یا وروستی تصویب**

پدې پړاو کې په نښه شوې اونقشه شوې سرحدي کرښه د پارلمان د وکیلانو او د دواړو غاړو هیوادونو د سرانو لخوا تائیدیږي تر څو چې قانوني بڼه ونیسي .دا پړاو هم کیدای شي لږه اویا ډیره موده په برکې ونیسي د بېلګې په توګه د انګلستان او د امریکا متحده ایالاتو تر منځ سرحدي ستونزه چې په ۱۷۸۳م کال کې د نه حلیدوپه وجه تر ۱۸۴۳م پورې وغزیده .

په هر حال تر څو چې په یو سرحد څلورم پړاونه وي عملي شوی په حقیقیت کې ذکر شوی سرحد په قانوني بڼه نه دی ټاکل شوی . پدې توګه کېدی شي ووایو چې سرحدونه

هیڅکله هم طبیعي او همیشني نه دي . ددوو هېوادونو د وګړو له خوا ټاکل کیږي او هر وخت چې وغواړي بدلون ورته ورکولی شي . د بېلګې په توګه هغه تړون چې په همدې اړوند د المان ( German ) او شوروي اتحاد (USSR) تر منځ په ۱۹۳۹م کې لاسلیک شوی و د قانوني والي سره سره دواړو هېوادونو دا سرحد همیشنی نه ګڼلو او یا دامور(Amore) سیند چې د چین ( China ) او شوروي اتحاد (USSR) تر منځ د سرحد په توګه ټاکل شوی او قانوني پړاو یې هم تیر کړی ولی بیا هم چین ته د منلو وړ نه دی .هغه مهال چې د سرحدونو په ټاکلو کې درې لومړني پړاوونه سرته رسیدلي وي دغه ډول سرحدونو ته ډیفکتو (Defacto) سرحدونه وایي .

مګر د دیجور (Dejure) یا قانوني بڼه هغه وخت نیسي چې څلورم پړاو یعنې وروستي تصویب پړاو (Ratification) یې هم تېر کړی وي ، همدارنګه د اوربند موقتي کرښې د دیفکتو په بڼه وي د بېلګې په توګه د شمالي او جنوبي کوریا ګانو (Koreas) د عرض البلد ۳۸ درجې چې دواړه کوریاګانې یو له بل څخه بېلوي ، دا کرښې سره ددې چې وروستنی او قانوني پړاو (Ratification) یې نه دی تېر کړی ولې بیا هم د دواړو هېوادونو تر منځ د سرحد په توګه منل شوی . په همدې ترتیب د شمالي عرض البلدونو ۲۱ درجې د مصر او سوډان تر منځ ګډ سرحد جوړوي چې البته ټول قانوني پړاوونه یې هم تېر کړي چې دې ډول سرحد ته دیجور (Dejure ) سرحد ویل کېږي. مګر دغه سرحدي کرښه په ختیځو برخو کې د مالدارانو او کوچي قبیلو په موجودیت سره په دواړو هېوادونو کې د اصلي تګلارې څخه انحراف کوي چې معمولاً ددې ځای اوسیدونکو کوچي قبیلو ته هیڅ د منلو وړ نه دی چې دې ډول شکل ته یې دیفکتو (Defacto) ویل کېږي. پس ویلی شو چې نن ورځ په نړۍ کې زیاتره سرحدونه د دیفکتو ( Defacto ) په بڼه دي. لکه چې پوهېږو د دوو هېوادونو تر منځ سرحدونه زیاتره د یوې کرښې په بڼه ښودل کېږي مګر بیا هم ځینې نورسرحدونه لکه چې د عربستان Saudi  Arabia او عراق Iraq تر منځ لیدل کېږي او یا په پخوا وختونو کې د عربستان او کویت په منځ کې موجود وو او په منځ کې یې ناپیلې سیمه

چې په حقیقت کې دواړه هېوادونه یې د وېش برخه کې هوکړې ته نه دي رسیدلي رامنځته شوي ( ۵ : ۹۲، ۹۳).

پدغه سیمه کې د پترولو سرچینو د کشفیدو وروسته د واړو هېوادونو پریکړه وکړه تر څو هر هېواد ۵۰ په سلو کې ددې سیمې د پترولو پلاس راوړنې خپلې کړي دواړو یادو شوو هېوادونو په پاې کې د (۱۹٦۹ او ۱۹۷۱م) کلونو په اوږدو کې داسیمه په دوه برخو ووېشله چې شمالي برخه یې په کویت او سهیلي برخې یې په عربستان پورې تړاو وموند.

په ځینو سیمو کې د دیفکتو سرحدونو د تثبیت لپاره سرحدي کربښې د دوو موازي کربښو په وسیله ښایي ددې کربښو په منځ کې معمولاً نا پیلې سیمې موجودې وي چې د یو هېواد تر اغیزې لاندې هم نه وي .

همدرانګه د ۳۸ عرض البلد درجې یعنې د دواړو کوریاګانو تر منځ سرحد د ۱۷ عرض البلد درجې یعنې د دواړو ویتنامونو Vietnams تر منځ سرحد د دواړو ویتنامونو د پیوستون څخه وړاندې ، د ختیځ او لویدیځ برلین تر منځ سرحد او همدارنګه د بیت المقدس د ښار د دواړو برخو تر منځ سرحد (د ۱۹٦۷ م کال د جنګ څخه وړاندې ) ددې ډول سرحدونو د بېلګو څخه دي چې البته ددې ډول سرحدونو ټول ډولونه د نظامي موخو له مخې او له جنګ څخه د مخنیوي لپاره رامنځته شوي ( ایضاً : ۹۴، ۹۵).




(۱.۵)نقشه : د شمالي او جنوبي کوریاګانو ترمنځ کرښه .

http://www.google.com.af/search?dcr=0&biw=1366&bih=677&tbm=isch&sa=1&ei=wIG8Ws6HBaSr6AT1mb_0.7DC5Ybn6Kgw

## ۴.۵. دسرحدونو ډولونه

کولی شو چې سرحدونه د څو اړخونو له مخې وېش کړو. لومړی داچې سرحدونه د وچې ، سمندرونو او فضاء بیا د وچې سرحدونه کولی شو چې پر ځمکې او وګړو د تطبیق له مخې کټګوري کړو او بل یې له طبیعي پدیدو څخه د ګټې اخېستنې له امله وښایو .

### ۱.۴.۵. دپیدایښت او پروګړو د تطبیق له‌مخې سرحدونو ډولونه

الف- هغه سرحدي کرښې چې په یوه سیمه کې د انساني ټولنو له میشت کېدو څخه وړاندې کښل شوې وي : دا ډول سرحدونه دسرحدونو غوره بېلګې ګڼل کېږي ځکه کله چې ورو ورو او په تدریجي توګه انساني ټولنې ددې ډول سرحدونو په څنډو او لمنو کې میشت

کېږي نو ځانونه د سرحد د قوانينو سره برابروي چې له همدې امله دا ډول سرحدونه هيڅ ډول ستونزې نه راولاړوي غوره بېلګه يې د الاسکا (Alaska) او کاناډا ( Canada) تر منځ سرحد دی ، ځکه کله چې په ۱۸۲۵– ۱۸۲۷م کلونو کې د روسانو او انګريزانو تر منځ ددې کرښې د ويستلو پريکړه کيده هيچا په دغو سيمو کې ژوند نه کولو ، دا ډول سرحدونه د انتي سيدنت (Anticedent) سرحدونو په نوم ياديږي . بله بېلګه يې د امريکا د متحده ايالاتو (USA) او کاناډا (Canada) تر منځ سرحد دی چې په ۱۷۸۲–۱۸۴۶م کې ټاکل شوی (۵ : ۸۸).




(۲.۵) نقشه: د کاناډا او الاسکا ترمنځ کرښه.

http://www.google.com.af/search?dcr=0&biw=1366&bih=641&tbm=isch&sa=1&ei=0o-8WvyNLKSg6ATgkILIBA&q=%...1c.1.64.psy-ab..0.0.0....0.oyWM5pDhs-k

ب ـ هغه سرحدونه چې له وګړو څخه په ګڼو سيمو کې غزيدلي وي خو د سيمو کلتوري ارزښتونو ته په کې درناوې شوی وي : دا ډول سرحدونه د سبسي کونت (Subsequent) په نوم ياديږي ددې ډول سرحدونو غوره بېلګې د زياتره اروپايي هېوادنو تر منځ ليدل کېږي او بله بېلګه يې د هند او پاکستان له ازادۍ او وېش (۱۹۴۷م کال) څخه وروسته د دواړو هېوادونو تر منځ سرحد دی (۹ : ۱۹).

ج . هغه سرحدونه چې ديوې سيمې د اوسيدونکو کلتوري ارزښتونو ته د درناوي پرته يوائې د نړيوال سياست په پايله کې کښل شوي وي : ددې ډول کرښو په غزولو سره هغه وګړي چې د يوې ژبې، يو کلتور اويو نژاد څخه وي او کلونه کلونه يې يو له بل سره ديو

کلتور په درلودلو سره لکه د ورونو په څیر ژوند کړی وي په بېلا بېلو هېوادونو پورې تړل کېږي چې د افریقایي هېوادونو تر منځ زیاتره سرحدونه او د افغانستان په ختیځ او سهیل ختیځ کې د دیورند Durand سرحدي کرښه یې غوره بېلګې دي. په بله ژبه زیاتره هغه سرحددونه چې له لومړۍ نړیوالې جګړې څخه وروسته په بېلا بېلو لویو وچو کې د استعماري هېوادونو په وسیله منځته راغلي ددې ډول سرحدونوڅخه ګڼل کېږي . همدا وجه وه چې په زیاترو ازادو افریقاي هېوادونو کې سرحدي کشمکشونه له غوره سیاسي مسایلو څخه دي چې د توګو ، ګانا ، بنین ، نائجریا او کامرون هېوادنو سرحدونه ددې ځای د اوسیدونکو ژبې او نژاد ته په نه پاملرنې سره ټاکل شوي دي او همدا لامل دی چې د ګاونډیو تر منځ یې همیشني مخالفتونه موجود دي . ددې ډول سرحدونو نورې بېلګې د حبشې شمال ختیځ سیمې او د جیبوتي د جمهوریت تر منځ سرحد دی چې د سومالې د وګړو په وېش تمام شوی . همدارنګه د کینیا او تانزانیا تر منځ سرحد چې د ماسائي (Masai) د وګړو وېش په‌کې رامنځته شوی . په همدې ترتیب د زایر او کانګو هېوادونو تر منځ د کانګو د وګړو وېشل ددې ډول سرحدونو بېلګې دي . په همدې ډول د نائیجریا په شمال دموریتانیا په جنوب ، په کلمبیا ، د مکسیکو په شمال ، د برما شمال ختیځ او شمال لویدیځ ، د عراق شمال ختیځ او یو شمېر نورو ختیځو اروپایي هېوادونو کې ددې ډول سرحدونو بېلګې لیدل کېږي . دا ډول سرحدونه د تحمیلي سرحدونو Superimposed په نوم یادیږي ( ۵ : ۹۴)او ( ۹ : ۱۹،۲۰).

## ۵ . ۴ . ۲. طبیعي عوارضو سره د تطابق‌له پلوه سرحدونه

هغه سرحدونه چې له فزیکي پدیدو څخه په ګټې اخېستنې سره ټاکل کېږي او د طبیعي سرحدونو په نوم یادیږي . ددې ډول سرحدونو څخه ګټې اخېستنې له ډېر پخوا څخه د هېوادونو په منځ کې رواج درلود. ددې ډول سرحدي کرښو د ټاکلو اصلي لامل دادی چې د سرحدونو په نښه کولو او د تثبیت پړاوونه یې په اسانۍ سره بشپړیږي ، همدارنګه ددې ډول سرحدونو دفاعي ارزښت هر وخت او بیا په ځانګړي ډول په پخوا وختونو کې زیات و.لیکن باید څرګنده شي چې دې ډول سرحدونو ته د طبیعي سرحدونو اصطلاح ورکول

ناسمه ده چې ګویا دا ډول سرحدونه په طبیعي بڼه رامنځته شوي او د بدلون وړنه دي . ددې ډول سرحدونو اصلي رول دا وي چې د دوه هېوادونو د قلمرو سیمې یو له بل څخه بېلوي او عادتاً ددې ډول سرحدونو د وګړو تر منځ اړیکې او پیوستون کم لیدل کېږي. پدې ډول سرحدونو کې د وګړو د تېریدو راتریدو لپاره یو یا څو ځانګړي معبرونه یا د تیریدو ځایونه ټاکل کېږي چې همدا معبرونه په اسانۍ سره دفاعي وړتیا هم لري . او په همدې ترتیب ددې ډول سرحدونو څارنه او کنترول د لږو لګښتونو په ګاللو سره کېږي دا ډول سرحدونه غوره او دوام لرونکي سرحدونه ګڼل کېږي ځکه چې سربیره پر دفاعي او نظامي ارزښت یې د نقشې پرمخ ددې ډول سرحدونو ټاکل او تثبیت اسانتیاوې لري. پردې ټولو غوره والو سربیره کیدای شي دا ډول سرحدونه ځینې ستونزې هم ولري د بېلګې په توګه شونې ده چې د غرونو په درو کې ځینې وګړي استوګن وي هغه وخت چې دا ډول سرحدونه ددې فرهنګي او ټولنیزو مرکزونو څخه تېرېږي کیدی شي چې ستونزې راولاړې کړي چې همدغو غرنیو وګړو ته د منلو وړ نه وي د بېلګې په توګه له چین (China) او هند (India) تر منځ د تبت (Tibit) د سیمې او د همالیا د لړیو منځنۍ سرحدي کرښه ( مکمهان) چې په ۱۹۱۴م کې تثبیت شوی وه لیکن هیڅ وخت په سیمه کې په نښه نه شوه ( ۵ : ۸۹،۹۰)

په همدې ترتیب د الاسکا (Alaska) ایالت او کاناډا (Canada) او همداسې د چیلي (Chile) او ارجنټاین (Argentina) تر منځ سرحدونه چې د اندیز د لړیو په غرنۍ سیمه کې دي، د دواړو هېوادونو د ۱۸۸۱م کال تړون پر بنسټ د سرحدي کرښو ټاکلو لپاره له جهیلونو کانالونو او سیندونو څخه ګټې واخیستل شوې او ددې جهیلونو ، کانالونو او سیندونو د ګټې اخیستلو غوره والی یې د غرونو په پرتله له دوه اړخونو څخه وښودلو . یو دا چې ددې پدیدو پلن والی د غرونو په پرتله کم وي او د نقشې پر مخ ښه ټاکل کېږي او بله دا چې د ځمکې په مخ یې په نښه کول اسانه بریښي ، ددې ډول سرحدي کرښو په ټاکنه کې د سیند د بستر ژور ترینه سیمه (Thalweg) او یا د سیند منځنۍ برخه (Median) د سرحد په بڼه ټاکل کېږي (۹ : ۲۱) .

له ۱۹۲۰از څخه راورسته دا پریکړه وشوه چې د سیندونو منځنۍ بستر د سرحد په توګه باید وټاکل شي. خو پټه دې نه وي چې پدې وروستیو کې د تکنالوژۍ پرمختګ او ورڅخه د سیندونو له اوبو څخه په ګټې اخیستنې لکه د اوبه خور سیستم، د برق پلاس راوړلو، کشتۍ چلولو او داسې نورو موخو کې یې د سیندونو ارزښت او ورڅخه یې د ګټې اخیستو پروسې ګړندۍ کړې او د سرحدي کرښو په توګه د سیندونو ټاکلو زیاتې ستونزې او باریکۍ راپیدا کړې. له بلې خوا دا چې دسیندونو د اوبو اندازه او تګلارې د بدلون په حال کې وي او ثابتې نه وي نو نشي کولی چې د یو ثابت سرحد په توګه رول ولوبوي. په زیاترو سیندونو کې د اوبو بهیدل داسې وي چې له یو لوري په ساحلي ځمکو ورشیله کېږي او بلې خوا ته خپل بستر پرېږدي چې دغه ډول کړنې په جغرافیه کې د اکریشن (Accretion) په اصطلاح یادیږي. د افغانستان په شمال کې د آمو سیند یې غوره بېلګه ده، همدارنګه ځینې وخت سیندونه په وچو غاړو کې خپلې تګلارې ته پوره بدلون ورکوي نو که چېرته دغسې سیندونه د دوو ملکونو تر منځ سرحد وټاکل شي نو زیاتې ستونزې به وزیږوي. د سیندونو دا ډول ناڅاپي بدلون اولژن (Avulsion) بلل کېږي چې د هلمند Helmand سیند یې د افغانستان Afghanistan او ایران Iran تر منځ ددې ډول سرحد غوره بېلګه ښیي(۵: ۹۱، ۹۲).

همدارنګه هغه پنځه ګوني جهیلونه چې د امریکا متحده ایالاتو (USA) او کاناډا (Cananda) تر منځ سرحد جوړوي .دا جهیلونه ددواړو هېوادونو په منځ کې په دوه برابرو برخو وېشل شوي دي، په همدې ترتیب په افریقا کې د کاریب (Karib) او همدارنګه د ویکتوریا جهیلونه (Victoria lake)د پورته سرحدي کرښو په بڼه ټاکل شوي دي. برعکس ځینې نور جهیلونه لکه تي تي کاکا او چاد کې د طول البلد او عرض البلد کرښې او یا هغه کرښې چې د قطب نما په مرسته رسم شوې وي د سرحدونو په بڼه ټاکل کېږي چې په دې ډول ټاکنو کې ددې جهیلونو څخه هېوادونه په نا برابره توګه ګټه اخلي(۹: ۲۳).

ځنګلونه او جبه زارې هم هغه طبيعي پديدې دي چې له پخوا څخه انساني ټولنو د بېلتون لامل ګرځېدلي او له همدې امله عادتاً د سرحدونو په ډول منل شوي. چې د بېلګې په توګه يې په افريقا کې صحرای اعظم ( لوې دښتې) څخه يادونه کولی شو (۵: ۹۳).

همدارنګه د اروپا د شمال ختيځ ځنګلونه چې له شوروي اتحاد (USSR) څخه د فنلينډ(Finland) او لتواني (Lithuania) له جمهوريت څخه د پولينډ (Poland) د بېلتون لامل ګرځيدلي . اګر چې د جبه زارو پراخوالی ډېر زيات نه وي ولې بيا هم دا ډول فزيکي پديدې هم د سرحدونو په توګه تر ګټې لاندې نيول شوي . د بېلګې په توګه د بلجيم (Beljium) او هالينډ (Netherland) تر منځ د ميوز (Meuase) او راين د سيندونو لانديني وادي چې يوه جبه زاره ده د دواړو هېوادونو تر منځ په سرحد منل شوې.

همدارنګه د دوو نړيوالو جګړو په منځ پړاو کې د پولينډ (Poland) سره د شوروي (USSR) د سرحدونو په ټاکلو کې له جبه زارو څخه ګټې اخيستل شوی . ددې ډول سرحدونو ټاکل زياتره وخت او بيا په ځانګړې توګه هغه مهال چې د همدې جبه زارو څخه اقتصادي په لاس راوړنې شونتيا پيدا کړي ، نو دغه وخت د هېوادونو تر منځ د لانجو او ستونزو د پيدا کيدو لامل ګرځي. د بېلګې په توګه دهند او پاکستان په سرحدونوکې د ( Ran of Catch ) سيمه چې په ۱۹٦۵م کال کې د دواړو هېوادونو تر منځ د سياسي ناندريو زيږنده شوه، تر څو چې په ۱۹٦۸م کې دا ناندريزه مسئله حل وفصل شوه (۹ : ۲۳،۲۴).

پټه دې پاتې نه وي چې په زياترو هغو ملکونو کې چې د سرحدي کرښو په ټاکلو کې له طبيعي پديدو څخه د ګټې اخيستنې شونتيا نه وي نو د طول البلد او عرض البلد له کرښو څخه د سرحدونو د ټاکلو په موخه کار اخلي ، له دې ډول سرحدونو څخه لومړی ځل په ( ۱۷۹۵م) کې د فلوريدا (Florida) په سيمه کې د اسپانې(Spain) او د امريکا متحده ايالاتو (USA) تر منځ ګټه واخيستل شوه چې دې ډول سرحدونو ته هندسي سرحدونه وايي . اګر چې دا ډول سرحدونه د ځمکې او نقشې پرمخ په اسانۍ سره د ټاکلو وړتيا لري مګر دا چې عادتاً د هغې سيمې د اوسيدونکو اقتصادي ، ټولنيزې او فزيکي وضعې ته په کې د

درنښت پرته ټاکل کېږي نو زياتره مهال د ناندرو د پيدايښت خطر په کې وي . ددې ډول سرحدونو غوره بېلګه دشمالي عرض البلد ۴۹ درجې کرښه ده چې د کاناډا (Canada) او د امريکا متحده ايالاتو (USA) تر منځ په ۱۸۱۸م کال کې د سرحدي کرښې په توګه ومنل شوه . همدارنګه د هندسي سرحدونو نورې بېلګې د امريکا دمتحده ايالاتو په دننه ، استراليا، افريقايي هېوادونو، منځني ختيځ او دې ته ورته په نورو سيمو کې ليدل کېږي (۹: ۹۴).

په دې وروستيو کې سرحدونو (پولو ) خپل ماهيت له لاسه ورکړی دی او ځای يې مرزونو (کرښو ) ته پرېښی دی ، نو لازمه به وي چې د سرحدونو (پولو ) پر ځای په مرزونو (کرښو ) رڼا واچوو.

## ۵.۵. د پولې او کرښې مفاهيمو پېژندل

### ۵.۵.۱. د سرحد او مرز د تعريف تاريخي بهير

په برهان قاطع کې راغلي دي : ((در برهان قاطع امده است" مرز به فتح اول و سکون ثاني و زای نقطه دار)) هغې ځمکې ته وايي او ويل شوي دي چې د مربع په بڼه جوړه وي، څنډې يې راجيګې وي او په منځ کې يې څه کښت کوي ، دسرحد په معنی هم راغلی .

ياده شوې توضيح د برهان قاطع له فرهنګه ، په فارسي ژبه کې له پخوانيو تعريفونو څخه ده ، او هماغه د سرحد "د بېلتون کرښه" معنی يې په اوستايي او پهلوي متنونو کې راغلې . د مرز اصطلاح او د هغې مترادفه "سامان" د دوو ځمکو منځ معنی لري . همدارنګه نورې اصطلاح ګانې لکه "کنارګ" هم په متنونو کې لېدل کېږي چې ټولې د مرز په معنی کارول شوي . د پهلوي په متنونو کې د "کېش" کلمه د مرز په مفهوم راوړل شوې ، چې هماغه د سرحد او دوو ځمکو ترمنځ د بېلتون په معنی ښودل شوې . دکشور کلمه هم له دوو برخو يعنې "کېش" د مرز او "ور" د لرونکي په معنی ترکيب شوې . په داسې حال کې چې مرز په فارسي کې د " سامان "له مفهوم څخه اخوا نه وراوړي او هغه خط (کرښه ) دی چې دوه هېوادونه يا دوه

سیاسي واحدونه سره بېلوي . "سرحد "په حقیقت کې د نهايي یا اخیرني مفهوم میزان یا اندازه جوړوي ، په داسې حال کې چې "مرز " د فرضي کرښې ښکاره کېدونکی ځای دی چې یو له بل سره دوه ځواکونو لخوا د سیاسي-نظامي فشارونو په پایله کې منځته راځي . "سرحد" د دوه سیاسي -اقتصادي خپلواک او له یو بل څخه بېل موجودیتونو د تماس سیمه ده چې په داې سره کولی شي د یو حکومت د نفوذ او د بېرونۍ قدرت محدوده وګڼل شي ، او یوه سرزمیني پدیده ده چې له یو مرز څخه ډېره پراخېږي او د یوې سرحدي سیمې حالت غوره کوي ( ۳۲ : ۴۲).

د سرحد مفهوم د بېلابېلو ملتونو په نزد توپیر کوي .ژان ګاتمن اشاره کوي : د ځینو ملتونو په آند سرحد په محیط کې هغه کرښه ده چې باید ورڅخه ساتنه او دفاع شوې وای . د "طبیعي سرحد "فرانسوي مفهوم شاید تردې ډېر غوره وي ، د نورو ملتونو په نزد سرحد هغه راچاپېره سیمه وه چې د تهولنیزو او اقتصادي بدلونونو سبب کېده ، چې د ملت د موجودیت لامل او د ملت د ګټهو په خوندیتوب کې اغېزمنه ګرځېده .

سرحد د ځمکې پرمخ هغه پدیده ده چې پراخوالی یې له یو خط (کرښې ) څخه پلن او د سیمې حالت غوره کوي ، سرحد ښایي د موانعو لکه غر، سیند ، دښته ... او داسې نورو لرونکی وي .دا پدیده د اوږدوالي له مخې معلومه وي ، مګر پلنوالی یې ښایي تهاکلی حد و ،نه لري او د هېوادونو ترمنځ د قراردادونو او د بېلابېلو موخو له مخې ښایي معینې اندازې ورته پام کې ونېول شي . مرز د دوو هېوادونو ترمنځ د بېلوالي کرښې ته وایي . د وروستني تعریف پر اساس د ځمکني ، سمندري ، هوایي او تحت الارضي قلمروونو وروستی حد د هر هېواد لپاره مرز ګڼل کېږي . مرز د یو هېواد لپاره د ګاونډي هېواد د بېلتون او پېژندلو تر تهولو غوره لامل دی .

نوې دنیا د سیاسي جغرافیې پوهان په دې آند دي چې "مرز "نوی مفهوم دی او په اروپا کې د صنعتي انقلاب وروسته منځته راغلی ، هغوی په دې باور دي چې دقیقو کرښو ته اړتیا په نوولسمه پیړۍ کې ولیدل شوه (۱۰ : ۳،۴).

## ۲.۵.۵. دسرحد اومرزتوپیرونه

مرزونه په ټولیزه توګه د یو سیاسي نظام یا حکومت د حدوداتو او قلمرو د حاکمیت او مالکیت ټاکونکي دي، او هېوادونه یو له بله تمیز او بېلوي. په تېرو وختونو کې هېوادونه یو تر بله په مرزي کرښو نه بېلېدل، بلکې په سرحدونو یا سور لرونکو پولو یو له بله لېرې واقع او پېژندل کېدل. سرحدونه جغرافیایي ـ سیاسي سور لرونکې سیمې وې او لزوماً د هېوادونو ترمنځ تفکیک کوونکې نه وې. دا سرحدې سیمې ددې ترڅنګ چې د دوو هېوادونو محدودې یې یو له بله بېلولې د هېوادونو حرص (لالچ) یې هم تحریکولو (پارولو) چې په پایله کې به یې په اشغال لاس پورې کولو. ځینې وختونه سرحدونه د طبیعي عوارضو او پدیدو لکه غرونو، سیندونو، دښتو، ځنګلونو ... او داسې نورو لرونکي وو، چې د یو طبیعي مانع په توګه یې عمل کولو او ځینې وختونو کې به یې یوه سرحدي سیمه د حایل سیمې په توګه وه، چې د دواړو ګاونډیو هېوادونو د ټکر او تماس مانع کېده (۱۰ : ۲).

د نوولسمې پېړۍ په وروستیو او د شلمې پېړۍ په لومړیو کې د اروپایانو د امپریالستي دوران د پراختیا په اوج کې سرحدونه د سیاسي خبرو اترو یوه شریکه برخه او د دوه هېوادونو ترمنځ د سیاسي وېشنې ښودونکي وو. نن ورځ مرزونه نوې بڼه لري، مرزونه د نړیوالو جریانونو، د انساني استوګنځایونو او د اقتصادي پراختیا تر اغېز لاندې د سرحدونو ځای نېوونکي شول، هغه سرحدونه چې په ځیرکتیا د کرښو په ډول ټاکل شوي دي. په هر حال اوس هم له دواړو اصطلاحګانو څخه په جغرافیه کې ګټنه کېږي، مګر د مرز اصطلاح په ځرګنده توګه د یو عام نوم په ډول دجغرافیایي وېشنو د تشریح لپاره منل شوې (۸ : ۱۸۴).

تاریخي نښې راښیي چې د سرحد مفهوم په پخوا وختونو کې د هغه په پرتله چې نن ورځ ور څخه استنباط کېږي توپیر لري .په پخوا وختونو کې به معمولاً سرحد د یوې کرښې په بڼه نه و او یوې پراخې سیمې به د دوو امپراتوریو ترمنځ د بېلتون حد جوړولو، اصلاً دا ډول سرحدي سیمې د یوې امپراتورۍ د پرمختګ د امکان وروستی حد په ګاونډي سیمه کې تمثیلوي؛ که څه هم په دې اړه هم استثنات موجود وو لکه د چین او روم پخوانیو امپراتوریو کې د هغو سرحدونه یې غوره بېلګه ده. سره له دې چې دا سرحدونه د هېوادونو ترمنځ د

مساوي حقوقو او ارزښت لرونکي نه و، به بله ژبه دا ډول سرحدونه د رومیانو او چینایانو لپاره هغه کرښې وې چې خپل مدنیت یې د نورو له بربریت او وحشت څخه پرې بېلولو. همدارنګه د انګلستان په شمال او د جرمني په جنوب کې د دیوال جوړول د سرحدونو نورې بېلګې وې (۴: ۷۳).

سرحدونه او سرحدي کرښې تل د پوهانو لپاره په سیاسي جغرافیې کې د خوښې وړ موضوعګانې دي. باید وویل شي چې د دواړو اصطلاحګانو ترمنځ روښانه توپیر نه لیدل کېږي. د د ۱۹مې پېړۍ په وروستیو او د ۲۰مې پېړۍ په لومړیو یعنې د اروپایي استعمار د اوج په کلونو کې د Frontier یا سرحد اصطلاح د هېوادونو ترمنځ د سیاسي وېشنې ښودلو لپاره یا د هېوادونو د اوسېدونکو د استوګنې ځایونو د حدوداتو د ټاکلو په موخه د هېوادونو ترمنځ تر ګټنې لاندې راغلې وه. نن ورځ په نړۍ کې د استوګنې ځایونو او اقتصادي سیستم کې د بدلون له امله سرحدونه (Frontiers) په سرحدي کرښو (Boundaries) چې د هېوادونو حدودات په دقیقه توګه ټاکي تبدیل شوي. که څه هم دا دواړه اصطلاحګانې نن هم په جغرافیه کې تر ګټنې لاندې دي مګر په جغرافیه کې د سیاسي وېش ښوونې او ګټې وړ مروجه او معمول اصطلاح په اوسني وخت کې سرحدي کرښه (Boundary) ده (ایضاً: ۸۱).

دمرز او سرحد اصطلاح په پراخه توګه د جغرافیه پوهانو او نورو لخوا د سیاسي وېشنو لپاره په ځانګړي توګه په ملي سطحه ترګټنې لاندې راځي. په دې اړه ددې دواړو ترمنځ توپیر پیدا کول ستونزمن دي. د۱۹مې پېړۍ په وروستیو او د ۲۰مې پېړۍ په لومړیو کې د اروپایانو د امپریالستي پراختیا د اوج په وخت کې، سرحدونه د سیاسي خبرو اترو مشترکه برخه وه او د دوو هېوادونو او یا دایمي وګړو د استوګنو ځایونو د وېشنې ښودونکي وو. نن ورځ سرحدونه نوې بڼه لري، سرحدونه په مرزونو چې د کرښو په توګه ټاکل شوي ،ځای ناستي دي. که څه هم ددې دواړو اصطلاحګانو څخه په سیاسي جغرافیې کې ګټه اخېستل کېږي مګر د مرز اصطلاح د یو عام نوم په توګه د جغرافیایي وېشنو د تشریح لپاره منل شوې ده (۳: ۱۸۴). همدارنګه د نیومن په آند چې مرزونه د سرحدي سیمې ځای ناستي دي (۶: ۲).

ددې لپاره چې د سیاسي کرښو (مرز) او سیاسي پولو (سرحد) تر منځ په دې وروستیو کلونو کې ډېرو توپیرونو ته د سیاسي جغرافیې پوهان قایل شوي دي له همدې امله غواړو چې د کرښو (مرزونو) توضیح هم په لاندې ډول کرښو کې وکړو.

## ۳.۵.۵. سیاسي مرزونه

انسان د خپلو کارونو د ترسره کولو او ځانګړو کولو په موخه د خپلې استوګنې په وروستیو برخو یا د چاپیریال په وروستیو برخو کې د سیاسي کرښو تاکلو ته اړتیا لري، ددې مفهوم پراختیا موندونکې بېلګه چاپیره کرښه ده، چې د یو ملت د چارو وروستۍ پراخه شوې سیمې ځانګړې کوي او سیاسي اړخ مومي چې سیاسي کرښه یعنې مرز ورته ویل کېږي. کولی شو د یوې ځمکې (هېواد) وروستۍ څنډې (حاشیې) په درې طریقو سره وټاکو.

**۱. کرښه (مرز)** : چې د انګلیسي اصطلاح (Boundary) سره مترادفه ده، او په خلا یا تشه کې د یوې کرښې څخه چې د " موږ" مفهوم له " هغوی " څخه بېلوي عبارت ده . ددې موضوع د ښه روښانتیا لپاره لاندې انګلیسي جمله لیکو.

Boundary is a line in space for separating the concept of us from them.

**۲.پوله (سرحد )** : چې د انګلیسي ژبې (Prontier) اصطلاح سره ورته ده، او عبارت له هغې نسبتاً پراخې یا پلنې سیمې څخه ده چې د دوو هېوادونو یا دوو ځمکو په اخېرنۍ برخه کې واقع وي او دوه ګاونډي هېوادونه نه وي توانېدلي چې ځانګړې کرښه (مرز) هلته رامنځته کړي . نن ورځ د زیاتو هېوادونو په منځ کې د سیاسي کرښې (خط مرزی) په ټاکلو سره د پولې (سرحد) مفهوم عملاً نشته ، خو داسې ښکاري چې دې مفهوم خپل ځای "حایلو سېمو " مفهوم ته پرېښی وي.

**۳.څنډه** : چې په انګلیسي کې ورته (Border) او په فارسي کې ورته (سامان) وایي او د یو قلمرو وروستۍ څنډه ده چې د کرښې دواړو غاړو ته پرته وي . د سامان (څنډې) اصطلاح

په فارسي کې د استوګنې ملکيت، باغ او يا د کرنې لپاره کاروي، او د مالکيت يا محدودې ځنډې ورڅخه موخې دي (۳۲ : ۴۶ ، ۴۷).

## ۵. ۶. د کرښو ډولونه

ځينې انګليسي کرښه کښونکي لکه لارډجورج کرزن(Lard George Curzon) او سر هنګر فورد هولديچ( Sir Hongerford Holdich ) چې د ايران او هند (اوسني پاکستان) کرښې يې کښلې د کرښو (مرز) په واقعيت لرلو سره معتقد وو ، او طبيعي کرښې يې د کرښو غوره کرښې ګڼلې . همدارنګه امريکايي ريچارد هارتشون کرښه (مرز) په انساني نړۍ کې اړينه ګڼله، او کرښې يې په پنځو ډولونو په لاندې توګه وېش کړې .

۱ـ هغه کرښې چې د مهاجرينو لخوا له استوګنې پرته سيموکې راپيدا شوې ، چې ورته (Pioneer) وايي.

۲. هغه کرښې چې په طبيعيت کې د وګړو تر استوګنې مخکې شتون لري يعنې (Anticedent ) کرښې .

۳. هغه کرښه چې په نوبت سره د يو هېواد يا يو ملت په څو ټوټو کېدو او يا وېش تمامې شوې وي او په تطبيقي توګه رامنځته شوې وي ؛چې (Subsequent ) کرښې يې بولي .

۴.تحميلي کرښې لکه د اروپايانو لخوا چې د نړۍ په نورو برخو کې د پيدايښت په لومړيو وختونو کې تحميل شوي لکه د ډيورنډ کرښه ؛ چې(Superimposed ) ورته هم ويل کېږي .

۵. ترک شوې کرښې يا (Relict ) : هغه غوره نېوکه چې د کرښو په ډلبندۍ کې پر هارتشون وارد ده ، هغه داده چې هره کرښه چې متروکه وي ؛ نور خو کرښه نه ده . په اوسنۍ (۲۱مه ) پېړۍ کې د کرښې د مفهوم په کارولو ښايي هغه ډلبندي چې د هارتشون لخوا شوې د سياسي او جغرافيايي ټينګ منطق څخه چندان برخمنه نه وي . ښايي په اوسنۍ سياسي نړۍ کې کرښه(مرز )په لاندې توګه ډلبندي کړو( ۳۲ : ۵۱).

## ۵.۷. د کرښو نوې ډلبندي

لکه چې وویل شول د دوو خپلواکو محدودو د تفکیک لپاره د کرښې (مرز) کلمې د کارونې تاریخ ډېر پخواني نه دی، دا اوسنۍ د کرښې کلمه د سرحد ځای ناستې ده. نن ورځ د بېلابېل ډوله کرښو شاهد یو چې ځینې یې په لاندې توګه پېژنو.

### ۵.۷.۱. طبیعي کرښې

دا ډول کرښې د طبیعي یا جغرافیایي عوارضو لکه غر، د رې (لګډې)، رودخانې یا د سیندونو په وسیله منځته راغلې وي. په همدې توګه طبیعي کرښې یا د وچې کرښې د غرونو او درو په امتداد، بیدیاوو په منځ کې، د کرنیزو ځمکو په امتداد او داسې نورو کې جوړېږي، او اوبېزې کرښې د سیندونو یا سمندرونو په امتداد کې ټاکل کېږي. سیندنۍ کرښې په دوه ډوله دي. د کشتۍ چلولو وړ سیندونو کې د نړیوالو منل شوو مقرراتو پر اساس د سیندونو د تالوګ(Thalweg) یا (قعر الماء) یعنې د سیندونو ژورې برخې په امتداد ټاکل کېږي، لکه په شط العرب (اروند رود) اوبو کې د ایران او عراق سیندنۍ کرښه چې د **۱۹۷۵**م کال د پرېکړې پر اساس ټاکل شوې ده.




(۱.۵) انځور: د تالوګ پر اساس اوبنۍ کرښه.

http://www.google.com.af/search?dcr=0&biw=1366&bih=598&tbm=isch&sa=1&ei=23G3Wq6QLeqF6ASezqD4Bg&q=Thalweg&oq=

د کشتۍ چلونې په نه وړ اوبو کې کرښه (مرز) د غاړې هېوادونو د پرېکړې پر بنسټ د سیندونو د څنډو پر امتداد یا د اوبو منځنۍ کرښې (وسط الماء) په امتداد ټاکل کېږي (۳۲ : ۵۲).

### ۲.۷.۵. فرهنګي کرښې

دا ډول کرښې معمولاً د بېلابېلو فرهنګونو بېلوونکې وي، پرته له دې چې حتمي په سیاسي بڼې منځته راشي او د جغرافیایي صفحې پر مخ ترسیم شي، مګر که چېرته د بېلابېلو فرهنګونو محدوده له یو بل سره د بېلو ملتونو محدودې سره تطبیق پیدا کړي، سخته ده چې د هغو ملتونو جغرافیایي-سیاسي بېلوونکې کرښې د هغو تر منځ فرهنګي کرښې وګڼل شي.

### ۳.۷.۵. سیاسي کرښې

دا ډول کرښې سیاسي فلسفې یا ایډیالوژیانې یو له بله بېلوي. یا په بله ژبه سیاسي کرښې له یو سیاسي متشکل واحد څخه د نورو سیاسي متشکله واحدونو د بېلولو او پېژندلو غوره لاملونه دي. سیاسي کرښې په یو هېواد کې چې د هر ډول طبیعي وحدت لرونکې هم نه وي؛ سیاسي وحدت رامنځته کوي (ایضاً : ۵۵).

### ۴.۷.۵. قومي کرښې

دا ډول کرښې یو له بل څخه بېل قومونه بېلوي، په هره ځمکه کې د یو قوم جغرافیایي پراخه وروستۍ محدوده له نورو قومونو څخه دهغه قوم بېلوونکې کرښه ده. شونې ده دا ډول کرښې پر فرهنګي کرښو تطبیق شي او یا د ذهنیت له حد څخه بېرون نه شي، خو هغه مهال چې یو قوم یو ملت وي یا څو یو رېښه لرونکي قومونو یو ملت منځته راوړی وي؛ له نورو ملتونو څخه د هغه ملت بېلوونکې کرښې " قومي " کرښې ګڼل کېږي (۱۲ : ۱۷).

## ۵.۷.۵ . تحمیلي کربنې

دا ډول کربنې هغه کربنې دي چې پرته له دې چې د هغې سیمې د استوګنو فرهنګي ، دیني یا قومي جوړښت ته په کې پام شوی وي ؛ د نړیوال سیاست په پایله کې رامنځته شوي (۱۲ : ۱۷) . په پخوا وختونو کې نړیوالو یا سیمه ییزو قدرتونو کولی شول د خپلې خوښې کربنې د خپلو مستعمراتو تر منځ یا د خپل ځان او کمزورو هېوادونو تر منځ تحمیل کړي . په اوسنۍ نړۍ کې بر تر قدرتونه په ځانګړو شرایطو کې ځان ته اجازه ورکوي تر څو د دوو یا د څو ښکېلو هېوادونو تر منځ د نا امنیو او جنګ د ختمولو لپاره په دغو د پولو پر سر لانجو کې ښکېلو هېوادونو باندې د ملګرو ملتونو ټولنې لخوا تحمیلي کربنې تحمیل کړي . ددې ډول تحمیلي کربنو غوره بېلګه په نننۍ نړۍ کې د کوېټ او عراق تر منځ په وچه کې تحمیل شوې کربنه ده ؛ چې په ۱۹۹۳ م کال کې تحمیل شوه . که څه هم کوېټ ددې کربنې سره خوښ دی ، خو عراق خپله نا خوښي ورسره اعلام کړې ده ؛ او دا کربنه یې تحمیلي ګڼلې ده (۳۲ : ۵۶) .

## ۶.۷.۵ . اقتصادي کربنې

چې د ګمرکونو په جوړېدو سره په سرحدي کربنو کې ښکاري . په دې وروستیو کې د ازاد بازار اقتصاد "د نړیوال توب" او د خبر رسونې انقلاب (Information technology) ددې کربنو رول بدل کړی (۱۲ : ۱۷) .

## ۷.۷.۵ . هندسي کربنې

په زیاترو هېوادونو کې د کربنو په ټاکلو کې له طبیعي عوارضو څخه ګټه نا شونې وي ، له کواردینېټونو (طول البلد او عرض البلد ) او یا له سیده او ګردو کربنو څخه ګټه اخلي ؛ دې ډول کربنو ته هندسي کربنې وایي (ایضاً:۱۷) .

### ۵.۷.۸. متروکه کرښې

دې ډول کرښو د سیاسي کرښو په عنوان خپل باور له لاسه ورکړی دی؛ خو نښې یې تر اوسه په سترګو کېږي (۱۲ : ۱۷).

## ۵.۸. د کرښو کښلو ټولیزې ځانګړتیاوې

کرښې د زیاتو ځانګړنو لرونکې دي، مګر داسې معلومېږي چې څلور غوره ځانګړتیاوې یې په لاندې توګه وښایو.

۱. کرښه سربېره پردې چې د هېوادونو ترمنځ د حدودو د ټاکلو لپاره کښل کېږي، شونې ده چې د ځانګړو غوښتو او شرایطو پر مهال دوه ټولنې یو له بله بېلې کړي، د بېلګې په توګه د اسرایلو او فلسطینیانو ترمنځ دیوال چې د اسرایلو په وسیله جوړ شوی دی.

۲. ښایي چې کرښې له مقابل لوري څخه د وېرې او امنیتي ستونزو له امله جوړې شي، لکه د دواړو شمالي او جنوبي کوریا ګانو ترمنځ کرښه چې په ماینونو پوښل شوې ده.

۳. ښایي چې کرښې له ټولیزه اړخه د دوو ټولنو ترمنځ منځته راشي او اصولاً قومیت پورې تړاو نه لري، لکه په ځینو هېوادونو کې د بډایو او غریبو ترمنځ کرښې.

۴. په ځینو لویو وچو کې کرښې د ځمکې لاندې سرچېنو د تصرف او اوبو او نفتو ته د لاس رسي له امله په سیالۍ کې رامنځته کړې دي، لکه په منځني ختیځ او نورو هېوادونو کې (۱۲ : ۱۶).

## ۵.۹. سمندري سرحدونه

د نړۍ ډېری هېوادونه د یو یا څو سیندونو یا اوبو سره د ګاونډ له امله اوبیزې کرښې لري، ځینې هېوادونه د خپل موقعیت (په وچه کې د راګېرتوب) له امله اوبیزې کرښې نه لري

له بله‌پلوه ځينې هېوادونه لکه آيسلينډ ، جاپان، استراليا ، نوی زيلانډ او مالاګاشي د ټاپوګانو لرونکي موقعيت په دليل په بشپړه توګه په اوبو کې راګېر دي او هېڅ ډول د وچې کربنې نه لري ( ۳۷ : ۱۷۳).

د هېوادونو د اوبيزو کربنو ټاکل برخلاف د هغې چې په ظاهره ښکاره ؛ اسانه کار نه دی .آن چې زياترو وختونو او ځايونو کې يې د هېوادونو تر منځ سخت جنجالونه او کشمکشونه را ولاړ کړي دي . هر هېواد حق لري چې د خپلو غاړو اوبو پر ځينو برخو حاکميت ولري او پای کې د نورو هېوادونو لپاره په دغو اوبو کې د ازاد کشتۍ چلولو ، کب نيولو او له بستر څخه يې د ګټې اخيستلو حق سلبېږي .

## ۱.۹.۵. د سمندري قوانينو تاريخچه

د تاريخ په اوږدو کې په مختلفو وختونو کې قانون جوړوونکو هڅه کړې ده تر څو په سمندرونو د حاکميت د حق لپاره قوانين وضع کړي .لومړنی قانون چې په دې اړه وضع شو د توپ مرمۍ د لګېدو قانون و، چې په ۱۷۰۲م کال کې د هالنډ قانون جوړوونکي وان بينکرشوک(Van Binkershoek ) وړانديز کړ. د نوموړي په آند اګر چې سمندرونه په ټولو ملتونو پورې تړاو لري ، ولې هر ساحلي هېواد بايد د توپ مرمۍ تر لګېدو ځای پورې پر ساحلي اوبو د حاکميت حق ولري . وروسته ددې قانون پر بنسټ تر درې ميله پورې ساحلي اوبه او تر دې اخوا ؛ ازادې اوبه وګڼل شوې (ايضاً : ۱۷۳).

دا قانون د انګلستان هېواد ته چې د سمندري غلو څخه تهديدلو؛ د ارزښت وړ و . وروسته د توپ مرمۍ د اوږد واټن وهلو له امله ددې قانون ارزښت له پامه وغورزېدو او د ځينو هېوادونو د نېوکو لاندې راغی او په تدريج سره ځينو هېوادونو د خپلو اوبو سور (عرض) له درېو تر شپږو او آن چې تر ۱۲ مېلو پورې وغزولو . هغو هېوادونو چې د سمندر په غاړو کې يې موقعيت درلود او پر وړاندې يې مدعيانو شتون نه درلود لکه برازيل او پېرو تر دې هم وړاندې ولاړل او په سمندرونو کې يې له خپلو غاړو څخه بيا تر ۲۰۰ ميله پورې د حاکميت دعوه کوله . ددې ګډوډۍ د لمنځه وړلو په موخه او د هېوادونو د اوبو حد ټاکلو په

پار په لومړیو کې د متفقو ملتونو ټولنې د لاهه په ښارکې د سمندرونو د حقوقو کنفرانس په ۱۹۳۰م کال کې جوړ کړ، وروسته درې کنفرانسونه د ملګرو ملتونو ټولنې په وسیله په ۱۹۵۸م او ۱۹۶۰م کلونو کې په جینیو او په ۱۹۸۲م کال کې د جامایکا د مانتیګوبی (Mantego Bay) په ښار کې وشول او د هېوادونو سمندري عرض (سور) یې د کم ترکمه درې څخه تر زیات نه زیات ۱۲ میله پورې وټاکلو (۳۷ : ۱۷۳، ۱۷۴).

د ګوتو په شمېر له څو هېوادونو څخه پرته چې په وچه کې راګېر دي د نړۍ زیاتره هېوادونه د سمندرونو او سمندرګیو سره د ګاونډیتوب له امله په بېلا بېلو واټنو سره د سمندري سرحدونو لرونکي دي . یا په بله ژبه ددغې هېوادونو یوه زیاته اندازه پراخه سیمه په سمندرونو کې هم وي ، په سمندرونو د برلاسۍ او حاکمیت څرنګوالی د وچو په پرتله توپیر لري ، ځکه چې په سمندرونو کې انساني ټولنې د تل لپاره نه اوسیږي. ولې همدا د سمندرونو څنډې دي چې سربیره له هغو کانونو څخه چې د سمندر په بستر او یا ساحلي برخو کې دي نورې اقتصادي سرچینې لکه له سمندر څخه د کبانو تر لاسه کول هم په زیاته پیمانه په همدې سیمو کې لیدل کېږي (۵: ۹۴) .

په ۱٦از پیړۍ کې اسپانې (Spain) او پرتګال (Partugal) د نړۍ د سمندرونو په زیاتو برخو تر هغه چې شونې بر ښنیده د برلاسي او حاکمیت دعوه کوله ، د هېوادونو د سمندري سرحدونو ټاکل د فکر او خیال پر خلاف ساده او اسان کار نه دی . ځکه هر هېواد کولی شي چې د خپلو ساحلي اوبو پر پراخه اندازه باندې د برلاسي او حاکمیت دعوه وکړي . سره ددې چې د تاریخ په اوږدو کې پدې کوښښ شوی دی تر څو ددغسې ساحلي سیمو د پراختیا په اړوند قوانین وضع کړي چې په دې اړوند په ۱۷۰۲م کال یو تن هالندي عالم وان باینکر شویک (Van Bynker Shoek ) دارنګه نظر وړاندې کړ چې: (( سمندرونه د ټولو وګړو دي او ساحلي هېوادونه کولی شي چې په ساحلي اوبو کې د توپ د مرمۍ د لګیدو په اندازه د حاکمیت دعوه وکړي)). دا چې دې واټن د توپ مرمۍ پورې تړاو درلود او د مرمۍ لګیدل او دا واټن ثابت نه وو نو وروسته یو منځنی حد واټن د درې میله (3Miles)

په اندازه د هېوادونو د سمندري سرحد په توګه وټاکل شو چې دا سيمه د بحري قلمرو (Territorial Water) په نوم يادېږي .

هغه سرحد چې په سمندرنو کې د بحري قلمرو په نوم يادېدو ټولو هېوادونو کې د منلو وړ ونه ګرځيد او دا د سمندري سرحد واټن په بېلا بېلو هېوادونو کې توپير درلود چې دا د توپير اندازه له درې ميله (3Mile) څخه تر دوه سوه ميله (200 Mile) پورې رسيده د بېلګې په توګه داد سمندري قلمرو سيمه په انګلستان ، استراليا ، د امريکا په متحده ايالاتو او په ځينو نورو هېوادونو کې تر درې ميله (3Mile) ښودل شوې وه ، په همدې ترتيب په البانيا او يوګوسلاويا کې لس ميله (10 Mile) په الجزاير ، مصر ، چين او شوروي کې دولس ميله ( 12 Mile) ،په سريلانکا کې شپږ ميله (6 Mile) ،په کامرون کې اتلس ميله (18 Mile) ، په ترکيه کې شپاړس ميله (16 Mile) ، په ناروي کې څلور ميله ( 4 Mile) او بالاخره په ارجنټاين ، پيرو او پانامه کې تر دوه سوه ميله (200 Mile) پورې رسيده (**۵: ۹۵**).

د سمندري قلمرو له غوره موخو څخه د ناروا سوداګرۍ څخه مخنيوى کول دي چې له ډېر پخوا څخه ډېرو هېوادونو لپاره سوداګريزه او اقتصادي ستونزه وه . چې په همدې اړه د برتانيې پارلمان دې واټن ته په لومړيو کې د سمندر په دننه کې تر شپږ ميله (6 Mile ) پورې پراخوالى ورکړې و . چې البته وروسته دا پراخوالى تر **۹،۱۲** ميله او آن چې تر **۳۰۰** ميله وغزيدو ، په **۱۷۳۹**م کې د برتانيوي حکومت له غړو څخه يوتن د سمندرونو په سواحلو کې د څارونکو کشتيو ګرځيدل د ټولو ساحلي هېوادونو مسلم حق وګڼلو ، چې په **۱۸۷٦**م کې يو ځل بيا ياده شوې سيمه تر **۹** ميله پورې راکمه شوه او په **۱۷۹۰**م کې د امريکا متحده ايالاتو په خپل هېواد کې دا واټن **۱۲** ميله وټاکلو . همدارنګه اسپانيې په **۱۸۷۴**م او **۱۸۷۵**م کلونو کې دا واټن ٦ ميله ومنلو (ايضاً: **۹۵** ).

په هر حال د درېيم هغه پرله پسې کنفرانس په ناستو کې چې په **۱۹۷۴**م کې په نيويارک او کاراکاس کې وشوې او بيا په **۱۹۷۴**م کې په جينوا او په **۱۹۷۵**م کې کلونو کې

په نیویارک کې په نوبتي ډول تر سره شول چې په پایله کې یې یوه قانوني مسوده برابره شوه چې په هغې کې د هېوادونو د سمندري قلمرو سیمه د پیل له نقطې څخه تر ۱۲ میله ، د نظارت لاندې ساحې پراخوالی تر ۲۴ میله او بالاخره اقتصادي سیمه تر ۲۰۰ میله پورې د سمندرونو په دننه کې وټاکل شوې .




(۲.۵) انځور : دسمندري قلمرو ، نظارت او اقتصادي سیمه (۳۷ : ۱۸۳)

همدارنګه د نورو هېوادونو لکه د ډېرو ټاپوګانو څخه جوړشوو هېوادو ، په وچو کې د راګیرو او بالاخره د سمندرونو څخه د ګټې اخستلو په اړوند د یوې نړیوالې ټولنې د جوړېدو پر موضوع باندې غور وشو چې دا پریکړه لیک د یو څه تعدیلاتو او تفصیلاتو سره د ۱۹۸۲م کال په وروستیو کې د نړۍ له ۱۰۰ سلو څخه د زیاتو هېوادونو په وسیله په جمیکا کې لاسلیک شوه .

په هره بڼه پر سمندرونو باندې د هېوادونو د برلاسي او کنترول څرنګوالی په لاندې توګه واضح کېږي .

د داخلي اوبو ساحه (Internal Water) : دا هغه سیمه ده چې کوچني خلیجونه او ټولې هغه اوبه چې د وچو او پیل د کرښو تر منځ موقعیت لري په بر کې نیسي ، ددې ساحې په تعقیب د سمندري قلمرو ساحه (Territorial Sea) موقعیت لري او دا هغه ساحلي سیمه ده چې له پیل کرښې څخه د سمندر په لور تریوې معلومې فاصلې پورې دوام لري. هېوادونه پدې ساحلي سیمه کې د پوره پوره برلاسي لرونکي ګڼل کېږي (۵ : ۷۴).

د سمندري قلمرو په ګاونډ کې د نظارت لاندې ساحلي سیمه ده او دا هغه سیمه ده چې پلنوالی یې د بېلا بېلو هېوادونو لپاره توپیر لري او قسماً د هېوادونو د کنترول (ولکې) لاندې وي ددې سیمې د لرلو غوره موخه د سمندرونو له بستر څخه د کاني زیرمو په لاس راوړل، ماهي ( کب ) نیول او د نا قانونه سوداګرۍ کنترول کول دي (۵ : ۹۶ ).

## ۵.۹.۲. د دوو مجاورو هېوادونو ترمنځ د اوبیزو کرښو ټاکل

د دوو مجاور هېوادونو ترمنځ د اوبیزو کرښو ټاکل معمولاً د منځني خط کښلو سره ټاکل کېږي. که چېرې د دوو هېوادونو په منځ کې بېلوونکې کرښه سیده او د کږلېچونو نه لرونکې وي، نو هغه کرښه چې پرساحل عموده وي د دوو هېوادونو ترمنځ اوبنۍ کرښې تفکیک کړي . خو هغه غاړې چې ماتې راماتې لري د نیمایي (منصفې) کرښې کښل په کې ستونزمن وي. د دوو مجاورو هېوادونو ترمنځ د منصفه کرښې کښل چې غابښ لرونکې غاړې لري، لومړۍ د اوبو سره د هغه دوو هېوادونو د وچو کرښو د پیوستون ټکی مبدا (پیل) نېسو او ددې ټکي په مرکز او د خپلې خوښې وړانګې (شعاع) (هرڅومره چې لنډه وي دقیقه وي) ، یوه نېمه دایره جوړوو ، په داسې ډول چې د مبدا ټکي د دواړو لورو غاړې قطع کړي. په پایله کې دوه نوي ټکي په مساوي فاصلې سره د پیل ټکي په دواړو لورو کې په لاس راځي . وروسته ددې دوو ټکو په هریو د پرکار د نوکې په کېښودو سره د هغوی ترمنځ له نیمایي فاصلې څخه د زیاتې شعاع په لرلو سره نېمه دایره تر سېموو ترڅو یو بل سره قطع کړي. وروسته د وچې مبدا ټکي یو له بل سره وصلوو ، دا چارې تر هغې پورې تکراروو ترڅو چې ساحلي منصفه کرښه لاس ته راشي ( ۳۷ : ۱۸۰).



(۵ . ۳) انځور : د دوو مجاورو هېوادونو د اوبنۍ کربښو د منصفه کربښې د ترسیمولو څرنګوالی. (۳۷ :۱۸۱)

## ۵ .۱۰. هوايي کربښې

د فضايي کربښو په اړه بېلابېل آندونه شتون لري او تر ننه پورې يې د ټاکلو کوم قانون په پام کې نه دی نيول شوی. په دې اړه هڅه شوې تر څو د فضايي کربښو لپاره قوانين برابر کړي. د اتموسفير ټيټه برخه د هېوادونو کربښې ګڼل شوي او لايتناهي فضاً د ازادو اوبو په څېر ګڼل شوې. مګر تر اوسه هيڅ هېواد هم د ځان لپاره داخلي فضاً او لايتناهي فضاً تر منځ کومه کربښه نه ده په نښه کړې.

که څه هم اوس د هېوادونو حقوقي وضعه د اتموسفير په اړه روښانه نه ده، مګر د ځمکې د ټيټ اتموسفير (هغه فضاً چې الوتکې په کې پرواز کوي) په اړه وضاحت په بشپړه توګه روښانه نه دی. هر هېواد د اتموسفير په ټيټه برخه کې د حاکميت حق لري، او دعوه کوي چې د هيڅ هېواد آن چې دخپل دوست هېواد الوتکې هم ورڅخه د پرواز حق نه لري، مګر دا چې پروازونه يې د نړيوالو تړونونو سره برابر او د هماغه هېواد په اجازه او د ځانګړو شرايطو پر بنسټ وي. هر هېواد حق لري اوکولی شي د حق العبور شرايطو پر بنسټ په خپلې فضاً کې نورو ته د الوتنې اجازه ورکړي، هر هېواد حق لري چې بېرونۍ الوتکې په خپله فضاً

کې ممنوع اعلام کړي. د هر هېواد لپاره د خپلو سمندري سرحدي د پاسه فضاً کې د حاکمیت حق وي، نو له همدې امله هر هېواد هر څومره چې د سمندري قلمرو لرونکی وي، کولی شي چې په هماغه اندازه فضاً د خپل ځارلاندې راولي (۲۰ : ۱۳۶، ۱۳۷).

د هرهېواد حاکمیت د هغه هېواد د اوبو او وچو په کرښو کې پای ته رسېږي. دا کرښې په حقیقت کې د سطحو په بڼه ښکاري چې د ځمکې تر فضا پورې امتداد لري او په همدې وخت کې د دوو ګاونډیو هېوادونو هوايي قلمرو یو له بله بېلوي.

د لومړۍ نړیوالې جګړې پر مهال د بمبارد لپاره د الوتکو نظامي قوت نندا تون وشو، ویې ښودله چې هېوادونو ته هیڅ شی پر خپلې محدودې د بشپړ حاکمیت او نورو ته د بې تاوانه حق العبور پرته؛ ډېر خوښ نه دی. امنیتي ملاحظو هم همداسې حکم کولو. له هماغه مهاله دودیزه قاعده دا وه چې د یو هېواد الوتکې حق لري چې د ازادو اوبو پر سر الوتنې وکړي، مګر د وچې او ځمکنیو اوبو د پاسه هوا کې یې نورو ته د الوتنو حق نه و.

د بل هېواد هوايي حریم نقض، د نړیوالو حقوقو جدي نقض ګڼل کېږي. د ۱۹۶۰م کال د مئ په میاشت کې د امریکا یو ۲. امریکايي تجسسي الوتکه د پخواني شوروي اتحاد د خاورې د پاسه تر حملې لاندې راغله او رانسکوره شوه، بې له ځنډه شوروي اتحاد د خپل هوايي حریم د نقض په اعتراض کې د مشرانو اجلاس لغوه کړ، البته دا مخینه په دې معنی نه ده چې په هرو شرایطو کې هېوادونو ته د دوی د هوايي حریم په نقض کې پر الوتکو د حملو نا محدوده حقونه شته.

په ۱۹۵۳م کال کې د "نړیوالو حقونو" په مجله کې امریکا وړاندیز وکړ چې لاندې قاعده باید له عرفي حقوقو څخه راوېستل شوې قاعده ومنل شي.

"د تېري کوونکو الوتکو د حرکاتو د کنترول لپاره، حاکم هېوادونه باید په اړونده چاپیره کې د متجاوزې الوتکې او ورکې د سپرو لپاره نا اړین ګواښ جوړ نه کړي، یعنې هغه ګواښونه چې د تجاوز د احتمالي زیانونو څخه زیات وي؛ باید الوتکو او سپرو ته یې و نه رسېږي".

د پورته قاعدې پر بنسټ په مختلفو الوتکو حمله هغه مهال د قبول وړ ده چې دا ثابته شوې وي چې د هېواد لپاره يې په رښتيا سره خطر رامنځته کړی. په دې ترتيب زيات احتمال دادی چې نظامي الوتکې دا ډول خطر را پيدا کوي؛ نه غير نظامي. په دې وخت کې اړتيا ده چې تر هوايي حملې مخکې الوتکې ته د کېناستلو او يا د تګ لورې د بدلون ګوابن وشي.

په ۱۹۸۱م کال کې د هېوادونو د الوتنو نړيوال سازمان، هېوادونو ته داسې توصيه وکړه : "هوايي الوتنې له يو هېواده بل هېواد ته د دوه اړخيزو نړيوالو تړونونو له لياري بايد تنظيم شي او د هغې پر بنسټ يو هېواد بل هېواد ته اجازه ورکوي چې له هوايي حريم څخه يې تير شي (معمولاً د ورته حق ورکولو په مقابل کې) (۳۷ : ۲۰۸).

## لنډيز

سياسي سرحدونه (پولې) هغه نښې دي چې يو سياسي واحد له بل سياسي واحد څخه پرې بېليږي. د موخې له مخې په دوه ډوله دي چې يو يې ملي پولې چې داخلي سياسي واحدونه يو له بله بېلوي او بل يې نړيوالې پولې دي چې يو هېواد له بله څخه بېلوي.

پولې د ډېر زيات ارزښت لرونکې دي، چې له دوه اړخونو يې ارزښت ښودلی شو يعنې له منطقي او تخنيکي اړخه. پولې له لرغونو زمانو څخه تر دې وروستيو پورې په بېلابېلو ډولونو ټاکل شوي. په لرغونو دورو کې به پراخې سيمې لکه دښتې، غرونه، ځنګلونه، جبه زارې ... او داسې نورې پديدې د هېوادونو ترمنځ د پولو په توګه منل کېدې. په منځنيو پېړيو کې د پولو ټاکل او را منځته کېدل عجيبه حالت کې وې، د امپراتورانو په بدلون او مړينې سره به د پولو په ټاکلو کې بدلون راتلو، او يا دا چې امپراتورانو به ځينې مهال د امپراتورۍ ځينې برخې پلورلې چې له امله به يې په پولو کې بدلون راتلو. اوس مهال د پولو ټاکلو لپاره څلور پړاوونه اړين ښودل شوي.

سرحدونه د بېلابېلو موخو له مخې ډېر ډولونه لري لکه د پيدايښت او پر ځمکې او وګړو د تطبيق له مخې، له طبيعي پديدو څخه د ګټې اخېستنې له مخې، همدارنګه مصنوعي سرحدونه يې بېلګې ښودلی شو. په ټوله کې سرحدونه د وچې، سمندرونو او هوايي سرحدونو باندې وېشل شوي. په دې وروستيو کې سرحدونو (پولو) خپل ماهيت له لاسه ورکړی دی او پر ځای يې مرزونه (کرښې) رامنځته شوي دي. نو ويلی شو چې کرښې هغه نرۍ پديدې دي چې دوه سياسي واحدونه سره بېلوي، مرزونه (کرښې) په بېلابېل ډول کټګوري شوي. همدارنګه سمندري کرښې هم په درې برخو وېشل شوي چې د سمندري سرحد، د نظارت سيمه او د اقتصادي زون ساحه بلل کېږي. هوايي فضاً هم د يو هېواد لپاره سرحد ګڼل کېږي، چې د اتموسفير لاندينۍ برخه تر هغې فضاً پورې چې الوتکې په کې پرواز کولی شي د يو هېواد د قلمرو کرښې ګڼل کېږي.

## پوښتنې

۱ـ سرحد تعریف کړئ ؟

۲ـ طبیعي سرحدونه یعنې کوم ډول سرحدونه ، راویې پېژنئ ؟

۳ـ د سرحد ارزښت وښایاست ؟

۴ـ د سرحد ټاکلو لپاره کوم پړاوونه اړین دي ؟

۵ـ د پیدایښت او پر وګړو د تطبیق له مخې سرحدونه کوم دي ؟

۶ـ د مرز (کرښې) او سرحد (پولې) ترمنځ توپیر واضح کړئ ؟

۷ـ ریچارد هارتشون کرښې په څو ډولونو وېشلي ؟

۸ـ تحمیلي کرښې یعنې کوم ډول کرښې د بېلګې سره یې واضح کړئ ؟

۹ـ طبیعي کرښې یعنې کوم ډول کرښې په بېلګه راوړلو یې وښایاست ؟

۱۰ـ قومي کرښې یعنې کوم ډول کرښې ؟

۱۱ـ هالندي عالم وان باینکر شویک د سمندر د سرحدونو په اړه په کوم آند و ؟

۱۲ـ په سمندرکې د نظارت لاندې ساحې کوم واکونه د اړوند هېواد سره وي ؟

۱۳ـ د سمندري قلمرو سیمې څنګه ټاکلی شو ؟

۱۴ـ د دوو مجاورو هېوادونو ترمنځ د اوبیزو کرښو ټاکل څنګه کېږي ؟

۱۵ـ له فضایي کرښو څخه د تېرېدو شرایط کوم دي ؟

# شپږم څپرکی

## باندینۍ سوداګري

په اوسنۍ نړۍ کې د هېوادونو ترمنځ سوداګريزې اړيکې يو منلی حقيقت دی، هر هېواد اړ دی ترڅو د بل هېواد سره سوداګريزې اړيکې ترسره کړي، اجناس يو تر بله سره تباد له کړي، د ورځې په تېرېدو سره په نړيواله سوداګرۍ کې زياتوالی راځي.

په منځنيو پېړيو کې باندينۍ سوداګري تر ډېره بريده په اروپا کې کنترول وه، يعنې هغه ډول مواد بايد هېواد ته را وارد شوي نه وای چې د توليد شونتيا يې د هېواد په دننه کې وه، خو د ادم سمت د تيورۍ له مخې هېوادونو بايد هر هغه څه وارد کړي وو چې د تمام شد قيمت يې د هېواد په دننه کې له بېرونيو وارد شوو موادو په پرتله زيات و. ددې نظريې پر بنسټ حکومتونه بايد باندينۍ سوداګري تشويق کړي.

په هره بڼه اوس هم په نړۍ کې داسې هېواد نشته چې په هره برخه کې پر خپلو توليداتو متکي وي، نو ځکه ده چې بايد بېرونۍ سوداګري ترسره کړي. د هېوادونو ترمنځ د باندينۍ سوداګرۍ د تنظيم په موخه هڅې له دويمې نړيوالې جګړې وروسته کېدې. د

GeneralAgreement on Triffs and Trade (GATT) تړون د هېوادنو تر منځ په سوداګرۍ کې ډېرې اسانتیاوې رامنځته کړې.

باندینۍ سوداګرۍ د هېوادونو ترمنځ د بېلابېلو ترانسپورتي وسایلو لکه کشتۍ، اوسپنې لیکې، سرکونو، هوایي کرښو په مرسته تر سره کېږي. ابناګانې په پخوانیو او اوسنیو وختونو کې په سوداګرۍ کې د زیات ارزښت لرونکې وې او دي. هغه ابناګانې چې په نړیواله سوداګرۍ کې ورڅخه زیاته ګټه اخېستل کېږي د بېلګې په توګه یې د سویز کانال، پانامې کانال او کیل کانال یادونه کولی شو.

## ۱.۶. دباندینۍ سوداګرۍ په اړه تولیزې څرګندونې

د باندینۍ سوداګرۍ کنترول په منځنیو پیړیو کې په اروپا کې یو له غوره عناصرو له ډلې څخه لیدل کېدو، حال داچې په نني عصر کې د یوې مهمې سیاسي وسلې په توګه د ګټې لپاره وکارول شو. د هغې مهال د سوداګرۍ په تیورۍ کې چې اقتصادي کلک او ټینګ اساس یې نه درلود او اوس د مرکانتلیزم (Mercantalism) په نوم یادیږي طلا (سره زر) او نقره (سپین زر) اساسي شتمني ګڼل کیده. هېوادونه تشویقیدل ترڅو په داخلي تولیداتو متکي شي او په دې ترتیب یوازې د باندینۍ سوداګرۍ هغه برخه به یې چې د هغې خالصه ګټه د طلا د لاس ته راتلو لامل کیده تشویق کوله. په بله ژبه هیڅ نوعه هغه مواد چې تولید یې په داخل کې شونی وو، باید له بیرون څخه نه وای وارد شوي. آن چې د مستعمراتو په لیکه کې هم هغو سیمو ته زیات ارزښت ورکول کیدو چې د استعماري ملکونو داخلي اړتیاوو د پوره کولو لپاره ګټورې ګڼل کیدې، له همدې امله وو چې برتانیې د شمالي امریکا جنوبي مستعمره سیمې چې په کې د ګنیو، وریجو، تنباکو او داسې نورو کرنیزو حاصلاتو د تولید امکان موجود و؛ د نیو انګلیند (New England) د ایالت په پرتله چې ورڅخه د انګلستان مشابه تولیدات حاصلیدل ترجیح ورکوله.

پورته تیوري د لومړي ځل لپاره په ۱۷۷۶ م کې د ادم سمت (Adam Smith) (دهغه د ثروت ملل) په کتاب کې تر نیوکې لاندې راغله، او د هغې په عوض کې په ځانګړي

امتیاز او سوداګرۍ ټینګار کیدو. د نوموړي په آند اګر چې د انګورو او په پای کې مشروباتو د تولید شونتیا په سکاتلیند کې هم شتون لري، مګر د هغې د تمام شد قیمت له بیرون څخه د وارد شوو تولیدتو په پرتله ۳۰ ځلې زیات وي ، بنا پردې غوره ده چې مواد یا د اړتیا وړ نباتات له هغو سیمو څخه په لاس راوړل شي چې د هغې د تولید لپاره زیات مناسب وي . دا نظریي په ۱۹ پیړۍ کې د سوداګریو د ازادۍ او ددې مفکورې د رامنځته کیدو لامل شوې چې د بېرونۍ سوداګرۍ څرنګوالي او جریان په مقابل کې حکومتونه باید د هغوی برخلاف تشویق کړي . په دې ترتیب په دې پړاو کې د سوداګرۍ ازادي عملي شوه، په بله ژبه هغه څه چې د سوداګرۍ لپاره ارزښتمن و، د هېواد لپاره هم ګټور ګڼل کیدل. ځکه چې له سوداګرۍ مخکې د حکومتونو لخوا د ځینو موادو د لېږد رالېږد د مخنیوي له لارې په صادراتو او وارداتو محدودیتونه او یا ګمرکي تعرفو وضع کول د کنترول لاندې نیول شوي وو . په هره بڼه آن چې په ۱۹ م پیړۍ کې هم په هیڅ هېواد کې د سوداګرۍ بشپړ ازادي نه وه. د سیاسي ګټې سربیره حکومتونو د ګمرکي محصول د وضع کولو له لیارې زیات عواید هم ترلاسه کول .انګلستان یوازینی هغه هېواد و چې د سوداګرۍ له ګټې ترلاسه کولو سربیره یې ازاده سوداګري په ۱۹ م پیړۍ کې په پراخه توګه تشویقوله، ځکه په لومړي پړاو کې یا د هېواد د صنعت په ډګر کې د ټولو پرمخ تللو هېوادونو په پرتله مخکې و او ددې ترڅنګ دا چې صنعتي تولیدات یې نسبتاً ارزانه وو، په بله ژبه د ټولو هغو هېوادونو لپاره چې د صنعتي کیدو په لومړي پړاو کې وو حتمي وه تر څو خپل صنایع د برتانیې د تولیداتو په مقابل کې حمایت کړي. د بېلګې په توګه جرمني چې په ۱۸۷۸م کال کې دفولادو او اوسپنې د صنایعو د ملاتړ په موخه په هغه هېواد کې په باندینیو مشابه ( ورته ) تولیداتو محصول زیات کړو (۵ : ۱۷۶،۱۷۷).

په هره بڼه په اوس وخت کې په نړۍ کې هیڅ پرمختللی هېواد نشته چې په هره برخه کې په خپلو تولیداتو متکي وي، دا ددې لامل کېږي ترڅو د اړتیا وړ یو څه مواد له بیرون څخه واردکړي، خصوصاً د ادم سمت استدلال چې مخکې ورته اشاره وشوه هم په نظر کې نیول شوی وي، مګر دا ډول په زیاته پیمانه تکیه ځینې ستونزې رامنځته کوي، د بېلګې په توګه په لومړۍ مرحله کې هېوادونه په یو خاص او ستونزمن موقعیت کې راګیروي د بېلګې

په توګه انګلستان چې د نورو هېوادونو په پرتله ترزیاتې اندازې په وارد شوو خوراکي موادو متکي و، له همدې امله په دواړو نړیوالو جګړو کې خطرناکې وضعې سره مخامخ و.

په اوس وخت کې د سوداګرۍ بشپړه ازادي اګر چې ناشوني نه ده، مګر لږ ترلږه غیر عملي ښکاري، په داسې حال کې چې په دې لاره کې د ځینو ستونزو د لمنځه وړل شوني او عملي ګڼل کېږي.

د سوداګرۍ انحصاري بشپړه ستونزه د اتلسمې پیړۍ په لومړیو کې مشاهده کولی شو. هغه وخت چې اسپانې ددې هېواد مستعمراتو سره په لاتینه امریکا کې سوداګریز کنترول لرلو، او هیڅ هېواد نشو کولی ددې هېواد له اجازې پرته ددې سیمو سره په رسمي توګه سوداګریزې اړیکې ونیسي. د بېلګې په توګه د ۱۷۱۴ کال د تړون وروسته د یو ځانګړي امتیاز په بڼه د انګلستان لپاره اجازه ورکړل شوه ترڅو په کال کې په سوداګریزو مختلفو تولیداتو بار یوه کشتۍ هسپانوي امریکا ته یوسي. د یوې نیمې پیړۍ وروسته په منځنۍ افریقا کې جنجال منځته راغی چې بالاخره په دې سیمه کې په خاص توګه او د نړۍ په ټولو سیمو کې په عامه توګه د سوداګرۍ په نسبي ازادۍ تمامه شوه. د هغې وخت اروپایي قدرتونه په دې حوزه کې د موجوده منابعو لاسته راوړلو په سیالۍ کې پریوتل او له همدې امله و چې د هغوي ترمنځ د ټکر مخنیوي لپاره په ۱۸۸۵م کال کې د کانګو حوزې تړون د فرانسې، انګلستان، پرتګال او المان ترمنځ لاسلیک شو. په دې تړون کې د افریقا د لوې وچې د سرچینو په پراختیا کې د مساوات ،د نفوسو د استوګنو او صنایعو د تاسیس په ګډون څخه یادونه شوې وه. د جنګ پر مهال د غلامانو پر سوداګرۍ ،د سیمې په بیطرفۍ او بالاخره د کانګو، نایجر سیندونو کې ازاد تګ راتګ باندې ټینګار شوی و. د دې تړون تر اغیزې لاندې ساحه د کانګو سیند حوزې په پرتله پراخه وه او ټوله ختیځه افریقا ( کینیا، یوګندا او تانګانیکا) ،نیاسالیند او شمالي رودشیا ځینې برخې، استوایي فرانسوي افریقا او د پرتګال مستعمرې لکه انګولا او موزمبیق سیمې یې په برکې نېولې. په دې ټولو ساحو کې د توکو پېرودل او پلورل په ازاده توګه تر سره کېدل ( ۵ : ۱۸۲).

په غربي افريقا کې هم د فرانسويانو او انګريزانو ترمنځ د تړون په پايله کې د ځانګړو تعرفو څخه ګټه اخيستل لمنځه ولاړل . په همدې ترتيب په ۱۹۱۹م کال کې نسبتاً ازاده سوداګري د پخواني المان مستعمراتو کې چې د لټ سمندر جنوب غرب او افريقا کې د فرانسې، انګلستان، بلجيم، جاپان، جنوبي افريقا، استراليا او نوي زيلاند تر قيموميت لاندې وو، پيل شوه. په دې شرط چې دا هېوادونه به د غلامانو، سلاح او مشروباتو سوداګري څخه په دې سيمه کې ډډه کوي او د نظامي استحکاماتو په ايجاد کې به اقدام نه کوي . مګر بايد يادونه وشي چې دا ډول د سوداګرۍ ازادي يوازې د ملتونو ټولنې (جامعه ملل) غړو هېوادونو لپاره په پام کې نيول شوې وه . په داسې حال کې چې متحده ايالاتو هيڅ وخت د دې ټولنې غړيتوب ونه لرلو . او ايټاليا، جاپان او جرمني هم وروسته ورڅخه ووتل . همدارنګه جنوبي افريقا هيڅکله هم خپل مسووليت ته د جنوب غربي افريقا پر وړاندې احترام او پاملرنه نه کوله.

د هېوادونو ترمنځ د بانديني سوداګرۍ د تنظيم په موخه هڅو د دويمې نړيوالې جګړې وروسته هم دوام درلود. د هاوانا اعلاميه چې موخه يې د سوداګرۍ ازادي وه ، ونه توانېده چې د هېوادونو لازم ملاتړ ترلاسه کړي ترڅو چې بالاخره په ۱۹۴۷م کال کې مصالحتي تړون په جينوا کې تصويب شو. چې د General Agreement on Triffs and Trade (GATT) په نوم ياديدو. دا تړون ( هوکړه ليک) د نړۍ له نيمايي زياتو يعنې (۸۹) هېوادونو په وسيله چې د (۸۰) سلنې په خواوشا کې نړيواله سوداګري يې کنترولوله، منل شوی دی. ددې هوکړه ليک د بانديني سوداګرۍ د تنظيم، ګمرکي تعرفو په کمولو، او په حمايوي تعرفو کې د تخفيف په اړه مقررات منځته راوړل . همدارنګه هڅه وشوه ترڅو د ترانزيتي موادو سوداګري له دې لارې تنظيم شي . مخ پر وده هېوادونولپاره ددې هوکړه ليک په تطبيق کې اجازه ورکړل شوه ترڅو هغوی کې د صنعتي ځوان سکتور څخه ملاتړ وشي . د سوداګرۍ نړيوال مرکز (International trade organization(ITO چې د ګات (GATT) تړون په وسيله په ۱۹۶۴ م کال کې تاسيس شوی دی، له ۱۹۶۴ م کال را وروسته د اطلاعاتو په برابرولو، د بازار پيدا کولو، د پرسونل په پالنې او داسې نورو په برخه کې يې د مخ په وده هېوادونو سره مرستې کولې . په هره بڼه د ګات (GATT) تړون

لخوا داسې کړنو پـه پايلـه کې اوس هېوادونـه کولی شي ترڅو خپله سوداګري پـه يوشمېر زياتو توکو اونسبتاً پراخو سيمو کې ترسره کړي او ددې ترڅنګ د دې زمينه يې برابره کړې چې د اړتيـا وړ مـواد لـه ارزانتـرين مارکيټ څخـه واخلي. چې البتـه د دې پـه پايلـه کـې د کاريګرو لپاره د کار برابرولو شونتياوې ، د خالصو عوايدو د زياتوالي، د نړی لـه سرچينو ګټه اخيستنې او د توليدي او تبادلوي چارو پراختيامساعده شوه ، چې ورسره جوختـه د خلکو د ژوند سطحه ښايې لوړه شوې وای( ۲۵ : ۸۲ ) .

بايد يادونه وشي چې د پورته مقرراتو تطبيق د سوداګری په محدوديت او يا ازادی برخه کې د هغو هېوادونو لپاره چې په هغو کې دا چارې د سوداګرو په وسيله تر سره کيدې پـه پـام کـې نيـول شـوی و. حـال دا چـې پـه سوسيالسـتي هېوادونـو کـې دا طبقـه نـه وه او سوداګري د حکومتونو په انحصار کې وه .

څرنګـه چـې پـوهيږو بانـدينی سـوداګري دهېوادونـو تـرمنځ د بـيلا بيلـو وسـايلو لکـه کشتی، د اوسپنې ليکې، سرکونو او په لږه اندازه د هوايي کرښو څخه په ګټې اخيستنې تر سره کېږي، په ځينو برخو کې لوی جهيلونه لکه‌په کاناډا او يا د راين(Rhine) سيند څخه پـه ګټې اخيستني د سويتزرلند، فرانسې، جرمني او هالند ترمنځ شونې ده. د هېوادونـو تـر منځ پـه نړيوالې سوداګری کې په بشپړه توګـه لـه همدې اوبيزې لارې څخه ګټه واخلي .پـه ځينو نـورو ځـايونو کـې نړيوالـه سوداګري پـه بشـپړه توګـه د وچـو مواصلاتي کرښو(سرکونو) لـه لارې تـر سره کېږي. حال دا چې پـه ځينـو حـالاتو کـې پـه بيلا بيلـو هېوادونـو کـې د بيلابيلـو وسايلو څخه په سوداګری کې ګټه ترسره کوي . سره لـه دې چې د نړيـوالې سوداګری زياتـه برخـه پـه سمندرونو کـې د کيشـتيو پـه وسيله تـر سره کېږي . د بېلګـې پـه توګـه کـه چيـرې د متحده ايالاتو او استريا ( اتريش) ترمنځ ارتباط په پام کې ونيسو کيدای شي سوداګريز مالونـه د متحده ايـالاتو لـه مرکزي سيمو څخـه د اوسـپنې کرښـو څخه پـه ګټې اخيسـتنې د شيکاګو بندرته وليږل شي او لـه هغـه ځايـه لـه لويـو جهيلونو څخه پـه ګټې اخيستنې او پـه کاناډا کې د سنت لارنس سيند د بهيدنې لـه لياري ازادو سمندرونو تـه ورسيږي . ياد مواد وروسته د هالنـد روتـردام بنـدر لـه لياري او د رايـن سيند پـه ګټې اخيسـتنې لـه جرمني څخه

تیریږي او د سویس بازل(Basel) بندرته لېږدول کېږي له دې ځایه یو ځل بیا د اوسپنو لیکو په وسیله اتریش ته رسیږي، په دې ترتیب دا ډول سوداګریز مالونه د څلورو بېلا بیلو هېوادونو د تیریدو وروسته او کم تر کمه دوه هېوادونو په بندرونو کې د مجددې بارګیری له امله ټاکلې سیمې ته رسیږي. البته په دغسې حالاتوکې د اضافی پیسو، وخت او داسې نورو مصرفیدل ډیر لیدل کېږي. دا موضوع چې هېوادونه له کومو شرایطو لاندې له شته اسانتیاوو څخه په ټولو هېوادونو کې په آزادانه توګه ګټه واخیستلی شي، هغو هوکړه لیکونو او قراردادونو پوري تړاو لري چې د دوو هېوادونو ترمنځ موجود وي ، د ملتونوټولنې (جامعه ملل) ، ملګرو ملتونو او ټولو سازمانونو هڅې ددې ډول قراردادونو په موخه معمولاً د بریاوو لرونکي نه دي ( ۵ : ۱۸۲،۱۸۳ ).

## ۲.۶. دباندینۍ سوداګرۍ د ستراتیژیو پلټنه

د باندینۍ سوداګرۍ ستراتیژي په ټولو هغو کړنلارو، طریقو او تدابیرو اطلاق کېږي چې یو هېواد یې د خپل ملي قلمرو د استوګنو( د ټاکلو موخو په چوکاټ کې) د اداري او اقتصادي روابطو د تنظیم لپاره د ټولو هېوادونو د استوګنو سره په تناسب جوړوي او په مطلق او یا نسبي توګه یې شکل عملي کوي . د یو هېواد د بېرونۍ سوداګرۍ جوړښت، د حاکم اقتصادي او سیاسي نظام او د هغو د زماني غوښتنو په بنسټ رامنځته کېږي . بنا پردې د خلاصون درجه یا د مبادلاتو تحدید د هېوادونو ترمنځ فرق لري . د اقتصادي پراختیا پر جریان د بېرونۍ سوداګرۍ د اغېز لرونکي ارزښت د درک کولو لپاره کافي ده چې دې ټکي ته پام وشي چې د پراختیا ټولې ستراتیژۍ په تیره بیا د صنعت د پراختیا ستراتیژیانې، د بېرونۍ سوداګرۍ سره نه شلیدونکې اړیکې لري. لکه د وارداتو بدیل لاربنوونه ، د صادراتو د پراختیا لاربنوونه، د درندو صنایعو لاربنوونه او دې ته ورته نور . په اقتصادي ادبیاتو کې د بېرونۍ سوداګرۍ لپاره په ټولو اقتصادي فعالیتونو کې درې ډوله رول ته قایل شوي.

۱- باندینۍ سوداګري، د داخلي اقتصادي ټولو ساحو پراختیا غزول او رشد ورکول دي .

۲- باندینۍ سوداګري، موټر د داخلي اقتصادي برخو لپاره محرکه انرژي او د رشد لامل ګڼل کېږي .

۳- باندینۍ سوداګري، د اقتصادي ټولو برخو د رشد توازن کوونکې ده ( ۲۰ : ۱۱۶،۱۱۷).

## ۶.۳. ازاده سوداګري

هره راکړه ورکړه چې پرته له هرډول محدودیت سرته ورسېږي ورته آزاده سوداګري ویل کېږي . د هېوادونو داخلي سوداګري معمولاً په همدې بڼه ترسره کېږي . په داسې حال کې چې بېرونۍ نړیواله سوداګري معمولاً د ګمرکي تعرفو په وضع کیدو او ټولو مقرراتو له امله د محدودیتونو سره مخامخېږي.

د آزادې سوداګرۍ نظریه په دې بنا ده چې که چیرته سیاسي او غیر طبیعي موانع د سوداګرۍ په برخه کې موجودې وي ،هره سیمه به د هغه د موادو د تولید لپاره ځانګړې شي چې کیدای شي هغه ارزانه او اسانه عرضه کړي، چې په دې توګه به مصرفوونکي ښایي وکړای شي چې د اړتیا وړ توکي په ارزانه او اسانه لاس ته راوړي . باندینۍ سوداګري د یو هېواد په اقتصاد کې اغیزمن لامل ګڼل کېږي او کولی شي ټولې اقتصادي برخې تر خپلې اغېزې لاندې راولي . ښایي وویل شي چې غوره اقتصادي بحث د دویمې نړیوالې جګړې وروسته په ځانګړي توګه په مخ په وده هېوادونو کې د اقتصاد د پرمختګ موضوع وه . له همدې امله د دویمې نړیوالې جګړې وروسته کلونو کې د اقتصادي رشد په اړه زیاتې نظریې مطرح شوې.

د اقتصادي نمو د نظریو اساسي موخه په یو هېواد کې د نرخونو د رشد ټاکونکو لاملونو توضیح او د هېوادونو په منځ کې د سړي سر عوایدو او نرخونو د رشد د تفاوتو د دلایلو پلټنه ده . یو له هغو لاملونو څخه چې د ځینو مخ پر وده هېوادونو پر اقتصادي رشد زیاتې اغېزې کوي، باندینۍ سوداګري ده.

اوس په نړۍ کې هیڅ داسې هېواد نشته چې په ټولو اقتصادي او سوداګریزو برخو کې په خپلو داخلي تولیداتو تکیه ولري . دا کار ددي لامل ګرځي چې یو څه اندازه د اړتیا وړ مواد له بیرون څخه وارد کړي . هېوادونه معمولاً په دوه برخو ویشل کېږي یعني د خامو موادو تولیدوونکي او د خامو موادو صنعتي کوونکي . د خامو موادو تولیدوونکي چې مخ په وده هېوادونه دي د صنعتي هېوادونو په پرتله د باندینۍ سوداګرۍ په برخه کې د زیاتو ستونزو سره لاس او ګریوان وي، لکه چې د خامو موادو قیمت د صنعتي موادو په پرتله زیات تغیرات مني . په ځانګړي توګه د سوداګریزو بحرانونو پر مهال، چې ددي ډول موادو قیمت هغه تر ټولو ټیټ نرخ ته یې ورسیږي . په دغسي وختونو کې د خامو موادو تولیدوونکي هېوادونه معمولاً د داخلي منابعو پر پراختیا واردات کموي او یا د خبرو اترو او قراردادونو د تړلو له مخې صنعتي هېوادونو ته هغه هم د ځینو امتیازاتو په ورکولو سره دا ستونزه په موقته توګه حل کوي .

په ۱۹۱۹م کال نسبتاً ازاده سوداګري د پخواني المان په مستعمراتو کې چې د ارام سمندر په جنوب غرب او افریقا کې د فرانسې، انګلستان، بلجیم، جاپان، نوي زیلاند، جنوبي افریقا او استرالیا د قیمومیت لاندي و؛ پیل شوه . په دي شرط چې دا هېوادونه به د غلامانو، وسلو او مشروباتو سوداګري په دې هېوادونوکې نه کوي . دنړۍ هېوادونو د باندینۍ سوداګرۍ د تنظیم لپاره هڅې د دویمې نړیوالې جګړې وروسته پیل کړې . د هوانا اعلامیه چې موخه یې د سوداګرۍ ازادي وه په دې وتوانیده چې د هېوادونو لازم ملاتړ ترلاسه کړي، چې د ګات (Gatt) مصلحتي توافقنامې په نوم یادیږي ؛ په ۱۹۴۷م کې په جنوا کې تصویب شوه . د ا توافقنامه (هوکړه لیک) چې د نړۍ له نیمایي زیاتو یعنې (۸۹) هېوادونو لخوا چې ۸۰ سلنه نړیواله سوداګري یې کنترولوله ومنل شوه . دې هوکړه لیک کې دباندینۍ سوداګرۍ د تنظیم ، د ګمرکي تعرفو په کمولو او د حمایوي تعرفو د سپکولو په اړه مقررات منځته راغلي . همدارنګه هڅه وشوه ترڅو د هېوادونو په منځ کې سوداګري دکشتیو، اوسپنې لیکو او په یوه کمه اندازه له هوایي کرښو په ګټې اخیستنې ترسره شي( ۲۰ : ۱۱۵،۱۱۶).

## ۴.۶. په نړۍ کې د لېږد رالېږد څرنګوالی

دچین اقتصادي چټک او مستمر پرمختګ کې، ددې هېواد باندینۍ سوداګرۍ په پرله پسې توګه پراختیا کړې ده . د نړۍ د سوداګرۍ په لیکلړ کې چین په ۱۹۷۸م کال کې ( ۳۲ ) ام ،په ۱۹۸۹م کال کې( ۱۵ ) ام، په ۱۹۹۷ م کال کې لسم او په ۲۰۰۱م کال کې شپږم مقام ته لوړشو.

همدارنګه په ۲۰۰۱م کال کې د چین ټولو صادراتو او وارداتو حجم له ۵۰۰ ملیارد ډالرو زیات شو. او ۵۰۹ ملیارده او ۶۵۰ مېلیون ډالرو ته ورسیدو. په ۲۰۰۲م کال کې د چین د ټولو صادراتو او وارداتو حجم د۶۲۰ ملیارده او ۷۷۰ مېلیون ډالرو په اندازه شو . په ۲۰۰۳م کې دا شمېر ۸۵۱ ملیارده او ۲۰۰ مېلیون ډالرو ته ورسید چې د ۲۰۰۲م کال په پرتله ۳۷.۱ سلنه زیاتوالی ښیي .

له دې جملې څخه د صادراتو حجم (۴۳۸) ملیارده او ۴۰۰ مېلیون ډالرو ته رسېدو چې د ۲۰۰۲م کال په پرتله ۶.۳۴ سلنه زیاتوالی په‌کې راغلی. او د وارداتو حجم ۴۱۲ ملیارده او ۸۰۰ مېلیون ډالرو ته ورسید چې ۳۹.۹ سلنه زیاتوالی په‌کې راغی.

اوسمهال چین د نړۍ له ۲۲۰ هېوادونو او سیمو سره سوداګري کوي . او جاپان، امریکا، اروپایي اتحادیه، د هانګ کانګ ځانګړې اداري سیمه ، جنوب شرقي اسیایي هېوادونو اتحادیه، جنوبي کوریا ،د چین تایوان ولایت، استرالیا، روسیه او کاناډا د چین لس نوي سوداګریز شریکان دي ( ۲۰ : ۱۲۰،۱۲۱).

### ۶.۴.۱. اوبیزه سوداګري او ابناګانې

اوبیزه سوداګري په نړۍ کې پرته له شکه د کشتیو او بندرونو په مرسته ترسره کېږي، بناً پردي دې ډول بندرونو ته لاسرسی د زیات ارزښت لرونکی وي . په ۱۹۲۲ م کال کې د ملتونو ټولنې (جامعه ملل ) یوې کمېټې یو مسوده ترتیب کړه چې وروسته په دویم عمومي کنفرانس کې چې په جینوا کې و، په هماغه کال کې تصویب شوه. د دویمې

نړیوالې جګړې تر پیل پورې دا تړون د (۲۳) هېوادونو د مستعمراتو په ګډون د قبول وړ وګرځیدو، د دې تړون د دویمې مادې له مخې د هېوادونو په بندرونو کې پرته له تبعیض څخه د شته ټولو اسانتیاوو څخه د ټولو لپاره دګټې اخېستنې اجازه وه. البته د نړیوالو او آن د هېوادونو له قلمرو اوبو څخه ګټه اخیستل د کشتیو چلولو او سوداګرۍ لپاره د نړیوالو قوانینو پر اساس د سولې په وخت کې د ټولو هېوادونو مسلم حق دی . په داسې حال کې چې له ابناګانو څخه په دې باره کې استفاده د زیات ارزښت لرونکې ده، ځکه ددغو مغابرو پلنوالی د استانبول په ګاونډ کې ابناګانو لپاره تر سلګونو متره ، د انګلیسان او فرانسې ترمنځ د دور (Dover) ابنا او یا د الاسکا او پخواني شوروي اتحاد ترمنځ د بیرنګ (Bering) ابنا لپاره تر ۲۰ میله زیات اختلاف موندونکی دی .

په هر حال که چیرته د ابناګانو پلنوالي له ۶ میلو څخه زیات وي، هېوادونه لەدې امله چې په ټولنیزه توګه سمندري قلمرو تر درې میله پراختیا لري د هغې منځنۍ برخې څخه د نړیوالو اوبو په بڼه د استفادې حق لري. آن چې په دې بڼه هم د مالاکا(Malaca) ابنا چې له شپږو میلو څخه زیات پلنوالی (سور) لري د مالیزیا او اندونیزیا د هېوادونو په وسیله چې هریو یې دولس (۱۲) میله ساحه د خپل سمندري قلمرو د ساحې ادعا لري په دوه مساوي برخو ویشل شوې ده.

په هره بڼه ابناګانې لەدې امله چې سمندري مسافرتونه لنډوي، په تیره په پخوا وختونو کې د زیات ارزښت وړ و. په ځینو وختونو کې یې د نړیوالې سوداګرۍ لوی مرکزونه جوړ کړي وو، اګر چې په اوس وخت کې له ابناګانو لکه ماجیلان ، تورس (Torres) اویا بیرنګ څخه په سوداګریو چارو کې زیاته ګټه نه اخېستل کېږي، خو تر دې اخوا د ډنمارک، جبل الطارق، هرمز، ملاکا، دور او داسې نورو ابناګانو له ارزښت څخه انکار نه شو کولی . له همدې امله دی چې د نړۍ ځواکمن هېوادونه ددې ابناګانو د خلاص ساتلو او یا کنترول په برخه کې تل علاقه مند وو. چې البته د جبل الطارق، عدن، سنګاپور او یا فاکلیند سیمو کنترول د انګلیسانو په وسیله یې له غوره بېلګو څخه دي(۵: ۱۸۳)..

د جبل الطارق ابنا چې لنډ سور (عرض ) يې تر ۸.۶ ميل پورې رسيږي د نړۍ له مشهورو ابنا ګانو څخه ده چې د اسپانيې جنوبي سواحل د افريقا له شمال غربي سواحلو څخه بيلوي، غرنۍ سيمه چې د هسپانيې په لور د هغې په ختيځه برخه کې موقعيت لري په ابنا کې تردد (دوه زره توب) کنترولوي. اګر چې د اسپانيې تر ټولو جنوبي سيمه د تاريف (Tarifa) په نوم پر ابنا باندې د حاکميت له پلوه د جبل الطارق په پرتله ښه موقعيت لري، مګر د استفادې وړ بندر د نه شتون له امله او د دفاعي ستونزو له امله د کم ارزښت لرونکې ده.

انګليسانو د جبل الطارق غرنۍ سيمه په ۱۷۰۴م کال کې له اسپانويانو څخه لاس ته راوړه او د پرلپسې ادعاوو سربېره دا هېواد تر اوسه پورې هغه کنترولوي. دا سيمه آن چې د هغې د نظامي پلوه د وخت په تيريدو سره لهپامه غورزيدلې ده، هيڅ ډول اقتصادي او سوداګريز ارزښت نه لري. ددې ابنا د جنوبي ساحل د کنترول په موخه چې مراکش پورې تړاو لري د شلمې پيړۍ په لومړيو کې د جرمني، فرانسې، اسپانيې او انګلستان ترمنځ سياسي کلکې مبارزې روانې وې. د انګلستان هېواد هڅه کوله چې ياده سيمه اقلاً بايد د جرمني تر کنترول لاندې رانشي، هغه مهال چې مراکش د فرانسې تر حمايت لاندې راغی، اسپانيې د ابنا جنوبي سواحل ونيول او د تنجير (Tangier) ښار د ملګرو ملتونو لخوا بې طرفه ښار په توګه وګڼل شو. ترڅو چې په ۱۹۵۶م کال کې د مراکش ازادۍ لهامله د اسپانيې اړوند سيمې د تنجير په ګډون په هغه هېواد پورې وتړل شوې، اګر چې په دې ابنا کې د ازادۍ په برخه کې تردد(شک ) هيڅ وخت نه و، مګر بيا هم د دې ابنا د سواحلو سياسي کنترول موخه د جنګ پر مهال د ځانګړو هېوادونو د کشتيو چلولو لپاره د دې ابنا خلاص ساتل و.

ترکي ابنا ګانې يا د باسفورس(Bospores) او د دردانيل (Dardanells) معابر د مرمره (Marmara) بحيرې په ګډون چې توره بحيره او مديترانې بحيره سره وصلوي د طارق ابنا په پرتله زيات ارزښت لري .د داردانيل ابنا چې اوږدوالی يې (۴۱ ميله ) دی، سور يې له يو څخه تر څلورو ميلو پورې اختلاف لري. حال داچې د باسفورس ابنا د (۱۸.۶ ميله)

اوږدوالي او له ۶۰ یاردو *[1]څخه تر دوه میلو پورې سور لري . ددې ابنا ګانو د موقعیت په باره کې د ترکیې هېواد په داخلي قلمرو کې هیڅ ډول پوښتنه نشته ،مګر ددې ابناګانو سوداګریز ارزښت د تورې بحیرې ګاونډیو هېوادونو ته د پخواني شوروي اتحاد په ګډون تر دې حد پورې دی چې له هغې څخه ازاده ګټه کول د نړیوالو هوکړه لیکونو په وسیله تضمین شوی . له ۱۴۵۳ م را وروسته چې ترکانو قسطنطنیه فتح کړه او د دې ابنا دواړه غاړې یې په واک کې شوې د درېو پیړیو څخه د زیات وخت لپاره یوازې ترکیې پورې اړوند کشتۍ او یا د هغې هېواد په خدمت کې کیشتیو له هغې څخه د استفادې کولو حق لرلو. (۲۵ : ۷۳)

په ۱۷۷۴م کال کې یعنې هغه مهال چې تورې بحیرې شمالي غاړو کې تزاري روسیه مستقره وه د کوچک کاینارجي ( Kuchuk Kainardji ) د یو طرفه تړون له مخې د روسیې کوچنیو سوداګریزو کشتیو ته په یاده ابنا کې د ترکیې د اداري مقرراتو په پام کې نیولو سره د ګټې اخېستلو اجازه ورکړل شوه ( ۵: ۱۸۴ ،۱۸۵ ).

په ۱۸۰۰ م کال کې دا امتیاز ترکیې په وسیله نورو سوداګري ي قدرتونو ته هم ورکړل شو چې د ۱۹ پیړۍ په لومړۍ نیمایي کې د نړۍ ټولو هېوادونو ته وغزیدو، دې امتیازاتو کې جنګي کشتۍ شاملې نه وي . په ۱۷۹۸ م کال کې د روسیې او ترکیې ترمنځ د لږ دوام اتحاد د جوړیدو په پایله کې د روسیې هېواد جنګي کشتیو ته اجازه ورکړل شوه چې د باسفورس له ابنا تیر را تیرشي، په داسې حال کې چې د نورو هېوادونو پر جنګي کشتیو تورې بحیرې ته په تلو بندیز و. د یو څو کلونو وروسته د ترکیې او روسیې ترمنځ د تړون د ختمیدو او مخالفت د پیداکیدو او د غربي اروپا د ځواکونو د علاقو په ځانګړي توګه د انګلستان له امله مدیترانې بحیرې ته د جنګي کشتیو د ورود په برخه کې په ۱۸۴۱م کال کې تړون وشو ، چې ددې تړون له مخې یوازې د ترکیې جنګي کشتیو ته له دې ابناګانو څخه د تیریدو اجازه ورکړل شوې وه. په داسې حال کې چې ټولو هېوادونو کولی شول ورڅخه د سوداګرۍ په موخه کار واخلي.

---

*[1]: یو یارد د ۹۰ سانتي متره سره مساوي دی.

سره له دې چې ترکانو غوښتنه کوله ترڅو د کشتیو تګ راتګ د ورځې په موده کې وکړي او د هغې لپاره یې تحریري او رسمي اجازه لرله، دې وضعې دوام وکړ ترڅو چې ترکیه په عمومي نړیوالې جګړه کې د اتریش او جرمني په پلوي جنګ ته ورداخل شوه، په ۱۹۵۱م کال کې د انګلستان د فاجعه امیزې ناکامۍ د ګالي پولي (Gallipoli) جګړې له دې ابنا ګانو څخه د تیریدو او د هغه متحدې روسیې ته د مرستو رسولو په موخه ددې ابناګانو سوق الجیشي او سوداګریز ارزښت ډیر زیات کړ. له همدې امله د جګړو ختمیدل په ۱۹۲۰ م کال کې د سورس Sevre تړون په لاسلیک کیدو سره فیصله وشوه چې په دې ابناګانو کې د کیشتیو هر ډول مالونو د لېږد لپاره ازادي ده . تر دې وروسته په ۱۹۲۲م کال کې د لوزان تړون د ترکیې او متفقینو ترمنځ لاسلیک شو چې د هغې پر اساس د هر ډول مالونو وړلو راوړلو ته اجازه ورکړل شوه آن چې جنګي کشتیو هم کولی شو د نظامي ځواکونو د محدودیتونو په پام کې نیولو سره د سولې په وخت کې ورڅخه تیرې شي (ایضاً : ۱۸۶).

باید یادونه وکړو چې د غربي هېوادونو په وسیله د دې ډول تصمیم نیولو په برخه کې په هغه وخت کې د شوروي اتحاد د بحري قوو کمزوري هم دخیله وه، لکه وروسته چې په ۱۹۳۰م کلونو کې شوروي اتحاد د یولوی صنعتي او سمندري ځواک لرونکې هېواد په بڼه بدل شو، سیاست هم بدلون وکړ. په دې وخت کې ترکیې ددې ابناګانو په سواحلو کې د نویو استحکاماتو د جوړولو لپاره له شوروي څخه د مرستې غوښتنه وکړه چې د شوروي او انګلستان لخوا تایید شوه. د شوروي اتحاد موخه تورې بحیرې، او دانګلستان موخه مدیترانې بحیرې ته د کشتیو مخنیوی و. چې په هره بڼه د سوداګریزو کشتیو مصونیت تر یوه بریده له منځه ولاړو، ځکه د لوزان د تړون تطبیق د ترکیې په غاړه شو. دا چاره بالاخره په ۱۹۳۶م کال کې د مونترکس(Montreux) هوکړه لیک په وسیله پای ته ورسیده، چې د هغې پر اساس ددې ابناګانو د اداري په برخه کې زیاتره امتیازات ترکیې ته ورکړل شول . تر دې وروسته شوروي اتحاد په پرله پسې توګه ددې ابناګانو په چارو او اداره کې د مستقیمې برخې او حق غوښتنه کوله، چې البته د غربي هېواد د ملاتړله امله د ترکیې لخوا ونه منل شوه .

د ډنمارک ابناګانې هم د سوداګریزو او سیاسي مسایلو او ارزښتونو له مخې د ترکیې ابناګانو سره ورته والی لري . ځکه د بالتیک بحیره چې شوروي اتحاد ورسره هم سرحد لري، د نړۍ له ازادو اوبو ځخه ګڼل کېږي او د جغرافیایي پلوه تولو ابنا ګانو په پرتله پیچلې بڼه لري . دا درې ابناګانې چې په موازي توګه یو له بل سره موقعیت لري عبارت دي له :

۱)ـ The great belt ابناچې د ډنمارک ټاپو وزمې ، د جتلند (Jytland) په نوم او فاین (Fyn) جزیرې ترمنځ ده، د موجوده ستونزو له امله کمه ترګټې اخېستنې لاندې ده.

۲)ـ The great belt ابنا چې د فاین (Fyn ) جزیرې (ټاپو) ا ود جایلند (Sjaeland) ټاپو ترمنځ موقعیت لري او د زیات ژوروالي او پلن والي له مخې تر ډیرې ګټې اخیستنې لاندې ده .

۳)ـ د ساوند (The sound) ابنا د جایلند ټاپو او سویډن ترمنځ موقعیت لري زیاتې ګټې ترې اخېستل کېږي .

د ډنمارک هېواد له پخوا زمانو راهیسې تر ۱۷ پیړۍ منځنیو پورې د پورته یادو شوو ابناګانو په دواړو خواوو واک لرلو، تر دې چې په (۱۶۵۸م )کال کې د سوېډن هېواد د ساوند ابنا ختیځې غاړې لاس ته راوړې . په هره بڼه ډنمارک تر یوه بریده د همدې ابناګانو د کنترول او په بالتیک او شمال بحیره کې د سوداګریز کنترول د ځواک په پیداکولو په یو لوی اروپایې ځواک بدل شو.

د ساوند ابنا چې په کم عرضه ځای کې له ۳ میله زیات سو ر درلود، طبعاً د بحري قلمرو ساحه ګڼل کېږي، له همدې امله د ډنمارک بادشاه پر هغې د حاکمیت دعوه لرله، او له ۱۵م پیړۍ را وروسته ټولې هغه کشتۍ چې له هغې تیریدلې حق العبور ورڅخه اخېستل کیدو، دې وضعې تر ۱۹ م پیړۍ پورې آن تر دې وروسته هم هغه وخت چې سوېډن شرقي سواحل هم تصرف کړل دوام وموندو. اګر چې پر ډنمارک هېواد ددغسې کنترول له امله په پرله پسې نېوکې وې، مګر ډنمارک ورته ډیره په کمه کتل ترڅو چې په ۱۹ م پیړۍ کې د

بالتيک او شمال بحيرې په منځ کې د سوداګرۍ حجم کې زياتوالی راغی او له همدې امله په ۱۸۴۸م کال کې د ډنمارک دغه چارې د امریکا متحده ایالاتو د سختو نیوکو لاندې راغلې او د ډنمارک هېواد لخوا له کشتيو څخه د حق العبور اخيستل يې د نړيوالو مقرراتو سره مخالفت وګڼلو . ډنمارک دعوه کوله چې نژدې څلور پيړۍ يې دا ډول محصول اخيستی، بناً پردې په راتلونکي کې هم بايد دې ډول ګټې اخېستنې ته دوام حق ورکړل شي (۳۵ : ۷۷).

په هره بڼه په ۱۸۵۷م کال کې دکوپن هاګن کنفرانس په پایله کې له دې ابنا ګانو څخه د ګټې اخېستنې بشپړه ازادي د ټولو هېوادونو لپاره د تایید وړ شوه.

د ماجيلان ابنا چې د جنوبي امريکا او د (Tiorradel fuego) ټاپو ترمنځ موقعیت لري هم له دې پلوه د ارزښت وړ ده . دا ابنا (۳۵۷) ميله اوږدوالی لري او د زياتو کږ ليچونو په لرلو سره په ځينو ځايونو کې ډېره کم سورې (کم عرضه ) وي. حال داچې سياسي ارزښت يې د هغو ابناګانو په پرتله چې وړاندې ورڅخه يادونه وشوه د پرتلنې وړ نه دی، ځکه کشتۍ کولی شي له دې څخه تر تېرېدو پرته يا د هورن(Horn) دماغې له جنوب څخه تيرې شي . سره له دې چې د ماجيلان له ابنا څخه تيريدل د واټن د کمولي او د مسافرت د مصونيت له امله د ارزښت وړ دي . اګر چې ددې ابنا شرقي مدخل (ختيځه د ننوتلو لار) د اطلس سمندر پر لور د ارجنټاين سمندري قلمرو کې راځي، مګر بيا هم ياده ابنا چيلي هېواد پورې تړاو لري . له دې ابنا څخه ګټه اخيستنه په ۱۹م پيړۍ کې د زياتيدو په حال کې وه او تر (۱۹۱۴م) کال پورې چې د پانامې کانال پرانسته وشوه د ترافيکو حجم زيات توپير ؛ ونه کړ. مګر له يادې نېټې وروسته يې ارزښت په تدريجي ډول کم شو. که څه هم د چيلي او ارجنټاين جمهوريتونو د دې ابنا د کنترول په برخه کې کلونه وړاندې دعوې لرلې مګر په ۱۸۵۵م کال کې دا ډول پريکړه وشوه، چې د هغې اداره دې د اسپانې امپراتورۍ پخوانيو ولايتونو پر اساس ويش شي. نورو هېوادونو لکه انګلستان او متحده ايالاتو هم په دې اړه علاقه وښودله او اړوند هېوادونو په وسيله يې د مستقيم کنترول سره

مخالفت ونبود، په ځانګړي توګه متحده ایالاتو چې په دې ابناکې یې د سوداګری ازادي د ډنمارک ابناګانو څخه څو چنده مهمه وه.

په ۱۸۸۱م کال کې د چیلي او ارجنټاین حکومتونه د متحده ایالاتو په منځګړیتوب موافقې ته ورسیدل. ددې موافقې (هوکړې) پر اساس د دواړو هېوادونو تر منځ پولې تثبیت او د ابنا بیطرفي (بې لوری توب) تضمین شوه . او په همدې توګه د ټولو هېوادونو لپاره ورڅخه دګټې اخېستلو اجازه وشوه.

د نړۍ د ابناګانو ټولیزشمېر چې پورته نړیوال قوانین پرې تطبیق شوي، او ځیني یې د زیات سوداګریز ارزښت لرونکې هم نه دي ؛ ډیر زیات دی، چې یو شمېر زیاتې یې د غرب الهند او شرق الهند ټاپوګانو ترمنځ لیدلی شو(۵: ۱۸۳-۱۸۹).

( ۱.۶) جدول: دنړۍ غوره ابنا ګاني(۵: ۹۰).

| ګڼه | ابناګاني | | اړوند هېواد | په میل Mile سره یې عرض (سور) |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | دو ور | Dover | انګلستان اوفرانسه | ۲۱ |
| ۲ | مېسینا | Messina | ایټالیا | ۲ |
| ۳ | اوترانتو | Otranto | ایټالیااوالبانیا | ۴۵ |
| ۴ | سکاګیراک | Skagerrake | ډنمارک اوناروی | ۷۰ |
| ۵ | کاتیګات | Kategat | سوېډن اوډنمارک | ۳۸ |
| ۶ | شمال کانال | North Chanal | انګلستان | ۱۲ |
| ۷ | سیسلي ابناګاني | Sicily | ایټالیا اوتونس | ۹۰ |
| ۸ | باب المندب | Bab ul mandab | حبشه اویمن | ۲۰ |
| ۹ | هرمز ابنا | Hormuz | عمان اوایران | ۴۰ |
| ۱۰ | ملاکا | Malaca | اندونیزیا | ۲۵ |
| ۱۱ | پالک | Palk | هند اوسریلانکا | ۲۵ |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۱۲ | فارموسا ابنا | Formosa | فارموسا اوچین | ۹۰ |
| ۱۳ | تسوشیما | Tsushima | جاپان اوکوریا | ۹۵ |
| ۱۴ | تورس | Torres | استرالیا اونوی ګیني | ۹۰ |
| ۱۵ | باس ابنا | Bass | استرالیا | ۱۳۰ |

## ۶.۴.۲. اوبیزه سوداګري او کانالونه

کانالونه هغه نرۍ اوبه دي چې دوه لوې اوبه سره نښلوي، او دوه وچې سره بېلوي . کانالونـه د دوو کتلو اوبـو د یوځای والي پـه موخه کیندل کېږي او د کشـتیو د تـګ راتـګ لپاره د ابناګانو په ځیر کارول کېږي.

هغه کانالونه چې د بحیرو (سمندرګیو) د پیوستون په موخه کېندل شوي دي په لاندې ډول یې په تفصیل سره روښانوو.

### ۶.۴.۲.۱.دسویز کانال

دسویز کانال دترافیکو د حجم له پلوه ډېر غـوره ګڼل کېږي چې د جوړولـو چارې یـې په (۱۸۵۹) کال کې پیل او په (۱۸۶۹م) کال کې د ګټې اخېستنې جوګه شو، په همدې توګه لـه (۱۸۷۵م) کـال را وروسته برتانیـه هـم ددې کانـال پـه اداره کـې برخمنـه وه. ددې کانـال اوږدوالـی (۱۰۳) میله پـورې او عـرض یـې (۱۹۷) فټه دی . ددې کانـال منځته راتلو سره د اروپا د شمال غـرب او هند تـرمنځ د (۵۰۰۰) میلو پـه اندازه واټن راکم شو. پـه ۱۹۵۵م کـال کې د سویز تر بحران او تړلو وړاندې د (۱۴۶۶۶) کشـتیو پـه شمېر چې د (۱۱۵۷۵۶۳۹۸) ټنـه وزن لېږدونکې وې، لـه دې کانـال څخه تیـرې شوې وې . چې لـه دې ډلـې ۲۰ سلنه یـې برتـانیې او پـاتې نـورې یـې نـورو هېوادونـو لکـه نـاروې (۱۶ سلنه) ، ایټـالیې (۸ سلنه) او فرانسـې (۷سلنه) پـورې تـړاو درلـود . همدارنګـه ۲۰ سلنه یـې پـه لایبریـا او پانـا مـې پـورې اړوندې وې .

د سویز کانال د سویز کانال د کمپنۍ په مرسته چې زیاتره پانګې یې فرانسې پورې تړاو درلود کیندل شوی . د دې کانال کېندونکې کمپنۍ ته دا کانال د ۹۹ کلونو لپاره په واک کې ورکړل شوی و، چې له پیل له نېټې شروع تر ۱۹۶۸م کال پورې و . له دې نېټې وروسته یاد کانال د مصر هېواد په واک کې شو(۲۰ : ۱۲۶، ۱۲۷).

البته د یادولو ده چې ددې کانال شتون پر انګلستان سربیره د ټولو اروپایي هېوادونو لپاره حیاتي ارزښت لري د سویز کانال کنوانسون چې په ۱۸۸۸م کال کې په قسطنطنیه کې منځته راغی، چې د ۹ هېوادونو لخوا لاسلیک شوی و. له دې کانال څخه ګټه اخیستنه د ټولو هېوادونو لپاره تضمین شوه، پرته له دې چې د سولې او جنګ توغ یې پورته کړی وي . پر دې سربیره بیا هم انګلستان د مصر اداره د یو تحت الحمایه په بڼه له ۱۹۱۴–۱۹۲۲ م کلونو پورې په غاړه واخیسته آن چې تر ۱۹۴۵ م کال پورې یې خپلې لښکرې د هغې په غاړوکې وساتلې . د ۱۹۵۶ م کال د جولاې په میاشت کې د مصر حکومت دا کانال ملي اعلان کړو چې د ذیعلاقه ( مصر او انګلستان) لورو ترمنځ د جنګ د پیدا کیدو لامل شو؛ چې ورسره سم کانال بند شو. د دې جنګ په پایله کې اروپایي سوداګریزو مالونو ته په ځانګړې توګه د نفتو په برخه کې زیات تاوانونه ورسیدل.

دا چې د سویز کانال ارزښت د اروپایي هېوادونو د اقتصاد لپاره مخکې تر مخکې معلوم و، او د زیاترو هېوادونو د توقع پرته ، مصر وتواندیدو چې یاد کانال په ۱۹۵۷م کال کې بیا ځلې فعال کړي . او د اسرایلو پرته ټولو هېوادونو په اړه د ۱۸۸۸م کال کنفرانس دتطبیق وړ وګرځیدو.

په ۱۹۶۷م کال کې مصر د ملګرو ملتونو له هغو ناظرینو څخه چې اسرایلو ته یې له تیران ابنا څخه د عقبه خلیج په لور د کشتیو چلولو حق ورکړ؛ له مصر څخه د وتلو غوښتنه وکړه . چې په دې کار سره د عربو او اسرایلو تر منځ درېیم جنګ رامنځته شو او په پایله کې د سویز کانال په تړل کیدو تمام شو. باید یادونه وکړو چې دا ځل د کانال تړل کیدلو پایلې د ۱۹۵۶م په پرتله ډیر زیاتې خطرناکې وي . د سویز کانال د اوږدو کلونو تړل کېدو وروسته یو ځل بیا په ۱۹۷۵ م کال کې د ګټې اخیستلو لاندې راغی او مصر ددې د حق

العبور لـه درکـه پـه ۱۹۷۷ م کـال کـې لـه ۵۰۰ مېلیـون ډالـرو زیـات لاس تـه راوړي وو ( ۵ : ۱۹۳، ۱۹۴)او ( ۲۰ : ۱۲۶، ۱۲۷).

### ۶.۴.۲.۱. د پانامې کانال

دپانامې په هېواد کې دیـوې اوبیـزې لارې دجوړېدو سوچ او هوډ تر ۱۶امې میلادي پېړۍ پورې رسېږي ، خو ددې اوبیـزې لارې د جوړېدو پـه پـار لومړنۍ هڅې پـه ۱۸۸۰م کـال کـې دفرانسـویانو پـه مشـرۍ پیـل شـوې . ددې پـروژې تـر ناکـامۍ وروسـته چـې د۲۱۹۰۰ کارېګرو په مړینه تمامه شوه ، وروستۍ پروژې تـه د امریکایـانو پـه وسیله دوام ورکړل شو او د۱۹۰۰م کال په شاوخواکې پای ته ورسېد. تر څو چې کانال تر ۱۹۱۴م کال د ګټې لپاره پرانستل شو .

ددې ۲۷ کېلومتري کانال د جوړښت د زیاتو ربړو سره یو ځای و. په دې کانال کې د کار د بشپړېدو وروسته ( دفرانسویانو او امریکایانو په موده کې ) په ټولیزه توګه ۲۷۵۰۰ وګړي مړه شوي وو.

د پانـامې کانـال هـم د سـویز کانـال د ورتـه (مشـابه) دلایلـو لـه املـه لکـه د اوږدو مسافرتونو او د لګښـتونو د مخنیـوي لـه امله کیندل شوی . حال دا چې د جوړولـو او فعـال ساتلو لګښت یې د سویز کانال په پرتله څو وارې زیات ښودل شوی . له همدې امله و، چې د پانامې کانال و نه توانیدو چې د ماجیلان ابنا د تنګ راتګ او لارې ارزښت پـه بشـپړه توګـه لـه منځـه یوسـي. سره لـه دې چې هغـه کشـتۍ چې لـه پانـامې کانـال څخـه یـې ګټـه اخیسـته د ورځې پـه تیریـدو سره مخ پـه زیاتیـدو دی . پـه ۱۹۶۹م کـال کـې پـه ټولیزه توګـه د ۱۳۱۵۰ پـه شمېر کشتۍ له دې کانال څخه تیرې شوې وې، چې د ۱۰۷ مېلیون ټن پـه اندازه تـوکي یـې لېږدولي وو. البته له دې کشتیو له ډلې ۱۲ سلنه یې د امریکا په متحده ایالاتو، ۱۱ سلنه یـې پـه برتانیـې ، اوپاتې ۷۷ سلنه کشتیو یې په ۳۹ هېوادونو پـورې تـړاو درلـود. پټـه دې نـه وې چې په ۱۹۷۶ م کال کې د ۱۲۲۸۰په شمېر کشتۍ د ۱۱۷.۴ مېلیون ټن پـه اندازه د محمولـه (

بار) توکو په لرلو سره د پانامې کانال څخه تيرې شوې وې چې د حق العبور عوايد يې تر ۱۳۵ مېليون ډالرو پورې رسيدل.

د پانامې کانال په ۱۹۰۳م کال کې په هغه ځمکه چې د امريکا متحده ايالاتو په اجاره نيولې وه، وکيندل شو. دا ساحه چې د امريکا متحده ايالاتو تر کنترول لاندې وه، د ۱۰ ميل په اندازه عرض (سور) او د (۵۰) ميل په اندازه طول لري. دا کانال د معاصرې تکنالوژۍ څخه په ګټې اخېستنې په مرتبه داره توګه جوړ شوی دی.

ددې کانال په برياليتوب د چارو دتر سره کولو وروسته په اوبيزه سوداګرۍ کې يو غټ بدلون راغی ، يوازې په ۲۰۰۵م کال کې د ۱۴۰۱۱ په شمېر چې په ټوليزه توګه يې د ۸،۲۷۸ مليون ټن په اندازه توکي لېږدول له دې کانال څخه تېرشوي ، دا داسې ښيي چې له دې کانال څخه په يوه شپه او ورځ کې نږدې ۴۰ کشتۍ تګ راتګ کوي .




(۱.۶)نقشه: دپانامې کانال.

http://www.google.com.af/search?dcr=0&biw=1366&bih=598&tbm=isch&sa=1&ei=dEm3WsGZEoeB6ASgzbeICw&q=0.Q4flRma_XPQ#imgrc=_7WTiIlWqT9NVM:&spf=1521961616228

### ۶.۴.۲.۲. دکیل کانال

ددې کانال د جوړښت چارې په ۱۸۸۷م کال کې پیل شوې او په ۱۸۹۵م کال کې یې د الماني قیصر (پاچا ) دویم ویلهلم لخوا پرانسته وشوه . دا کانال له هماغه مهاله تر ننه پورې څو ځله تعریض شوی. دا اوبنۍ لاره تر ۱۹۴۸م کال پورې د دویم ویلهلم د پلار لومړي ویلهلم په نوم یادېدو . نن ورځ په نړیواله کشتۍ چلونه کې په انګلسي نوم یعنې Kiel Canal تر ګټې اخستنې لاندې دی.

د کیل کانال د المان په اشلسویګ –هولشټاین ایالت کې د ۹۸ کېلومتره په اوږدو جوړ دی چې دشمال سمندرګی د ختیځ سمندرګي سره نښلوي او دنړۍ د ډیرو بېړو بار لرونکو اوبنیو لارو څخه دی . د روسیې اوبالتیک سمندرګي د هېوادونود اقتصادي عښتلتیا په پار د کشتیو تګ راتګ پکې په ۱۹۹۶م کال کې له ۴۸ملیون ټن څخه تر ۲۰۰۵م کال پورې ۸۸ ملیون ټن پورې ورسېدو.

https://fa.wikipedia.org/wiki/%DA%A9%D8%A7%D9%86%D8%A7%D9%84_%DA%A9%DB%8C%D9%84

د کېل کانال چې د بالتیک سمندرګی او شمال سمندرګی د ډنمارک ټاپو وزمې له لیارې سره تړي هم په اروپا کې د زیات ارزښت لرونکی دی ، یاد کانا ل په ۱۹۱۴ م کال کې د جرمني هېواد له لوري وکېندل شو ، دغه کانال ۶۱ میله اوږدوالی لري او د سوق الجیشي موقعیت له پلوه د زیا ت ارزښت لرونکی دی . ټولو هېوادونو ته د باندینۍ سوداګرۍ په موخه د وارسای تړون وروسته په یاد کانال کې اجازه ورکړل شوه . په ۱۹۳۶ م کال کې د المان هېواد د وارسای تړون لغوه اعلان کړ او یوازې یې ملګرو هېوادونو لپاره ورڅخه د ګټې اخېستلو اجازه ورکړه ، چې له دویمې نړیوالې جګړې وروسته یو ځل بیا یاد کانال د ټولو هېوادونو پر مخ پرانیستل شو( ۲۰ : ۱۲۷).




(۲.۶) نقشه : د کیل کانال

http://www.google.com.af/imgres?imgurl=http%3A%2F%2F3.bp.blogspot.com%2=0ahUKEwiyvsyy94baAhWR_qQKHSP8BHwQMwg4KAAwAA&iact=mrc&uact=8

دا کانال چې په الماني کې د شمال –ختیځ (Nord –Ostsee Kanal) په نوم یادNOK په لنډیز سره یادیږي ،دنړۍ له بېړوبار لرونکومصنوعي اوبیزو لاور څخه دی اوپه ۲۰۰۷ م کال کې له ۴۳۰۰۰ څخه زیاتې کشتۍ ورڅخه تېرې شوي . چې دا شمېر په ۲۰۱۴ م کال کې دوه برابره ښودل شوی.

https://fa.wikipedia.org/wiki/%DA%A9%D8%A7%D9%86%D8%A7%D9%84_%DA%A9%DB%8C%D9%84

(۲.۶) جدول : دافریقا په شمال او منځني ختیځ کې د نړیوالو اوبیزو لارو جغرافیایي ځانګړنې (۳۷ : ۲۰۲).

| داوبیزې لارې نوم | کم پلنوالي یې په سمندري میل سره | اوږدوالی یې (په سمندري میل) | ژوروالی یې (په متر) | په یوه ورځ کې ورڅخه د تېرېدونکو کشتیو شمېر | دغاړې هېوادونه یې |
|---|---|---|---|---|---|
| دجبل الطارق تنګی | ۱۰ | ۳۵ | ۸۰–۶۰۰ | ۱۵۰ | اسپانیه او مراکش |
| دردانیل | ۷۵،۰ | ۳۶ | ۴۹–۹۱ | ۶۰ | ترکیه |
| بسفر | ۳۳،۰ | ۱۷ | ۴۹ | ۵۰ | ترکیه |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| باب المندب | ۵،۱۰ | ۳۵ | ۱۲–۱۸۳ | ۵۵ | ديمن جمهوريت، ايتوپيې او جيبوتي |
| د هرمز تنګی | ۰،۲۱ | ۱۰۰ | ۷۶–۲۱۳ | ۸۰ | ايران او عمان |
| سويز کانال | ۱۷۸ | ۱۰۱ | ۱۶ | ۶۰ | مصر |
| تيران تنګی | ۰،۳ | ۷ | ۷۳–۱۸۳ | له ۱۰ کم | مصر او سعودي عربستان |

## ۳.۴.۶. اوبيزه سوداګري، بندرونه او ازاد ښارونه

يـوه لـه هغـو سـتونزو څخـه چـې معمـولاً پـه اوبيـزه سـوداګرۍ کـې د پـام وړ ده د سوداګريزو موادو کم حجم دی . د بېلګې په ډول که چيرته يوه اندازه توکي له دومنيکا له جمهوريت څخه ډنمارک ته د لېږد مطلوب وي، او دا اندازه د کشتۍ د انتقالي ظرفيت څخه کمه وي، لازمه ده چې دا مالونه لومړی له دومنيکا څخه يو بل ښار لکه نيويارک ته، وروسته له هغې هامبورګ ته يوړل شي او وروسته ډنمارک ته ولېږدول شي . په ځينو حالاتو کې په نيويارک او جرمني کې ددې ډول اضافي لګښتونو منل او د ګمرکي محصول تاديه کول د ملاحظې وړ دي . ددې ستونزي يوازينۍ د حل لاره په بندرونو کې د ګمرکونو څخه د ترانزيتي مالونو معافيت دی . په همدې موخې د امريکا متحده ايالاتو په ۱۹۳۶ م کال د نيويارک په بندر کې د سټاټن (Staten) ټاپو يوه برخه ازاده سيمه ( Free Zone ) اعلام کړه . وروسته دا ډول سيمې د متحده ايالاتو په نيواورلين (New Orleans) ، سانفرانسسکو، لاس انجلس او سياتل (Seattle ) بندرونو او د پورتوريکو په ماياګويز (Mayaguez) کې تاسيس شوې.

ازاد بندر (Free Zone)د يو بندر هغه سيمه ګڼل کېږي چې په هغې کې د بيلا بيلو هېوادونو کشتۍ خپل توکي له قيد او هر ډول محصول ورکولو پرته بار، ښکته او پورته کوي. په همدې توګه ازادې ساحې ( Free Zone ) هم هغه سيمې دي چې د بيلابيلو

سوداګریزو توکو د ځای پرځای کولو په موخه کارول کېږي، د نړۍ تر ټولو مهم ازاد بندر هانګ کانګ (Hong Kong)دی چې د چین، فلپاین، تایوان او د اسیا د جنوب ختیځو نور هېوادونو سوداګریز مالونه له هغه ځخه د اروپا، امریکا او نړۍ هرې سیمې ته لېږدول کېږي . د طنجه او سنګاپور بندرونه هم همدا ډول ازاد بندرونه دي، په همدې توګه جبل الطارق هم د هغه په کم ارزښت سربیره یو ازاد بندر دی . په عدن کې ټول ازاد بندرونه، کنری (Canary) ټاپوګان، د پانامې پر کانال د کولون(Colon) بندر او د سویز پر کانال د پورت سعید بندر همداسې ازاد بندرونه دي (۲۰: ۱۳۵،۱۳۶).

ازاد ښارونه (Free Cities) هم د همدې ډول موخو لپاره کارول کېږي . ددې ډول ښارونو شمیر په منځنیو پیړیو کې په اروپا کې زیات و، حال دا چې په معاصرو پیړیو کې دا ډول بېلګې کمې لیدل کېږي . په شلمې پیړۍ کې یې غوره بیلګه د دانزیک یا ګدانسک (Gdansk) ښار و، چې زیاتره اوسیدونکي یې جرمنیان وو، حال دا چې د سوداګرۍ له مخې د پولنډ لپاره د ارزښت وړ و، له همدې امله په یو ازاد ښار تبدیل شو . چې د ادارې لپاره یې عالي کمیشنر د ملتونود ټولنې لخوا ټاکل کیدو.

د فیوم (Fiume) ښار هم د ورته شرایطو لاندې راغلی و. ځکه چې ددې ښار زیاتره اوسېدونکي ایټالویان وو . حال دا چې د یوګوسلاویایانو لخوا ترې ګټه اخیستل کیده، دې ښار په ۱۹۲۰م کال کې د یو ازاد ښار حیثیت غوره کړ، حال دا چې وروسته د ایټالیا یوه برخه شوه . مګر له ۱۹۴۵م کال را وروسته یې یوګوسلاویا پورې تړاو وموند. یوګوسلاویا په همدې ډول د تریست (Trieste) د ښار او بندر په ځمکه دعوه لرله ، چې البته وروسته د هغې د شاوخوا په ګډون د تریست (Trieste) د ازادې سیمې په حیث د امریکایي او برتانوي لښکرو په وسیله ونیول شوه، د هغې هوکړې له مخې چې د امریکایي او برتانوي لښکرو ( اشغالګرو لښکرو) او د یوګوسلاویا او ایټالیا حکومتونو تر منځ شوې وه ، دا سیمه د دواړو هېوادونو تر منځ ویش شوه. چې ددې ویش پر بنسټ د تریست ازاد ښار ایټالیا پورې وتړل شو. البته د ایټالیا هېواد ژمنه وکړه چې تریست ښار به د یو ازاد بندر په توګه ساتي . اګر چې په دې اړه کوم رسمې تړون نشته، مګر بیا هم دا هوکړه لیک آن چې د

ډیفکتـو Defacto پـه بڼـه د ملګـرو ملتونـو لخـو منـل شـوی دی (۵ : ۱۹۷،۱۹۸) او (۲۰: ۱۳۵،۱۳۶).

## ۴.۴.۶ . په نړیوالو اوبو کې اوبیز ترانسپورت

نړیوال سیندونه هغو سیندونو ته ویل کیږي چې د هغې د اوبو اخیستنې حوزه د دوو یا څو ګڼو هېوادونو تـرمنځ وي . لـه لرغونو زمـانو راهیسـې سیندونه د زیات حجم لرونکو توکو د لېږد رالېږد لپاره کـارول شوي دي . دبېلګې پـه توګـه پـه اروپـا ، جنوبي امریکـا او داسې نورو سیمو کې په پخوا وختونو کې یې لـه سیندونو څخه آن چې لـه اوسمهال څخه زیاته ګټه اخېستل کیده ، په ګڼو سیمو کې د حق العبور ورکول یو لـه هغو لاملونو څخه و چې له سیندونو څخه یې په ګټه‌اخېستلو کې کموالی راوست، د بېلګې په توګه د سویزرلیند او شمال بحیرې تر منځ راین سیند په جریـان کې لـه ۳۰ څخه زیـاتو ځایونو کې حق العبور ورکولـو چـې ځینـې وخـت بـه ددې ډول حـق العبـور ورکولـو انـدازه د لېږدېـدونکو توکـو د ارزښت څخه زیاته شوه.

د شـیلډ (Scheldt) سـیند لـومړنی نړیـوال سـیند و، چـې د خواوشـا ټولـو ګاونـډیو هېوادو لپاره د استفادې په موخه وکارول شو. ددې سیند د بهېدو لاندینۍ برخه او خولـه د انتورپ (Antwerp) بندر په ګډون په ۱۷ م پیړۍ کې د هالندیانو لخوا د ټولو هېوادونو د حمل ونقل لپاره وتړل شوې . په (۱۷۹۲م) کال کې فرانسـوي لښـکرو هغـه ونیولـو او ورڅخه یې د ټولو ګاونډیو هېوادونو لپاره د ګټې اخېستلو اعلان وکړ.

د راین (Rhine) سیند پر لور د فرانسې د سرحدونو وړاندې تـوب هغـه محدودیتونـه چې له دې سیند څخه د ګټې اخیسـتنې پـه برخـه کې موجود وو؛ لـه منځـه یـوړل، سره لـه دې چې یـوه انـدازه حـق العبـور پـه دې پـړاو کـې هـم د خـدماتي لګښـتونو د بسـنې پـه موخـه اخېستل کیدلو، ترڅو چې پـه ۱۸۶۸ م کـال د منهـایم (Manheim) د کنوانسـیون پـر اسـاس د راین (Rhine) سیند څخه د ګټې اخېسـتلو ټـول محدودیتونـه لمنځـه ولاړل . تـر دې مخکـې د ویانا کنفرانس چې په ۱۸۱۴م کلونو کې د ناپیلون له جنګونو وروسته په اروپـا کـې د سـولې

راتلو په موخه دایرشوی و، په‌کې همداسې هڅه شوې وه تر څو له نړیوالو سیندونو څخه د حمل و نقل لپاره د ګټې اخېستلو ازادي تضمین کړي چې البته شلیدو، میوز (Meuse) ، راین او مرستیالان سیندونه یې په‌کې شامل وو. دا ډول مقررات په دانیوب سیند له ۱۸۵۶ م کال وروسته، او د مرکزي افریقا په سیندونو له ۱۸۸۰م کال وروسته تطبیق شول . حال دا چې له لومړۍ نړیوالې جګړې وروسته د نړۍ ټول سیندونه په‌کې راونغښتل شول . په بله ژبه د پارس تړون چې په ۱۸۵۶ م کال کې یې کریمیه جنګونو ته د پای ټکی کېښود په دانیوب سیند کې یې کشتۍ چلول د ویانا کنګرې د مندرجاتو په پام کې نیولو سره تائید کړل(۵ : ۲۰۱) .

له دویمې نړیوالې جګړې وروسته یو ځل بیا د هغه په ګاونډ کې د سوسیالستي هېوادونو په منځته راتلوسره پرې محدودیتونه ولګول شول . حال داچې له ۱۹۶۰ م کال را وروسته یو ځل بیا له درې واړو سیندونو څخه استفاده په تدریجي توګه زیاته شوه . په همدې ترتیب کله چې په ۱۸۸۵م کال کې د کانګو سیند حوزه د ټولو هېوادونو لپاره سوداګریزه ازاده سیمه اعلام شوه، د دې هېوادونو سیندونه هم د کشتۍ چلولو لپاره ازاد شول، په دې تړون کې د کانګو سیند او مرستیالانو سربیره یې د نایجر (Niger) سیند هم رانغښتي و. سره له دې چې د دواړو سیندونو د جریان منځنۍ برخه د لاندینۍ برخې څخه د ځړوبو په وسیله بېلېږي، چې کشتۍ چلول په‌کې ستونزو سره مخامخ کېږي . په وروستیو تړونونو کې د مرکزي افریقا جهیلونو په ګډون نور سیندونه هم ازاد وګڼل شول . په ۱۹ م پیړۍ کې ددې ډول تړونونو نورې بېلګې له سیندونو څخه د ګډې ګټې اخېستنې په موخه ولیدل شوې.. په ۱۸۹۷ م کال کې د ایران او د هغه وخت ترکیې امپراتورۍ چې د عراق خاوره هم په‌کې شامله وه، تړون وکړ چې د شط العرب سیند څخه په ګډه توګه ګټه واخلي. په همدې توګه په ۱۸۴۸م کال کې د امریکا متحده ایالات او مکسیکو د ریوګراند (Riogrande) له سیند څخه د ګډې ګټې اخېستنې موافقه وکړه. په ۱۸۵۱ م کال کې برازیل هوکړه وکړه چې د پیرو هېواد کشتیو ته اتلس سمندر ته د رسېدو په موخه په امازون سیند کې اجازه ورکړي، څو کلونه وروسته دواړو هېوادونو هوکړه وکړه چې له دې سیندونو او مرستیالانو څخه یې ټول هېوادونه کولی شي ګټه واخلي.

په همدې ترتیب لیدل کېږي په ۱۹ م پیړۍ کې یو شمېر زیات نړیوال سیندونه ټولو هېوادونو ته د ګټې اخېستنې لپاره په واک کې ورکړل شول. د لومړۍ نړیوالې جګړې وروسته د وارسای تړون (۱۹۱۹م ) په پایله کې د نړیوالو سیندونو په اړه ځینې عمومي مقررات او قوانین وضع شول، چې د هغې پر اساس الب (Elbe)، اودر(Oder) سیندونه او د دانیوب سیند د بهیدو پاسنۍ برخه ددې ډول سیندونو په لیکه کې راغلل. په همدې توګه لــه (۱۹۱۹–۱۹۲۰م) کلونــو کــې ځینــې نــور ســیندونه لکــه نیمــین (Niemen)، وســتولا (Vistula)، موروا، (Morava) ،چکسلواکیا، تیسزا (Tisza) او پرت (Prut) سیندونه هم د نړیوالـو سیندونو پـه لیکـه کـې وګڼـل شـول. پـارس د سـولې کنفـرانس (۱۹۱۹–۱۹۲۰م) یـو کمیسون وګمارلو تر څو په نړیوالو سیندونو کې د کیشتۍ چلولو د ازادۍ موضوع وارزوي . کمیســون پــه (۱۹۲۱م) کــال کــې پــه بارســلونا (Barcelona ) کــې جلســه وکــړه او دیــو کنوانسیون اساسونه چې له مخې یې د نړیوالو سیندونو څخه ګټه اخېستنه تنظیمېده، طرحه شوه. باید یادونه وشي چې یاده پریکړه یوازې له (۳۰) هېوادونو لخوا لاسلیک شوه، ځکه نور هېوادونه لکه ایټالیا او انګلستان له دې امله چې د کیشتۍ چلولو وړ سیندونه یې نه لـرل، او یـا لکـه د امریکـا متحده ایـالاتو چې پخـوا یـې دې تـه ورتـه قراردادونـه د ګاونـډیو هېوادونو سره لاسلیک کړي وو؛ یاد سند لاسلیک نه کړ.

د دوو نړیوالو جګړو په منځ پړاو کې د ټولو هېوادونو کیشتیو پرتـه لـه کوم تبعیض له دې ډول سیندونو څخه ګټه اخېستله، سره له دې چې طرحه شوو بنسټونو لـه هغـه څـه سره چې په عمل کې لیدل کیدل په بشپړه توګه توپیر درلود. د بېلګې په توګه د امور سیند چې د شوروی اتحاد او چین ترمنځ سرحد یې جوړولو یو نړیوال سیند و، په هغې کې کشتۍ چلول د ۱۹۳۴م کال د تړون پر اساس ازاد و، حال دا چې په عمل کې دا ډول ازادي نه لیدل کیده . همدارنګه نورو ټولو هېوادونو وخت په وخت ځینې محدودیتونه لکه پر سیندونو د متحرکو پلونو جوړول او دحق العبور وضع کول؛ ښایي په اړه یې ممانعتونه رامنځته کړي (۵ : ۲۰۱–۲۰۳).

## لنډیز

سره ددې چې په منځنیو پېړیو کې په اروپا کې سوداګري تر ډیره بریده کنترول او محدوده وه، خو ادم سمت د تیورۍ پر بنسټ باید حکومتونو د بېرونۍ سوداګرۍ د ازادۍ او پرمختګ لپاره د سوداګرو مرسته کړې وای، چې ددې تیورۍ اغېزې په لومړي پړاو کې راڅرګندې شوې، بېرونۍ سوداګرۍ ته نسبي ازادي ورکړل شوه. انګلستان یوازینی هېواد و چې په ۱۹م پیړۍ کې یې ازاده سوداګري تشویقوله.

که څه هم د نړۍ پر مخ داسې هېوادونه شته چې په ټولو برخو کې پر ځان متکي وي او په بېرونۍ سوداګرۍ کې لاس نه لري. نو ویلی شو چې بېرونۍ سوداګري د ټولو هېوادونو لپاره اړتیا ده. خو بېرونۍ سوداګري هم دوه ډوله ستونزې زېږوي، یو دا چې هېوادونه په یو ځانګړي موقعیت کې راګېروي، دویم دا چې د سوداګرۍ بشپړه ازادي که څه هم ناشونې ده خو لږ تر لږه غیر عملي وي.

د بېرونۍ سوداګرۍ د ښه پر مخ بېولو لپاره له دویمې نړیوالې جګړې وروسته هم هڅې کېدې په ۱۹۴۷م کال کې په جینوا کې د (GATT) تړون وشو چې د نړۍ تر نیمایي زیاتو هېوادونو لخوا لاسلیک شو. د سوداګرۍ نړیوال مرکز (ITO) چې د (GATT) تړون په وسیله په ۱۹۶۴م کال کې تاسیس شوی د مخ پر وده هېوادونو سره مرستې کولې، چې په پایله کې یې اوس هېوادونه کولی شي د سوداګرۍ په چارو کې اسانتیاوې راولي، خو دا اسانتیاوې په سوسیالستي هېوادونو کې نه وې، ځکه هلته سوداګري د حکومتونو په انحصار کې وه.

باندینۍ سوداګري د حکومتونو ترمنځ د بېلابېلو ترانسپورتي وسایلو لکه هوایي، ځمکنیو او اوبیزو وسیلو په مرسته تر سره کېږي. په نړیواله سوداګرۍ کې د چین اقتصادي چټک پرمختګ په نړیواله سوداګرۍ کې په پرله پسې توګه پراختیا کړې ده.

داسې معلومېږي چې اوبیزه سوداګري تر ټولو ارزانه، مصوءونه او غوره سوداګري ده. په سوداګرۍ کې ابناګانې او کانالونه ډېر مهم رول لري. په دې ډول سوداګرۍ کې د سویز کانال چې د ترافیکو د حجم له پلوه ډېر غوره کانال دی چې په کېندلو سره یې د اروپا د

شمال لوېديځ او هند تر منځ سوداګريزې چارې غښتلې شوې . همدارنګه د پانامې کانال هم په نړيواله سوداګرۍ کې غوره رول لوبوي چې په مرسته يې د شمالي امريکا ختيځې برخې او اروپا د امريکا لويديځو برخو او د جنوبي امريکا لوېديځو برخو سره ونښلي . په همدې ترتيب د کيل کانال هم په نړيواله سوداګرۍ کې رغنده رول لري .

## پوښتنې

۱.برتانيې د شمالي امريکا جنوبي سيمو ته ولې د نيو انګلينډ ايالت په پرتله زياته ترجيح ورکوله؟

۲.ادم سمت په کوم ډول سوداګرۍ ټينګار کولو ؟

۳. بېرونۍ سوداګري کومې غټې ستونزې لري ؟

۴.د سوداګرۍ انحصاري بشپړه ستونزه په کومه پېړۍ کې وه په بېلګو کې يې وښاياست؟

۵ـ په ۱۸۸۵م کال کې د کانګو حوزې تړون د کومو هېوادونو تر منځ پر کومو موضوعاتو شوی و؟

۶.د GATT تړون کله ، چېرته او پر کومو موضوعاتو شوی و ؟

۷.ترکيي ابناګانې کومې او د طارق ابنا سره يې ارزښت پرتله کړئ ؟

۸. دکوچک کاينارجي تړون څنګه تړون و؟

۹. د سويز کانال د چالخوا او د کومې کمپنۍ په مرسته جوړ شوی ؟

۱۰.د سويز کانال په کېندلو سره د کومو سيمو تر منځ سوداګريزه پراختيا راغله؟

۱۱ـد پانامې کانال چېرته موقعيت لري او دچا لخوا کېندل‌شوی ؟

۱۲.د پانامې کانال د کومو سيمو تر منځ سوداګريز پول په بڼه دی؟

۱۳. د کيل کانال چېرته او د چالخوا کېندل شوی ؟

۱۴. ازاد بندرونه يعنې څه؟

۱۵.په نړۍ کې د ازادو بندرونو غوره بېلګې کوې دي ؟

۱۶ـ ازاد ښارونه په څه معنی دي ؟

۱۷ـ د ازاد ښارونو بېلګې کومې دي ؟

۱۸ـ نړیوال سیندونه کوم دي واضح یې کړئ ؟

۱۹ـ د راین سیند چېرته او په سوداګرۍ کې یې ونډه څنګه ده ؟

۲۰ـ د میوز سیند ارزښت په سوداګرۍ کې واضح کړئ ؟

# اوم څپرکی

## نړیوالې اړیکې او باندینی سیاست

د- حکومتي واحدونو او نا دولتي اساسونو تولې متقابلې چارې او کړنې او همدارنګه د ملتونو ترمنځ چلندونو ته نړیوالې اړیکې وایي .کیدای شي ووایو چې له لرغوني یونان او هند څخه بیا تر منځنیو پیړیو او همدارنګه په نویو پیړیو کې د نړیوالو اړیکو په اړه نظریې ورکړل شوي دي، البته د ځینو هغو پوهانو په آند چې نړیوالې اړیکې د ملي واحدونو ترمنځ د اړیکو پر بنسټ تعریفوي، دا پدیده او مطالعه یې له ۱۶۴۸م کال راپدېخوا ښودلې .

ځینې وایي چې د نړیوالو اړیکو پدیده د شلمې پیړۍ په دریمه لسیزه کې لومړی د امریکا په پوهنتون هارورد (Harward) او کلمبیا کې دیوې پوهنتوني رشتې په ډول منځته راغله . او د دویمې نړیوالې جګړې وروسته یې خپل ځان ته ځانګړې بڼه غوره کړه.

د (۱۹۳۰م) کال را پدیخوا په دې برخه کې نظري لید لورو باندې تعرضونه د پاملرنې وړ وګرځیدل او د نړیوالو اړیکو په یوې پایدارې ریشتې بدله شوه.

ځيني د نظر خاوندان چې د حقوقي اوسياسي علومو د متفکرانو تر اغېزې لاندې دي په دې آند دي چې په دې رشته کې د نظر ورکولو عناصر د ګروسيوس او بوفنداف حقوقپوهانو په اثارو او د اراسموس،سالي، ماکياولي، هيوم او روسو په شان ځېړونکو په څېړنو او همدارنګه د سياستمدارانو لکه د بسمارک په ياد داشتونو کې ليدل کېږي.

دا ډول نړيوالې اړيکې له لومړۍ نړيوالې جګړې وراندې تر زياته په اروپايي کادرونو استوارې وې . او د هغه عصر غوره مسايل لکه مستعمرې، سوله او جګړه، تړون جوړونه او بلاک جوړونه ، دکړکيچونو لمنځه وړل او نړيوال اقتصاد يې په برکې نيول . مګر له لومړۍ نړيوالې جګړې وروسته ددې جوړښت زوال پيل شو او د دوو لسيزو په موده کې اروپا له دې کړۍ ووتله، او يو نوی بل نظم پر ملګرو ملتونو ټولنې حکمفرما شو.

د نړيوالو اړيکو، نړيوال سياست او باندينې سياست توپير په دې کې دی چې نړيوالې اړيکې د ملګرو ملتونو په برخه کې د حکومتونو دکړنو مجموعه او د موسيسو او غير دولتي شرکتونو فعاليتونه هم په کې رانغښتي وي، مګر نړيوال سياست د يو هېواد د کړنو رفتار او د نورو هېوادونو عکس العمل يا ځواب ويلو ته ويل کېږي . او په واقعيت کې د هېوادونو په کړنو محدود دی . حال دا چې باندينی سياست د يو هېواد تصميم نيونه د بېرونۍ اړيکو په برخه کې ګڼل کېږي .

## ۱.۷. باندينی سياست

د حکومتي تصميم نيوونکو په وسيله له پخوا څخه يوه طرحه شوې ستراتيژي چې موخه يې د ټاکلو موخو لاس ته راوړل، د ملي ګټو په چوکاټ او په باندينې چاپيريال کې باندينی سياست ګڼل کېږي . باندينی سياست يو لړ ملي ګټو او موخو د تر سره کولو تامين او ټاکلو ته شامل دی . چې په نړيواله صحنه کې د هېوادونو لخوا تر سره کېږي .

همدارنګه کېدی شي باندينې سياست د يو هېواد نوښت او يا د يو بل هېواد د کړنو پر وړاندې عکس العمل وي. باندينې سياست د داخلي سياست غځول دي .

د باندينې سياست مفهوم په هر هېواد کې د تصميم نېونې د ارزيابۍ، ترسره کولو او تدوين پوري تړلی وي، چې د هغه هېواد له ځانګړي ديدګاه څخه ،د پولو اخوا جنبه پيدا کوي . په بله ژبه باندينی سياست د يو هېواد په داخل کې فرمول بندي کېږي او د ملي سياست سره ژوندی او دوامداره تړاو لري . په حقيقت کې ديو هېواد باندينی سياست د خپل مسووليت په توګه تدوين او تنظيموي . دا ډول مسووليت د هغو واکونو او تکاليفو پر اساس چې بنسټي قانون د باندينې سياست او نورو هېوادونو سره د تړاو له مخې ټاکلي تر سره کېږي (۳۳ : ۱۴۷،۱۴۸).

## ۲.۷. د نړيوالو اړيکو د پيداينښت انګيزې

ملتونو د نړيوالو اړيکو د منځته راوړلو غوره انګېزې په لاندې ډول ښودلې دي .

۱- دملګرو ملتونو دصحنې دوه قطبي کيدل او د دوو لويو نړيوالو ځواکونو (امريکا او پخواني شوروي اتحاد)اتومي او مسلح کيدنې رقابتونه.

۲- مذهبي، سياسي، نژادي، نشنليزم او د سياسي مختلفو مکتبونو ايډيالوژيانې.

۳- د تکنالوژۍ پراختيا او پرمختيا.

۴- ملګرو ملتونو د هېوادو يو له بل سره اقتصادي، سياسي، نظامي سازمانونو جوړول او يو ځای کيدل.

۵- د اليکترونيکي علومو او ارتباطاتو خارق العاده پرمختګ.

۶- په ملګرو ملتونو او ټولو نړيوالو سازمانونو کې د خپلواکو هېوادونو د غړيتوب زياتوالی .

۷- د وګړو زياتيدل.

۸- تر سلطې لاندې ټولنو کې د ازادۍ غوښتنې غورځنګونو منځته راتګ.

۹- د دوو لویو ځواکونو د اتومي سلاحګانو لرلو له امله توازن، او دنړۍ د نورو قدرتونو تر منځ د سلاحګانو (وسلو) پرمختګ او پراختیا او د درېیم نړیوال جنګ ویره.

۱۰- د دوو نړیوالو جګړو منځته راتګ، سیمه ایزو جنګونه او ټول نړیوال اختلافات.

۱۱- د پرمختللو او غریبو هېوادونو د وګړو ترمنځ د ژوند نا انډولتوب (۲۰ : ۱۶۰،۱۶۱).

## ۳.۷. دنړیوالو اړیکو غوره تیوري ګانې

د نړیوالو اړیکو غوره تیوري ګانې په لاندې توګه دي.

### ۱.۳.۷. دنړیوالو اړیکو نظریې

دنړیوالو اړیکو تیورګانې کولای شو په ټولیزه توګه په لاندې ډول ډلبندي کړو.

**الف. د همکارۍ نظریې**

د همکارۍ د فرضیې پر اساس هېوادونو کړنې او اړیکې په کې شاملې وي. په دې برخه کې د ټولپالنې، په ګډه کار کول، یو د بل سره یو ځای توب او د سولې ټینګښت اړیکې په کې شامل دی.

**ب. د لانجو او جنجالونو نظریې**

چې په کې د لانجو حل او د ځواکونو توازن نظریې شاملې دي.

**ج. د ملګرو ملتونو د نظام نظریې**

چې د سیستمونو او یو ځای توب تیوریګانې په کې شاملې دي (۲۰ : ۱۶۳).

## لنډیز

که څه هم نړیوالې اړیکې د ځینو په آند ډېر لرغونتوب لري ، د دوی په آند نړیوالې اړیکې د لرغوني یونان او هند څخه راپیل او غزېدلې دي ، خو د ځینو په آند چې د نړیوالو اړیکو پدیده د ۲۰ مې میلادي پېړۍ په درېیمه لسیزه کې د امریکا هارورد او کلمبیا پوهنتونونو کې د یوې پوهنتوني څانګې په توګه رامنځته شوه .

له نړیوالې جګړې مخکې د نړیوالو اړیکو غوره موضوعګانې ، مستعمره ، سوله ، جګړه ، تړون ، بلاک جوړونه ... او داسې نورې وې . مګر له لومړۍ نړیوالې جګړې وروسته ددې جوړښت زوال پیل شو .

نړیوالې اړیکې د نړیوال سیاست او باندیني سیاست سره ډېر توپیر لري او باید چې یو د بل سره ګډوډ نه شي او یو د بل پر ځای و نه کارول شي . یعنې په دې معنی چې نړیوالې اړیکې د حکومتونو د کړنو ټولګه ده او همدارنګه حکومتي او نا حکومتي موسیسو کړنې په کې رانغښتې وي .

د نړیوالو اړیکو منځته راتلو غوره انګیزې ډېرې دي ، خو ډېری یې د دوو لویو ځواکونو په اتومي وسلو نه سمبالښت ، مذهبي ، سیاسي ، نژادي او دمختلفو نظریو مکتبونو جوړېدل ، د تکنالوژۍ پرمختګ او داسې نور وو .

نړیوالې اړیکې ځانګړې تیوریګانې لري چې د همکارۍ تیوري ، د لانجو او جنجالونو حل تیوري او د ملګرو ملتونو د نظام نظریې یې غوره او بنسټیزې وې.

## پوښتنې

۱. نړیوالې اړیکې په کومه معنی دي ؟

۲. نړیوالې اړیکې د مضمون او د یوې بېلې څانګې په توګه لومړی ځل په کوم پوهنتون کې د پوهنتونې څانګې په توګه رامنځته شو؟

۳. ترلومړۍ نړیوالې جګړې وړاندې د نړیوالو اړیکو غوره موضوعګانې کومې وې ؟

۴. د نړیوالو اړیکو ، نړیوال سیاست او باندیني سیاست تر منځ توپیرونه کوم دي ؟

۵. د باندیني سیاست مفهوم څه دی ؟

۶. د نړیوالو اړیکو د منځته راتلو څو غوره انګیزې کومې دي ؟

۷. د تکنالوژۍ پراختیا او پرمختګ څنګه د نړیوالو اړیکو د منځته راتلو غوره انګیزه کیدی شي ؟

۸ـ د وګړو زیاتېدل څنګه دنړیوالو اړیکو د منځته راتلو غوره انګیزه کیدی شي ؟

۹ـ دنړیوالو اړیکو له مخې د همکارۍ تیوري واضح کړئ؟

۱۰ـ دنړیوالو اړیکو له مخې دلانجو او جنجالونو حل نظریي یعنې څه ، واضح یې کړئ ؟

۱۱ـ دنړیوالو اړیکو له مخې د ملګرو ملتونو د نظام نظریي په څه معنی دي واضح یې کړئ؟

# اتم څپرکی

## داطلاعاتو سیاسي جغرافیه

یو د لومړنیو کتابتونو له ډلې چې د اطلاعاتو سیاسي جغرافیې په باره کې په لویدیځه نړۍ کې خپور شوی دی، د انګلیسي محقق انتوني سمت د نړیوالو اړیکو کتاب دی، چې د " د اطلاعاتو جیوپولیتیک : پر نړۍ د لویدیځ فرهنګي سلطې څرنګوالی " تر سرلیک لاندې په ۱۹۸۰م کال کې په لندن کې په چاپ ورسېدو او فارسي ژبې ته هم اړول شوی دی.

په ۱۹۸۰م لسیزې کې سیاسي جغرافیې د نظامي او ټولنیزو مطالعاتو برخې ته لاره ومونده ، د ۱۹۸۰ م په لسیزه کې د اړیکو او اطلاعاتو نړیوالې صحنې ته د سیاسي جغرافیې د مفهوم بیا ځلې راننژدې توب ، کیدای شي په سیاسي جغرافیې کې د پراخو بدلونونه او د نړۍ دسیاست په برخه کې د اطلاعاتو او اړیکو ارزښت وبولو. په هغه مهال کې زیاتره ټینګار په خبري رسنیو، راډیو او تلویزوني کانالونو و، لکه چې د هغه مهال پنځو لویو خبري رسنیو (اسوشیتد پرس، یوناتیدپرس، انټرنیشنال، فرانس پرس او تاس) د شمالي نړۍ په ښه جوړونه کې غوره رول ولوبولو.

د اطلاعـاتو سیاسـي جغرافیـه د هېـواد فضـايي مطالعـه ده چـې د اطلاعـاتو تولیـد ، وېش او لګښت د هغې د پولو جوړوونکو په عنوان حسابېږي . او په دې متحرکه فضاء کې د هر سیاسي موجودیت د اغیز لرونکي په څیر د اطلاعـاتو د تولیـد، توزیـع او مصرف پـه برخه کې یو والی لري .

## ۸.۱. د اطلاعاتو سیاسي جغرافیې ځانګړنې

### ۸.۱.۱. خوځښتوب

د اطلاعـاتو سیاسي جغرافیـې تـرډېره د ځمکـې فضـاء څېړي چې د دوديـزې ثـابتې جغرافیـې پـه پرتلـه د خوځښـت لرونکـې ده . نـو نـه شـو کـولای يـوه ځـانګړې بشـپړه پولـه اطلاعاتي – سیاسي ویش بندی لپاره ترسیم یا وټاکو ځکه فضاء تل د بدلون او خوځښت په حال کې ده .

### ۸.۱.۲. ځانګړې مرز بندي

د اطلاعاتو سیاسي جغرافیې د سیمو پولې د دوديزې جغرافیې د ښکاره پولـو بر عکس د اطلاعاتو او خبرونو تولید.توزیع او مصرف پر بنسټ رامنځته کېږي . په دې معنی چې د اطلاعاتو د توزیع ، لګښت او تولید مرکزونه د دنیا په سیاسي ، ټولنیزو او اقتصادي معادلاتو کې اغېزمن او قانوني ټکي ګڼل کېږي .

### ۸.۱.۳. د اطلاعاتو د جریان لوری نیونه

د دوديـزې جغرافیـې بـرخلاف چې لـه شـمال– جنـوب، شـرق او غـرب او دې تـه ورتـه ډولـو څخـه تشـکیل شـوی وه، د اطلاعـاتو پـه سیاسـي جغرافیـې کـې زیـاتره پـاملرنـه شـمال، جنوب او مرکزپورې راټوله شوې ده. (۲۰ : ۵۰).

### ۸.۱.۴. د اطلاعاتو سیاسي جغرافیې د څېړنې سیمې د اطلاعاتو د متخصصینو لپاره

۱- د اطلاعاتو د ملي، سیمه ایزو او نړیوالو جریانونو پلټل (څېړنه) او د اغېزمنو لاملونو پېژندل یې.

۲- د هېوادونو علمي رول په منځته راتلو کې د اغېزمنو سیمو او سرچینو او د وګړو د پېژندلو په برخه کې څېړنه او مطالعه کول.

۳- د هغو لارو په اړه مطالعه چې د پولو او انحصاري ځایونو بیرون اطلاعات لاس ته راوړي.

۴- د اطلاعاتي اخلاقو په اړه مطالعه کول د اطلاعاتو د تحمیل په مقابل کې د اطلاعاتو رواجول.

۵- د ټولنې د مشرانو پر مهاجرت د اغېزمنو لاملونو د مودلونو پېژندل.

۶- د اطلاعاتي زده کړې د پرمختګ لپاره د لارو پیدا کول او ددې په لاس ته راوړلو کې د اسانتیاوو لپاره د انټرنیټ د محتوا جوړول(ایضاً : ۵۱).

## ۸.۲. اطلاعات او نړیوالتوب

د اطلاعاتو د روابطو نړیوالتوب په برسېره کې ګورو چې دا دوه پدیدې یو د بل سره دوه ګونې رابطې لري له یوه لورې اطلاعات په نړیوال توب کې ځانګړی ځای او رول لري او له بله پلوه نړیوال توب اطلاعاتو ته لاس رسي کې د زیاتوالی د لامل په توګه ارزښت لري.

کیدای شي تعبیر کړو چې وګړي د اطلاعاتو په لرلو سره مشارکت او همکارۍ ته هڅېږي چې د هغې په پایله کې نړیوالتوب د عینیت کیدو په حال کې دی. نړیوال توب هم پخپله د اړیکو د پراختیا، چټکتیا، اسانتیا او هڅونې لامل ګرځیدلی شي (۲۰ : ۵۱).

## لنډيز

په ۲۰ مې میلادي پېړۍ کې یعنې په ۱۹۸۰م کال کې سیاسي جغرافیه په دې وتوانېده چې نظامي او ټولنیزو خپرونو ته لاره پیدا کړي، په هغه مهال کې تر ډېره ټینګار په خبري رسنیو کېدو لکه رادیو، تلوېزیون او داسې نور.

د اطلاعاتو سیاسي جغرافیې غوره ځانګړنې حرکت یا خوځښت، یعنې د اطلاعاتو سیاسي جغرافیه د ځمکې فضاً ځېري چې تل د خوځښت په حال کې ده. همدارنګه د اطلاعاتو سیاسي جغرافیه ځانګړې مرزبندي لري چې د ښکاره پولو بر عکس د اطلاعاتو او خبرونو تولید، توزیع او مصرف پر بنسټ بڼه پیدا کوي.

همدارنګه د اطلاعاتو سیاسي جغرافیه خپله پاملرنه تر ډېره بریده شمال-جنوب او مرکز پورې تړي. اطلاعات د نړیوال‌توب لپاره ډېر حتمي دي دا دوه پدیدې یو تر بله دوه اړخیزې اړیکې لري چې په لنډه داسې ویلی شو چې نړیوال‌توب په خپله د اړیکو د پیدایښت، غزېدو، چټکتیا او هڅونې لامل ګرځي.

## پوښتنې

۱ـ د اطلاعاتو سیاسي جغرافیې په اړه لومړي ځل د چا لخوا ترکوم سرلیک لاندې کتاب لیکل شوی؟

۲ـ په ۱۹۸۰م لسیزه کې د اړیکو او اطلاعاتو صحنې ته د سیاسي جغرافیې بیا ځلې ورننږدې توب د څه لامل شو؟

۳ـ په ۱۹۸۰مه لسیزه کې د اطلاعاتو په برخه کې تر ډیره ټینګار په څه شي کېدو ؟

۴ـ د اطلاعاتو سیاسي جغرافیې ځانګړنې کومې دي ؟

۵ـ د اطلاعاتو سیاسي جغرافیې د څېړنې سیمې د اطلاعاتو د متخصصینو لپاره په څه معنی دي ؟

۶ـ اطلاعات او نړیوال توب څه مفهوم لري ؟

۷ـ اطلاعات د نړیوال توب لپاره څه ارزښت لري ؟

۸ـ وګړي د اطلاعاتو په لرلو سره څنګه نړیوال توب ته رسېږي ؟

۹ـ نړیوال توب اطلاعاتو ته څه اړتیا لري ؟

۱۰ـ نړیوال توب د څه لامل ګرځي ؟

# نهم څپرکی

## په نړۍ کې غوره سیاسي او اقتصادي ټولنې

نن ورځ د نړۍ وګړي په دې آند دي چې سیمه ییز او نړیوال ټرونونه د نړۍ د هېوادونو ترمنځ د اختلافاتو د پایښت لامل ګرځي. سره له دې چې متاسفانه اوس هم په نړۍ کې د هېوادونو ترمنځ مخالفتونه او کړکېچونه شتون لري او یا دا چې د ځینو همکاریو پراختیا او پرمختیا هم د همدې مخالفتونو پر بنسټ را منځته شوې، د بېلګې په توګه د اروپایي همکارۍ ټرون(OEEC) چې له ۱۹۴۹م کال راپدېخوا یې د لوېدیځې اروپا هېوادونو د اقتصادي بیا راژوندي کولو په برخه کې غوره رول درلود. حال دا چې ددې طرحې بنسټېزه موخه چې په ۱۹۴۷م کال کې د امریکا متحده ایالاتو د باندینیو چارو وزیر جورج مارشال لخوا وړاندیز چې، د ځواکمنو متحدینو او په اروپا کې له اقتصادي پلوه پرمختللي هېواد شوروي اتحاد سره د سوړ جنګ لرلو په تړاو وه.

په هر صورت له دویمې نړیوالې جګړې وروسته یو له ځانګړتیاوو څخه ددې ډول ټرونونو رامنځته کولو لپاره په ټوله نړۍ کې لپاره هڅې وې، دا ټرونونه بنایي د ځانګړو

موخو لکه اقتصادي ، کلتوري ، ټولنيزو او سياسي لپاره جوړ شوي وي ، مګر په ټوله کې ټول دا ډول تړونونه پورتنۍ يادې شوې ټولې موخې پالي .

په لنډو ويلی شو دا چې ددې ډول تړونونو په رامنځته کولو کې جغرافيايي عوامل هم غوره او اغېزمن رول لري ، نو له همدې امله د هغوی لوستل او پلټل په سياسي جغرافيې کې د ارزښت وړ ګڼل کېږي .

د نړيوالې سولې او امنيت ټينګښت او د سياسي اقتصادي او فرهنګي همکاريو رامنځته کول د بشر اساسي اړتياوې او پخوانۍ هيلې دي.خو د نړيوالې سولې د ټينګښت لپاره هلې ځلې له يوه داسې بنسټ پرته چې دغه موخه په کې تحقق ومومي ناشونی وې.

په پخوانيو پېړيو کې نړيوالې اړيکې د دولتونو پر دوه يا څو اړخيزو اړيکو ولاړې وې که څه هم په ۱۹مه پېړۍ کې د نړيوالو همکاريو د تنظيم او انسجام په موخه د ويانا او برلين کنګرو له لارې ډېرې هڅې وشوې خو دومره مثبتې و نه برېښېدې بلکې يوازې د اروپا په‌لويه وچه کې محدودې پاتې شوې.

د بشري ټولنې له پرمختګ او د دولتونو ترمنځ د هر اړخيزو همکاريو اړتيا ته په پام سره د عادلانه اړيکو په چوکاټ کې د يوې رښتينې سولې او ثبات لپاره اړتيا ليدل کېده. په همدې اساس له لومړۍ نړيوالې جګړې وروسته د نړيوالې ټولنې د ټولو غړو په ګډون‌يو نړيوال سازمان جوړ شو . ددغه سازمان چې د دولتونو ترمنځ د نړديوالي په موخه يې هڅې کولې په خپل جوړښت کې د ځينو نيمګړتياوو له امله و نه شو کړای چې د دويم‌نړيوال جنګ د خونړي توپان مخه ونيسي .خو د ملتونو ټولنې له ماتې او نيمګړتياوو سره سره د يوه نوي نړيوال بنسټ د جوړېدو اړتيا له منځه لاړه نه شوه بلکې دوه برابره شوه .د دويمې نړيوالې جګړې ګټونکو په دې باور چې د نړيوالې سولې او امنيت‌يوازېنۍ لار د يوه نوي بنسټ جوړول دي د ( ملګرو ملتونو )سازمان يې جوړ کړ ، هغه‌بدلونونه چې د ملګرو ملتونو سازمان له تشکيل وروسته رامنځته شوي دي د دولتونو په داخلي نظام او نړيوالو اړيکو کې يې د پام وړ بدلونونه راوستي دي . ددې ترڅنګ چې د ملګرو ملتونو سازمان

مثبتې لاسته راوړنې لرلې ، باید یادونه وکړو چې دغه سازمان ځینې نیمګړتیاوې هم لري چې له دې جملې د یو شمېر هېوادونو پر وړاندې د امنیت شورا دوه ګونی چلن د نړیوال نا انډوله اقتصاد په مخنیوي کې پاتې راتلل د نړیوالو حقوقو د پلي کولو لپاره د کافي اجرایوي ضمانت نشتوالی او نور....

په هر حال د نړیوالو سازمانونو پدیده د معاصرې نړیوالې ټولنې له غوره برخو څخه یوه ده او داسې ورځ نشته چې خلک د ډله ییزو رسنیو له لارې د هغوی له فعالیتونو خبر نه شي.

## ۹.۱. د اروپا اتحادیه

**د اروپايي اتحادیي European Union (EU) پیدا ېښت او تاریخچه**

که څه هم د اروپايي اتحاد د جوړېدو په اړه ځینې مؤرخین وایي، چې آن د روم امپراتورۍ پر مهال هم دا ډول فکر موجود و، خو په دې برخه کې لومړنۍ عملي هڅه په ۱۸۱۵م کال کې مقدس اتحاد ( Holy alliance ) ګڼل کېږي ( ۳۴: ۲۰۲).

دروم امپراتوري چې په مدیترانې سمندرګي کې متمرکزه وه ، د څو دلایلو په لرلو سره نشو کولی چې د اروپا اتحادیي وړ تمثیل وکړي . دې دوه سیاسي ادارو یو ډول جغرافیایي موقعیت نه لرلو. د روم په امپراتورۍ کې داسیا او افریقا ډیرې برخې ورګډې وې ، خو دالمان پراخې برخې ، سکندنویا ، سکاتلینډاو د اروپا ختیځې برخې پکې نه وې نغښتل شوې . د روم امپراتورۍ د زور او ځوا ک په مرسته پراختیا پیداکړې وه ، دمرکزي ایالت لخوا اداره اوکنترولېده .

https://fa.wikipedia.org/wiki/%D8%A7%D8%AA%D8%AD%D8%A7%D8%AF%DB%8C%D9%87_%D8%A7%D8%B1%D9%88%D9%BE%D8%A7

په ۱۹مه پېړۍ کې هم د یو شمېر پوهانو له خوا د اروپا د یووالي موضوع ډېره مطرح وه او په همدې ترڅ کې د اروپايي هېوادونو ترمنځ د سوداګریزې راکړې ورکړې په برخه کې

یو شمېر تړونونه او هوکړه لیکونه هم لاسلیک شول چې له دې ډلې په ۱۸۶۰م کال کې د انګلستان او فرانسې ترمنځ د ازادې راکړې ورکړې تړون د یادولو دی ( ۳۴: ۲۰۲) .

د لومړۍ او دویمې نړیوالو جګړو تر سختو ورانیو وروسته داروپا اتحادیې د جوړېدو لپاره انګېزې زیاتې شوې ، دا انګېزې د اروپا د بیا رغونې او په اروپا کې د بل شوني جنګ د لمنځه وړلو لپاره وې. دا ډول احساسات د فولادو او ډبرو سکرو ټولنې په جوړېدو چې دالمان ، فرانسې ، ایټالیې او بنې لکس اتحادیې ( بلژیک ، هالنډ او لوګزامبورګ ) هېوادونو لخوا جوړه شوه ، چې دپارس تړون **۱۹۵۱**م کې لاسلیک او د **۱۹۵۲**م کال په جولای کې عمل ته راووته .

له لومړۍ نړیوالې جګړې وروسته دا ډول تړونونه د اقتصادي ټولنو په چوکاټ کې ترسره کېدل. په همدې لړ کې د ګمرکي چارو د همغږۍ په موخه په **۱۹۲۱**م کال کې د بلجیم لوګزامبورګ اقتصادي ټولنه رامنځته شوه. په **۱۹۹۴**م کال کې د هالند په یو ځای کېدو سره دغه ټولنه د بېنې لکس (Benelux) په نوم یاده او د پخوانۍ ټولنې ځای ناستې شوه. خو له دویمې نړیوالې جګړې وروسته د اروپا جنګ ځپلي وضعیت او د شوروي په مشرۍ سوسیالیستي خوځښتونو د یوې منظمې اروپایي ټولنې جوړېدو ته لار پرانېسته او دغه پلان یې یقیني کړ . بالاخره همدې موخې ته د رسېدو په پار په نظامي برخه کې د شمالي اتلانتیک تړون یا ناټو سازمان جوړ شو .همدغه راز په اقتصادي او سیاسي برخو کې د اروپا د اقتصادي همکاریو سازمان او د اروپا شورا رامنځته شول.

په **۱۹۴۵**م کال کې د سویډن فنلینډ او ناروې په نوښت د سکاندنویا په نوم ټولنه جوړه شوه چې له مخې یې د کار قوه په دې ټولنه کې ازاده وګڼل شوه ( ۳۴ : ۲۰۲).

په **۱۹۴۷**م کال کې د انګلستان لومړي وزیر چرچیل المان او فرانسه د اروپا یووالي ته وهڅول او ټول اروپایي هېوادونه یې په دې برخه کې همکارۍ ته را وبلل. د شیومن پلان (schumann plane ) پر بنسټ د اروپایي هېوادونو ترمنځ خبرې اترې پیل شوې.

په ۱۹۵۱م کال کې د بلجيم، لوګزامبورګ، هالند، فرانسې او ايټاليا په ګډون اروپايي ټولنې د ډبرو سکرو او پولادو تړون لاسليک کړ، چې دا کار د اروپا د يووالي په لور لومړنی ګام وبلل شو.

د ۱۹۵۵ کال په جون کې د لوېديځې اروپا د ډبرو سکرو او پولادو ټولنې د غړو هېوادونو د بهرنيو چارو وزيرانو په هغه کنفرانس کې چې په مسينا (messina) کې جوړ شوی و، د اروپا د بشپړ يووالي په موخه يو پرېکړه ليک تصويب کړ او همدغه راز يوې ځانګړې کمېټې ته دنده وسپارل شوه ترڅو د اروپا ګډ بازار او اټومي بنسټ د جوړېدو په اړه يوه طرحه چمتو کړي. ځانګړې کمېټې د يوه کال په ترڅ کې تر دقيقې ارزونې وروسته طرحه چمتو او په ۱۹۵۶م کال کې يې اړونده مرجعې ته وسپارله (۳۴ : ۲۰۲)..

د لوېديځې اروپا د ډبرو سکرو او پولادو ټولنې د غړو هېوادونو د بهرنيو چارو وزيرانو په ۱۹۵۶م کال کې په خپله غونډه کې هغه اصول چې ځانګړې کمېټې چمتو کړي وو، د يادو دوه ټولنو په تړون کې د پيل نقطې په توګه وپېژندل شول. ياده طرحه د کار په موخه په بروکسل کې نړيوالې کمېټې ته وړاندې شوه او يادې کمېټې بالاخره د ۱۹۵۷م کال په مارچ کې طرحه بشپړه او د شپږو هېوادونو يعنې لوېديځ المان، فرانسې، ايټاليې، بلجيم، لوګزامبورګ او هالند له خوا تر تصويب وروسته د ۱۹۵۸م کال په جنورۍ کې د اجرا وړ وګرځېده (ايضاً : ۲۰۳).

د لومړي تړون له مخې د (اټومي انرژۍ اروپايي ) ټولنه تأسيس شوه. ددې سازمان د جوړېدو بنسټيزه موخه د هېوادونو ترمنځ د معلوماتو د شريکولو، اټومي انرژۍ او د راډيو اکټيف صنعت په برخو کې د اسانتياوو برابرول وو.

دويم تړون چې د روم تړون په نوم يادېږي او له لومړي تړون وروسته چې د ايټاليا په پلازمېنه روم کې لاسليک شو، له مخې يې اروپايي ټولنه رامنځته شوه. ياد تړون شپږ څپرکي، ۲۴۸ مادې، درې ضميمې او ۳۱ پروتوکولونه لري.

د اروپا اقتصادي ټولنې له تأسیس وروسته په سیاسي، اقتصادي او نظامي برخو کې د اروپايي ټولنې د جوړېدو په موخه غړو هېوادونو خپلې هڅې چټکې کړې. په همدې لړ کې د ۱۹۹۱م کال د ډسمبر په لسمه د هالند په ماسټریخت کې د اروپايي هېوادونو په ګډون د یوه کنفرانس په ترڅ کې د اروپايي ټولنې تړون ( treaty of european union ) لاسلیک شو او د ۱۹۹۳م کال د نومبر په لومړۍ نېټه د اجرا وړ وګرځېد .ددې تړون ډېره برخه د روم له تړون څخه، چې په ۱۹۵۷م کال کې لاسلیک شو؛ اخیستل شوې ده.

د ماسټریخت په تړون کې د اروپا اقتصادي ټولنې بنسټیزې موخې داسې بیان شوې دي.

۱. د اروپا دوامداره اقتصادي او ټولنیز پرمختګ، اقتصادي یو والی او د ګډ پولي واحد رامنځته کول.

۲. د ګډ بهرني سیاست او امنیت له لارې د نړیوال هویت خپلول.

۳. د ګډ تابعیت پر بنسټ د غړو هېوادونو د اتباعو له حقوقو او ګټو ملاتړ او ساتنه.

۴. د عدلي او قضايي جوړښت په برخه کې نږدې همکاري ( ۳۴ : ۲۰۳).

## د اروپا اتحادیې ځرنګوالی

د اروپااتحادیه تر ډېره یوه نړیواله ټولنه ده ، دیو فدرال دولت په څېر د فوق ملي بین الدولتي عواملو د مختلط ترکیب څخه یو پیوند او څو رګه جو ړښت دی. د اروپا د اتحادیې قوانین الزامي او جبري دي او د غړو هېوادونوپه داخلي قوانینو تفوق او برتري لري .

داروپا اتحادیه یوه اقتصادي – سیاسي اتحادیه ده چې اوسمهال له ۲۷ اروپايي هېوادونو جوړه ده ، چې نژې ۵۰۰ ملیون وګړي لري . ځینې نور هېوادونه لکه آیسلنډ او کرواسي هم داروپا اتحادیې د غړیتوب لپاره میلان لري . داروپا اتحادیي سرچینه د اروپا اقتصادي ټولنې ته چې په ۱۹۵۷م کال کې د روم هوکړه لیک په مرسته د شپږو اروپايي

هېوادونو ترمنځ تشکیل شوې وه ؛ رسېږي. دغه ټولنه یوازې یوه اقتصادي ټولنه وه ، له هماغه مهال راهیسې د نویو غړو په زیاتېدو سره د اروپا اتحادیه پراخه شوه .

په ۱۹۹۳م کال کې دماسټر ریخت تړون د ننني اتحادیې د قانوني چوکاټ بنسټ کېښودو . دغې اتحادیې په ۱۹۹۹م کال کې ګډپولي واحد د یورو(Euro) په نوم رامنځته کړ چې تر دې مهاله په ۱۹ هېوادونو کې دهغوی د ملي پولي واحدونو ځای نېوونکی شوی دی. ددې اتحادیي ۲۱ غړي د ناټو ټولنې غړیتوب هم لري .

بېرونی ګډ سیاست اوامنیت د اروپا د درې ګونو ستنو له ډلې دویمه ستن ده ، ددې اتحادیي ترمنځ په زیاترو هېوادونو کې ګمرکي تعرفې له منځه تللي . د اروپا اتحادیي د وګړو ترمنځ تګ راتګ د کارونو ، پانګې اچونې او د مسافرتونو شونتیاوې زیاتې کړي دي .

د اروپا اتحادیې غوره اداري له اروپایي شورا ، د اروپایي اتحادیي شورا ، د اروپا کمېسیون ، د اروپا محکمه ، د اروپا پارلمان ، د اروپا مرکزي بانک او دمحاسباتو له دیوان څخه عبارت دي .

له ۱۹۷۹م کال راپدېخوا ددې اتحادیې غړي د غړو هېوادونو د استازو په مرسته ټاکل کېږي ، په هرو پنځو کلونو کې پکې یو ځل ټاکنې کېږي ، چې ددې اتحادیي ټول غړي هېوادونه کولی شي پکې ګډون وکړي او رایه ورکړي .

ددې اتحادیې چارې تر ډېره ټولنیز سیاستونه تر پوښښ لاندې راولي . له اقتصادي سیاسته نېولې تر بېرونیو ، دفاع ، کرنې او سوداګرۍ چارو پورې پکې تر سره کېږي . دځوا ک پراختیایې په بېلابېلو خواووکې توپیر لري . په ځینو حوزو کې اتحادیه د فدراسیون په څېر کړنې کوي ، دبېلګې په توګه په پولي ، کرنیزو ، سوداګرۍ ، چاپېریال ساتنې اقتصادي او ټولنیز سیاست په مسایلو کې او په نورو حوزو کې لکه په بېرونیو چارو کې د یو نړیوال جوړښت په څېر ځواک لري .

https://fa.wikipedia.org/wiki/%D8%A7%D8%AA%D8%AD%D8%A7%D8%AF%DB%8C%D9%87_%D8%A7%D8%B1%D9%88%D9%BE%D8%A7

برتانیه د ۲۰۱۶م کال د جون په ۲۳مه دیوې ټولپوښتنې وروسته له دې اتحادیې ووتله . او اوسني غړي یې اتریش، بلجیم، بلغاریه، کرواسي، قبرس، چک جمهوریت، ډنمارک، استوني، فنلنډ، فرانسه، المان، یونان، مجارستان، آیرلنډ، ایټالیا، لتوانیا، لیتوني، لوګزامبورګ، مالت، هالنډ، پولنډ، پرتګال، رومانیه، سلواکیه، اسلووني، اسپانیه، او سویډن هېوادونه دي. لکه په (۱.۹) نقشه کې چې یې غړي هېوادونه ښودل کېږي.



(۱.۹) نقشه: د اروپا اتحادیې غړي هېوادونه.

https://fa.wikipedia.org/wiki/%D8%A7%D8%AA%D8%AD%D8%A7%D8%AF%DB%8C%D9%87_%D8%A7%D8%B1%D9%88%D9%BE%D8%A7

## د اروپایي ټولنې موخې

د روم تړون د دویمې مادې له مخې د اروپایي ټولنې موخې په دې ډول بیان شوې دي:

۱. د ګډ بازار رامنځته کول.

۲. د سوداګرۍ په برخه کې د یوې ګډې پالیسۍ ټاکل.

۳.د غړو هېوادونو ترمنځ ازاد تګ راتګ.

۴. د کرنې په برخه کې د یوې ګډې پالیسۍ ټاکل.

۵.د لېږد رالېږد په برخه کې د یوې ګډې پالیسۍ ټاکل.

۶.د ګډ بازار د پرمختګ په موخه د غړو هېوادونو د قوانینو همغږي کول.

۷.د کارګرانو د ژوند د کچې لوړولو په موخه د اروپا د پانګې اچونې مرستندویه صندوق جوړول.

۸. د ټولنې د اقتصادي ودې په موخه د پانګونې لپاره د یوه اروپایي بانک جوړول.

۹. د اقتصادي پالسیو همغږي کول او په غړو هېوادونو کې د تادیاتي بیلانس ساتل.

۱۰. په بازار کې د سالم رقابت د تضمین په موخه د یوه سیستم رامنځته کول.

په ۱۹۹۵م کال کې اروپايي ټولنې ته د اتریش، فنلینډ او سویډن په راتګ سره د ټولو غړو ترمنځ د شنګن (schengen) تړون لاسلیک شو.

د ۱۹۹۵م کال د شنګن تړون له مخې چې د اوه هېوادونو ترمنځ لاسلیک شو، د غړو هېوادونو ترمنځ په ازاد تګ راتګ هوکړه وشوه او ژمنه وشوه چې له کوم خنډ پرته به د خپلو خلکو پر مخ داخلي پولي خلاصې پرېږدي. وروسته نور هېوادونه هم له دې تړون سره یو ځای شول، چې تر ۲۰۰۸م کال پورې شنګن تړون ۱۵ غړي لرل. اتریش، بلجیم، ډنمارک، فنلینډ، فرانسه، المان، ایټالیا، یونان، لوګزامبورګ، هالند، ناروی، آیسلینډ، پرتګال، هسپانیه او سویډن د یاد تړون رسمي غړي دي (۳۴ : ۲۰۳-۲۰۵).

## د اروپا اتحادیې د جوړېدو تاریخي بهیر

له دویمې نړېوالې جګړې وروسته او هغه پېښې چې جنګ کې مخې ته راغلې او هغه تجربې چې په هغه مهال کې د اروپایي هېوادونو په وسیله احساس شوې، ځو اروپایي هېوادونو لېوالتیا درلوده چې یو له بله سره مرسته وکړي ترڅو د نورو احتمالي سختو

جګړو له رامنځته کېدو څخه مخنيوی وکړي . له همدې امله شپږ و هېوادونو په ۱۹۵۲م کال د " پولادو او ډبرو سکرو اروپايي ګډ بازار " بنسټ کېښود. هغوی غوښتل چې د پولادو او ډبرو سکرو چې دنظامي صنايعو لپاره غوره خام مواد وو ؛ دتوليد په کار کې يو له بل سره مرسته وکړي . همدارنګه د دوی هڅه وه تر څو له همدې لياري ددې مخه ونيسي چې يو هېواد بيا خپلې وسله خونې بياسمبال کړي ، دا د اروپا اتحاديې په رامنځته کېدو کې لومړی ګام و. دامرستې په ۱۹۵۸م کال کې نورې هم پراخې شوې او نور توکي ، خدمات او پانګه اچونې هم پکې راونغښتل شوې . وروسته دې ټولو مرستو د ګډبازار نوم خپل کړ.په ۱۹۹۳م کال کې ګډبازار د اروپا په اتحاديې واوښتو ، دامهال د غړو هېوادونولپاره ددې شونتيا برابره شوه تر څو وکړی شي په ګډه توګه د بيروني سياست په مسايلو کې اقدام وکړي . له هماغه مهاله تر ننه پورې ۱۵ نور هېوادونه هم داروپااتحاديې غړي شول .

## داروپا اتحاديه په ۱۹۹۰ يمه لسيزه کې

په ۹۰يمه لسيزه کې د اروپا په لويه وچه کې د پراخو بدلونونو او هغو اړيکو په اړه چې دې لوې وچې په نړيواله کچه ترسره کول شاهديو. دسړې جګړې ترختمېدو او د کمونستي بلاک له ټوټه کېدو و روسته په دې لويه وچه کې پراخ بدلونونه منځته راغلل . د ۹۰يمې ليسيزې په لومړيو کې دبرلين ديوال ونړول شو، داروپاسياسي وېش کم رنګه شواو کرښې له منځه ولاړې ، او ټول نړيوال ديوې واحدې ار وپاشاهدان شول. اروپايي هېوادونو دشوروي اتحاد په ټوټه کېدو سره داسې شرايط برابرکړل چې دخپل باندينې سياست د اولويتونوپه کې يې ټولپالنه راوسته او په همدې لسيزه کې اروپايي هويت بڼه بدله کړه . د ۱۹۹۱م کال په دسمبرکې دماسټر ريخت دتړون په لاسليک کولوسره د اروپا اتحاديه جوړه شوه او د اروپايي ټولنې ځای ناستې شوه. دماسټر ريخټ د تړون په لاسليک کولوسره اروپايي اتحاديه د اروپايي شورا تر څارنې لاندې د دولتونو او هېوادونو له مشرانو متشکله شوه. د ماسټر ريخت تړون داروپايي اتحاديې په تړون سره د اروپايي اتحاديې موسس تړون ګڼل کېږي ، چې داروپايي ټولنې د غړو هېوادونود دولتونو دمشرانو له خوا د

۱۹۹۱م کال په دسمبر کې تصویب او په ۹ د فبروري ۱۹۹۲م کې لاسلیک شوه او د ۱۹۹۵م کال راپدېخوا واجب الاجرا شوه (ایضاً : ۲۰۳-۲۰۵).

**داروپااتحادیه په ۲۰۱۰ لسیزه کې**

د اروپااتحادیې د اروپا د ختیځ او جنوب پرلور د پراختیا پروګرام وروسته له خبرو له لارې رامنځته شو.په ۲۰۰۴م کال کې لس نور هېوادونه لکه لهستان (پولنډ)، مجارستان ، چک جمهوریت، اسلوونی ، قبرس ، سلواکیا ، ستونیا ، لتوانیا او مالت د اتحادیې د شرایطوپه منلو سره د ۲۰۰۴م کال د مئ په لومړۍ نېټه ددې اتحادیې سره یوځای شول ، چې له امله یې داتحادیې د غړو شمېر ۲۵ ته پورته شو. د لسو ختیځو ، مرکزي او جنوبي اروپایي هېوادونو په یوځای کېدو سره د اروپایو والی تر پخوا ډېر زیات شو.

د ۲۰۰۷م کال له پیله بلغارستان ، او رومانیه ورسره یو ځای شول او کرواسي ، مقدونیه ، البانیه او ترکیه هم په وروستي پړاو کې وو.

https://fa.wikipedia.org/wiki/%D8%A7%D8%AA%D8%AD%D8%A7%D8%AF%DB%8C%D9%87_%D8%A7%D8%B1%D9%88%D9%BE%D8%A7

## ۲.۹. افریقایي ټولنه

افریقایي ټولنه ((African Union(AU)) په ۲۰۰۱م کال کې د افریقا د یو والي سازمان او د افریقا اقتصادي ټولنې د یوځای کېدو په پایله کې رامنځته شوه. د یادې ټولنې مرکز د ایتوپیا په پلازمېنې ادیس ابابا کې موقعیت لري. د افریقایي ټولنې تاریخ د افریقایي دولتونو ټولنې ته ورګرځي چې په پیل کې د یوه کنفرانس په کچه و، دغه کنفرانس دهغه مهال د غنا ولسمشر قوام نکرومه په نوښت په ۱۹۶۰مه لسیزه کې جوړ شوی و. له دې وروسته د افریقا د یووالي په موخه بل ګام په ۱۹۶۳م کال کې د ایتوپیا د وخت ولسمشر هایله سلاسي په هڅو د افریقا د یووالي ټولنې جوړول و. د یاد سازمان د جوړېدو اصلي موخه له افریقایي ولس څخه ملاتړ او د هغوی سیاسي ازادي وه ، چې دا مهال لا د اروپایي هېوادونو د استعمار او ښکېلاک

په بند کې وو. دغه راز د افریقا د یووالي ټولنې بله موخه، پر یوه سیاسي مرکز د ټولو افریقایي هېوادونو راټولول او متحد کول وو.

په ۲۰۰۲م کال کې د افریقا د یووالي سازمان پر اساسنامې له سره کتنه وشوه او په همدې کال کې د یوې غونډې په ترڅ کې چې د سویلي افریقا په دوربان ښار کې جوړه شوې وه، د همدې سازمان او د افریقا د اقتصادي ټولنې د اتحاد په پایله کې افریقایي ټولنه تأسیس شوه. دغه ټولنه له مراکش پرته ۵۳ افریقایي غړي هېوادونه لري.

افریقایي ټولنه په لاندې پنځه اصولو ولاړه ده.

۱. د غړو هېوادونو بشپړه برابري.

۲.د نورو په کورنیو چارو کې نه لاسوهنه.

۳.د افریقایي هېوادونو ټاکلو پولو ته درناوی او نه بدلون.

۴ـد خبرو، منځګړیتوب او جوړجاړي له لارې د افریقایي هېوادونو ترمنځ د ستونزو سوله ییز حل.

۵.د افریقایي هېوادونو لپاره د سیمه ییزو ځانګړنو ټاکل او د همکارۍ په موخه د سیمه ییزو جوړښتونو رامنځته کول.

دغه ټولنه د خپلو اوږد مهاله پلانونو په لړ کې په پام کې لري چې د افرو (Afro) په نوم ګډ افریقایي پولي واحد او افریقا له لویې وچې څخه د دفاع په موخه ځانګړې پوځ جوړ کړي (۳۴ : ۲۱۹– ۲۲۰).

دافریقایي ټولنې غړي هېوادونه په دې توګه دي : الجیریا، انګولا، بنین، بوتسوانا، بورکینا فاستو، بوروندای، کیپ ورد، کامرون، دمنځنۍ افریقا جمهوریت، چاد، کوموروس، کوټ ډی اوایر، دکانګو دموکراتیک جمهوریت، جیبوتي، مصر، استوایي کینیا، ایریتریا، ایتوپیا، ګابون، ګانا، ګامبیا، ګوینیا، کینیا، لېسوتو، لایبریا، لیبیا، مدغاسکر، مالاوي، مالي،

موریتانیا، موریتوس، مراکش، موزمبیق، نامیبیا، نایجر، نایجریا، کانګوجمهوریت، رواندا، عربو صحرا، ساوتومي او پرنس او سینګال. د یادولو ده چې مراکش په ۲۰۱۷م کال کې ددې ټولنې غړیتوب ترلاسه کړی.

## ۳.۹. عربو ټولنه

د عربو اتحادیه یا د عربي هېوادونو ټولنه( Arab leaque ) چې بشپړ نوم یې د عربو هېوادونو اتحادیه دی، په عربي ژبه کې ورته " الجامعه الدول العربیه " ویل کېږي ، یو نړیواله سیمه ییزه اتحادیه ده چې غړي یې د اسیا جنوب لوېدیځ اود افریقا د شمال عربان دي . دا اتحادیه د ۲۲ عرب ژبې هېوادونو لخوا جوړه شوې ده چې لس هېوادونه یې افریقایي او نور ۱۲ هغه یې اسیایي دي .

دعربو ټولنه ۱۹۴۵م کال کې د اردن، سوریې ، عراق، سعودي عربستان، مصر او یمن هیوادونو لخوا په قاره کې رامنځته شو. د عرب لیګ غړي سعودي عربستان، بحرین، عربي متحده امارات، سوډان، جیبوتي، کومور، سومالیه، فلسطین، اردن، مراکش، لیبیا، عراق، لبنان، سوریه، تونس، الجزایر، قطر، عمان، کویټ، مصر، موریتانیا او یمن دي. پردې سربیره وینزویلا، اریتره، برازیل او هند هېوادونه ددې ټولنې ناظرین دي.

په عربي ټولنه کې ټول هغه عربي هېوادونه شامل دي چې له دویمې نړیوالې جګړې وروسته خپلواک شول. یاده ټولنه اوسمهال ۲۲ غړي لري، چې په اسیا او افریقا کې پراته ټول عربي هېوادونه په کې شامل دي ( ۳۴ : ۲۲۵ ).

په ۱۹۷۹م کال کې مصر اسرایلو سره د جوړجاړي او د دیوید کمپ له امله له دې ټولنې ووېستل شو ، ددې ټولنې پلازمېنه له ۱۹۵۷ څخه تر ۱۹۷۹م کلونو پورې په قاهره کې و ، چې د مصر هېواد دتعلیق کېدو له امله یې پلازمېنه تونس ښار ته ولېږدول شوه . په ۱۹۸۹م کال کې د مصر هېواد بیا ځلې ددې ټولنې غړیتوب ترلاسه کړ او پلازمینه هم ورته بېرته ولېږدول شوه . (۱۳ : ۵۳۷).

دا اتحادیه ۲۲ اصلي او ۴ ناظر غړي لري . دسوریې غړیتوب په یاده اتحادیه کې له ۲۰۱۱م کال له نومبر څخه راپدیخوا په ځوړند حالت کې دی.



(۲.۹) نفشه : دعرب هېوادونو ټولنې غړي.

https://fa.wikipedia.org/wiki/%D8%A7%D8%AA%D8%AD%D8%A7%D8%AF%DB%8C%D9%87_%DA%A9%D8%B4%D9%88%D8%B1%D9%87%D8%A7%DB%8C_%D8%B9%D8%B1%D8%A8

د عرب لیګ د جوړېدو بنسټیزې موخې د عربي هېوادونو یو والی او په سیاسي ، اقتصادي ، فرهنګي، ټولنیزه ، روغتیایي، مخابراتي، معلوماتي او قضایي برخو کې د خپل منځي همکاریو پیاوړي کول دي. همدا راز د سیاسي فعالیتونو همغږي کول ، د خپلواکۍ او ملي واکمنۍ او د غړو هېوادونو د ګټو ساتنه او دفاع هم د عربي ټولنې له موخو څخه دي.

د ټولنې غړو په ۱۹۵۰م کال کې ناټو ته ورته په خپلو کې یو دفاعي تړون هم لاسلیک کړ. په کلتوري برخه کې په ۱۹۴۷م کال کې د عربي ټولنې د غړو ترمنځ د یوه تړون له مخې د یو علمي کنفرانس جوړول او د محصلینو او استادانو ترمنځ اړیکې د ټولنې له موخو څخه ګڼل کېږي.

دغې ټولنې په اقتصادي برخه کې هم مهم فعالیتونه تر سره کړي دي، چې له دې جملې د عرب پراختیایي بانک جوړول، د عربي سمندري شرکت پرانیستل، د عربو د نفتو د نل لیکې شرکت جوړول او اقتصادي مالي کمېسیون جوړول د یادولو دي .په ۱۹۵۳م کال کې د سوداګریزې راکړې ورکړې په برخه کې د غړو ترمنځ یو تړون هم لاسلیک شو (۳۴ : ۲۲۶).

## ۹.۴. د اروپا شورا

داروپا شورا چې په انګلسي کې ورته Council of Europe وايي ، د اروپا د یووالي لپاره ډېر ه پخوانۍ ټولنه ده ؛ چې په ۱۹۴۹م کال کې جوړه شوې . ددې شورا بنسټ د وګړو په واکمنتیا ، بشر حقوقو ، د قانون پلي کولو او له فرهنګي همکاریو څخه دګټې اخستنې پر پراختیا او غښتلتیا ایښودل شوی دی.

داروپا شورا (Council of Europe) د هغه خوځښت لاسته راوړنه وه چې د یوې متحدې او یو موټې اروپا په منظور د دویمې نړیوالې جګړې وروسته کلونو کې پیل شو . دا ټولنه چې یوه مشورتي سیاسي ټولنه ده ، په ۱۹۴۹م کال کې د لندن تړون په لاسلیک کولو سره چې د بنې لکس(Benelux) ، ډنمارک ، فرانسې ،آیرلینډ ، ایټالیې ، ناروې ، سوېډن او انګلستان هېوادونو په وسیله رامنځته شوه ، له هغه مهال را وروسته ټولټال ۴۷ هېوادونه لري د مالټا ، قبرس ، ترکیې او یو شمېر د مرکزي او ختیځې اروپا هېوادونو هم ددې شورا غړیتوب ترلاسه کړ . پټه دې نه وي چې یاده ټولنه د اروپا اتحادیې (European Union) څخه په بشپړه توګه توپیر لري . ددې سازمان غوره ارګان د وزیرانو شورا ده چې د غړو هېوادونو حکومتونو ته د مشورې او تصمیم نیولو ځواک لري . پارلماني اسامبله چې د غړو هېوادونو د پارلمانونو استازي په کې ګډون لري او رییس یې د یو کال لپاره ټاکل کېږي . ددې شورا مرکز د فرانسې په ستراسبورګ (Strasborurg) ښار کې ځای لري . ددې ټولنې رسمي ژبې انګلیسي او فرانسوي دي . ددې شورا فعالیتونه د"بشر حقوقو اروپایي محکمې" په جوړولو سره د بشر حقوقو په ساحه کې دي . دې سازمان د اروپایي هېوادونو تر منځ د

همکاریو او یو الي راوستو په موخه تر ننه پورې له ۸۰ زیاتو تړونونو په تصویبولو بریالي شوي دي (۴ : ۱۳۳، ۱۳۴).

د ۱۹۴۶ او ۱۹۴۷ م کلونو ترمنځ په اروپا کې بېلابېل سیاسي خوځښتونه رامنځته شول، چې په دې لړ کې د فدرالي اروپا ټولنه، د اروپایي لیګ ډله، د اروپایي متحده هېوادونو سوسیالیستي غورځنګ او د اروپا د یووالي لیبرالیست غورځنګ د یادولو وړ دي. دغو سازمانونو په ۱۹۴۸م کال په لاهای ښار کې کنګره جوړه کړه چې اوسمهال د اروپایي شورا (کنګرې) په نوم یادېږي. په یاده کنګره کې یوه ګډه اعلامیه تصویب شوه چې څلور مهم اصول په کې په لاندې توګه بیان شوي دي.

۱- د اروپا متحد کول، ۲- د بشري حقونو د میثاق تصویب، ۳- د اروپایي محکمې جوړول ۴- د پارلماني اسامبلې (غونډې) جوړول.

د لاهای کنګرې د پرېکړو پر اساس د اروپا شورا تأسیس شوه او په ۱۹۴۹م کال کې ددې شورا بنسټلیک په لندن ښار کې د غړو هېوادونو له خوا لاسلیک شو.

که څه هم په پیل کې د سازمان د واکونو پر سر د انګلستان، فرانسې او بلجیم ترمنځ د نظرتوپیر و، خو وروسته ستونزه حل شوه او په ۱۹۴۹م کال کې د لسو غړو (فرانسې، آیرلینډ، بلجیم، ډنمارک، ایټالیې، لوګزامبورګ، هالند، ناروې، سویډن او انګلستان) له خوا د اروپا د شورا اساسنامه لاسلیک شوه (ایضاً: ۱۳۳، ۱۳۴)..

ددې شورا غړي هېوادونه لکه المان، اذربایجان، البانیه، اندورا، اتریش، ارمنستان، اسپانیه، ستونیا، سلواکیه، اسلوني، انګلستان، اوکراین، ایټالیا، ایرلینډ، ایسلنډ، بلجیم، بوسنیا او هرزه ګونیا، بلغاریه، پرتګال، ترکیه، چک، ډنمارک، روسیه، رومانیه، سان مارینو، سوېډن، سوېس، فرانسه، فنلنډ، قبرس، کرواسیا، ګرجستان، لاتویا، لوګزامبورګ، لهستان (پولینډ) لیتوانیا، لختن شتاین، مالت، مجارستان، مقدونیه، مولداویا، ناروی، هالنډ، او یونان چک جمهوریت، صربستان، موناکو او مونتنګرو او ۸۰۰ ملیون وګړي لري (۱۳ : ۵۴۱).

همدارنګه دامریکا متحده ایالات ، کاناډا ، واتیکان ، مکسیکو او جاپان هېوادونه ددې شورا ناظرین دي . ددې شورا د ناستې ځای د فرانسې په ستراسبورګ کې دی ، اوفرانسوي او انګلسي يې رسمي ژبې دي . تر ۲۰۱۲م کال پورې ټول ۴۷ اروپايي هېوادونه له بلاروس ، قزاقستان او واتيکان څخه پرته ددې شورا غړي ګڼل کېدل . بلاروس او قزاقستان دبشر حقوقو د نقص په دليل سره ددې شورا د غړو سره نه دي يوځای شوي .



بنسټګر هېوادنه ورو ستي غړي

(۳.۹) نقشه : د اروپا شورا غړي

https://fa.wikipedia.org/wiki/%D8%B4%D9%88%D8%B1%D8%A7%DB%8C_%D8%A7%D8%B1%D9%88%D9%BE%D8%A7

وروسته يونان په ۱۹۴۹ ، ترکيه په ۱۹۵۰ ، جمهوري فدرالي المان په ۱۹۵۱، اتريش په ۱۹۵۶ ، آيسلينډ په ۱۹۵۷ ، قبرس په ۱۹۶۱ ، سويس په ۱۹۶۳ ، مالټ په ۱۹۶۵ ، پرتګال په ۱۹۷۶ ، هسپانيا په ۱۹۷۷ ، لېختن شتاين په ۱۹۷۸، سن مارينو په ۱۹۸۸او فنلينډ په ۱۹۸۹ کال کې له دې شورا سره يو ځای شول.

د یادونې وړ ده، چې په یاده شورا کې واتیکان‌یو او اسراییل دوه ځارونکي غړي لري .د اروپا شورا درې ځانګې لري‌لکه د د وزیرانو کمېټه، پارلماني غونډه او سکرتریت.

باید یادونه وکړو، چې د اروپا شورا داخلي جوړښت د نړیوال سازمان له داخلي جوړښت سره بشپړ توپیر لري. په زیاتره نړیوالو سازمانونو کې شورا او اسامبله د یوه ډیپلوماتیک کنفرانس بڼه لري چې د هېوادونو استازي په کې برخه اخلي او دا استازي له خپلو اړوندو هېوادونو څخه دستور اخلي، خو د اروپایي شورا د وزیرانو کمېټه او غونډه( اسامبله )د نړیوالو سازمانونو له اسامبلې او شورا سره ښکاره توپیر لري، ځکه یوازې د وزیرانو شورا عادي جوړښت لري او اسامبله د غړو هېوادونو له استازو څخه جوړه شوې ده.

۱ -**د وزیرانو کمېټه**: د وزیرانو کمېټه د غړو هېوادونو د بهرنیو چارو له وزیرانو څخه جوړه شوې ده چې یو کلاسیک ډیپلوماتیک مقام ګڼل کېږي. د وزیرانو کمېټې پرېکړې الزامي بڼه نه لري، خو د غړو هېوادونو له خوا تر تصویب وروسته لازمې دي.

۲ -**پارلماني اسامبله** : پارلماني اسامبله د شورا مشورتي ارګان دی. دا چې د پارلماني اسامبلې غړي نه د دولتونو او نه د ولس استازي دي، یعنې د غړو هېوادونو دغه استازي د خپلو ولسونو له لوري د اروپا پارلمان ته ټاکل شوي نه دي، نو له همدې امله هغه اصول چې د اسبامليې استازو ته ټاکل شوي، دا دي چې اسامبلې ته باید د غړو هېوادونو له مقننه مجلسونو څخه استازي وټاکل شي.

په پارلماني اسامبله کې د څوکیو ونډه د هر هېواد د استازو د شمېر په تناسب ټاکل کېږي. په اسامبله کې د څوکیو وېش د برابرۍ پر ډیپلوماتیک اصل نه دی ولاړ، بلکې دا وېش تر ډېره سیاسي برېښي چې نړیوال قدرتونه په کې زیاته برخه لري. وېش په لاندې ډول دی:

فرانسه، المان، برتانیا او ایټالیا هر یو ۱۸ څوکۍ

هسپانیا ۱۲ څوکۍ

ترکیه لس څوکۍ

بلجیم، پرتگال، یونان او هالند هر یو اوه څوکۍ

اتریش، سویډن او سویس هر یو شپږ څوکۍ

ډنمارک او ناروې ته څلور څوکۍ

آیرلینډ درې څوکۍ

آیسلینډ، قبرس، لوګزامبورګ، مالت او لختن ستاین ته درې څوکۍ

او سان مارینو ته دوه څوکۍ ځانګړې شوې دي.

۳ -**سکرتریت**: د اروپایي شورا سکرتریت له یوه منشي، دوه مرستیالانو او له یو شمېر نړیوالو کارکوونکو څخه جوړ شوی دی د شورا له خوا ترسره شوي مهم فعالیتونه یې په لاندې توګه دي:

په ۱۹۵۰م کال کې د بشري حقونو اروپایي تړون، په ۱۹۵۱م کال کې د اروپا د کرنیزې ټولنې جوړول، په ۱۹۵۷م کال کې د اختلافونو د سوله ییز حل تړون، په ۱۹۶۱م کې د اروپا د ټولنیز منشورتصویبول، په ۱۹۵۵ او ۱۹۷۷ کلونو کې د ترهګرۍ ضد مبارزې په برخه کې د ډوبلین او ستراسبورګ تړونونه، په ۱۹۸۷م کال کې د شکنجې، جزاګانو او غیر انساني کړنو د مخنیوي تړون، په ۱۹۸۵م کال کې د معماري اثارو د ملاتړ تړون لاسلیک او په ۱۹۸۶م کې د نادولتي نړیوالو سازمانونو د حقوقي شخصیت پېژندنې تړون لاسلیکول د شورا له مهمو فعالیتونو څخه دي (۳۶ : ۱۹۹، ۲۰۰).

## ۵.۹. لوېديځې اروپا اتحاديه

د لوېديځې اروپا اتحاديه چې په انګلسي کې ورته Western European Union وايي په ۱۹۴۸م کال کې دبروکسل د تړون په لاسليک د پنځه لوېديځو اروپايي هېوادونو ( انګلستان، فرانسې ،بلژيک ، هلنډ او لوګزامبورګ ) يعنې دپانګه لرونکو هېوادونوبلاک

لخوا د سوړ جنګ په اوږدو کې د چکوسلواکیا د ۱۹۴۸م کال په کودتا کې ستالیني شوروي ته په چکوسلواکیا کې د نه مداخلې له امله ؛دغه اتحادیه جوړه شوه.

https://fa.wikipedia.org/wiki/%D8%A7%D8%AA%D8%AD%D8%A7%D8%AF%DB%8C%D9%87_%D8%A7%D8%B1%D9%88%D9%BE%D8%A7%DB%8C_%D8%BA%D8%B1%D8%A8%DB%8C

بله موخه يې پر لوېديځ المان څارنه او د هغه هېواد په دويم ځلې له مسلح کېدو څخه مخنيوی و . ددې ټولنې کلتوري او ټولنيز فعاليتونه په ۱۹۶۰م کال کې د اروپا شورا ته وسپارل شول ، په داسې حال کې چې نظامي چارې يې ناټو ته وسپارل شوې . دا ټولنه او سمهال زياته فعاله نه ده .

ددې ټولنې نورې موخې په ختيځې ،لوېديځې او مرکزي اروپا کې د بشر حقوقو او سولې خوندي کول وو . د ۱۹۹۰م کال په پسرلي کې ددې ګروپ غړو هېوادونو په بن کې جلسه وکړه او پرېکړه وشوه ،تر څو د دموکراسۍ د تحکيم او د ازاد بازار د غښتلي کولو به همکاري کوي ( ۴ : ۱۵۵).

د ۲۰۱۱م کال د جون په ۳۰مه دا اتحاديه رسماً منحل شوه. د لوېديځې اروپا اتحاديه په لومړيو کې د شوروي اتحاد د تهديد پر وړاندې دفاعي اتحاديه ګڼل کېده ، خو دشمالي اتلس (ناټو) د تړون د جوړېدو وروسته چې ټول غړي يې په هغې کې ور ګډ شول ، هغه چارې چې په لومړيو کې د لوېديځې اروپا په غاړه وې ؛ دناټوپه غاړه شوې.



**Members • Associate members • Observers • Associate partners**

(۴.۹) نقشه: دلوېديځې اروپاټولنې غړي

https://fa.wikipedia.org/wiki/%D8%A7%D8%AA%D8%AD%D8%A7%D8%AF%DB%8C%D9%87_%D8%A7%D8%B1%D9%88%D9%BE%D8%A7%DB%8C_%D8%BA%D8%B1%D8%A8%DB%8C

## ۹ . ۶ . د مشترک المنافع ټولنه

د مشترک المنافع ټولنه يا د هم ګټو هېوادونو ټولنه چې پکې ازاد هېوادونه ګډون لري او تر ډېره پورې د اقتصادي ګډو علاقو پر بنسټ منځته راغلې . دا ټولنه په ۱۹۳۱م کال کې د ((دبرتانيې هم ګټو هېوادونو)) په نوم د هغو هېوادونو په اړه چې نوي ازادۍ ته رسېدلې و د همکارۍ د پاينبت او پر هغوی د انګلستان د نفوذ لپاره جوړه شوه ، د هېوادونو ورځ تر بلې د ازادۍ له امله ددې ټولنې نوم هم بدليدو . په ټوله کې ددې ټولنې غړي ددې ټولنې سره دوه ډوله اړيکې لري ، ځينې هېوادونه يې د انګلستان بادشاه يا ملکه دخپل هېواد د رهبر په توګه مني چې عمدتاً د هغوی حکومتي سيستم د ټولواک په وسيله پر مخ بېول کېږي چې عمومي ټولواک يې د انګلستان دبادشاه يا ملکې په وسيله ټاکل کېږي ، دويمه ډله هغه هېوادونه دي

چې د انګلستان بادشاه یا ملکه د مشترک المنافع ټولنې د ریسس په توګه په رسمیت پېژني او ددې ډول هېوادونو حکومتي نظام جمهوري وي (۱۳ : ۵۴۲).

دمشترک المنافع ټولنه ( هم ګټو هېوادونو اتحادیه ) چې په انګلسي کې ورته Commonwealth of Nation وايي له ۵۴ ازادو هېوادونو څخه جوړه شوې ده ، چې له موزمبیق او کامرون څخه پرته نور ټول یې د برتانیې مستعمره وو. دا هېوادونه د ځمکې دکرې د وچې برخې ۳۰ سلنه زمکه او ۳۰ سلنه وګړي لري . ددې ارګان د هېوادونو د همکارۍ چوکاټ د سنګاپور د اعلامیې پر بنسټ چې په ۱۹۷۱م کال کې دبشر حقوقو ، فردي ازادۍ ، برابرۍ ، دموکراسۍ ، ازادې سوداګرۍ ،نړیوالې سولې او څو اړخیزه همکارۍ لپاره یې بنسټ کېښودل شو.



(۵.۹) نقشه: مشترک المنافع (هم ګټو) هېوادونه.

https://fa.wikipedia.org/wiki/%D8%A7%D8%AA%D8%AD%D8%A7%D8%AF%DB%8C%D9%87_%DA%A9%D8%B4%D9%88%D8%B1%D9%87%D8%A7%DB%8C_%D9%85%D8%B4%D8%AA%D8%B1%DA%A9%E2%80%8C%D8%A7%D9%84%D9%85%D9%86%D8%A7%D9%81%D8%B9

دغه ټولنه د ۵۴ خپلواکو هېوادونو د خپلې خوښې ټولنه ده، چې مطلق اکثریت هېوادونه یې د انګلستان پخوانۍ مستعمرې دي. د انګلستان بادشاه په سمبولیکه توګه ددې ټولنې ریاست پر غاړه لري ، په داسې حال کې چې په عمل کې یې ریاست یو نفر

سکرتر جنرال په غاړه لري او مرکز يې په لندن کې موقعيت لري. دا ټولنه سياسي اتحاديه نه ده او په همدې بنسټ انګلستان هيڅ ډول کنترول پر دې ټولنې او يا يې پر غړو نه لري.

د کامنولت اصطلاح د لومړي ځل لپاره په ۱۸۸۴م کال د لارد روزبري Lard Rosebery په وسيله په جنوبي استراليا کې د اديلايد ښار د کتنې پر مهال وکارول شوه. له ۱۸۸۷م کال را وروسته د برتانيې د لومړيو وزيرانو او د هغو د استعمارلاندې هېوادونو لخوا کنفرانسونه جوړېدل. يو له دې کنفرانسونو څخه په ۱۹۲۶م کال کې په لندن کې جوړ شو چې د بالفور (Balfour) د اعلاميې په خپرولو پای ته ورسېد (دې اعلاميه د بالفور د اعلاميې سره چې په ۱۹۱۷م کال کې خپره شوې چې په کې برتانيې په فلسطين کې د يهودي دولت له تشکيل څخه خپل ملاتړ ښودلی و ؛ توپير درلود). په دې اعلاميه کې ويل شوي و چې برتانيه او د هغې دومينين (Dommenion) هېوادونه يو له بل سره برابر حقوق لري او يو د بل په داخلي او بهرونيو چارو کې هيڅ ډول کنترول نه لري، سره له دې چې په دې ټولو هېوادونو خپله وفاداري د برتانيې د تاج وتحت ته وښوده او د برتانيې په مشترک المنافع ټولنه کې يو له بل سره راغونډ شول. ددې اعلاميې محتويات بالاخره په ۱۹۳۱م کال کې په عمل کې پياده شول او په دې توګه د برتانيې د مشترک المنافع ټولنه منځته راغله.

له دويمې نړيوالې جګړې وروسته برتانيه په ډيرې چټکۍ سره مخ په زوال وه، هېوادونه يو په بل پسې ازادۍ ته ورسېدل، او ددې ټولنې غړي هېوادونه هم په کې ازاد شول. په ۱۹۴۹م کال کې ددې ټولنې نوم هم د مشترک المنافع ټولنې ته واوښت. برما په ۱۹۴۸م کال او عدن په ۱۹۴۷م کال کې هغه هېوادونه وو چې تازه ازادۍ ته رسېدلي وو او د خپلواکۍ اخېستلو وروسته دې ټولنې سره يو ځای نه شول.

د تحت الحمايه او تحت قيموميت سيمو څخه مصر په ۱۹۲۲م، عراق په ۱۹۳۲م، اردن په ۱۹۴۶م، اسراييل په ۱۹۴۸م، سوډان په ۱۹۵۶م، کوېټ په ۱۹۶۱م، بحرين په ۱۹۷۱م، عمان په ۱۹۷۱م، قطر په ۱۹۷۱م او عربي متحده امارات په ۱۹۷۱م کال کې هغه هېوادونه وو چې ددې ټولنې غړيتوب يې و نه منلو. د آيرلينډ جمهوريت وروسته له هغې چې په ۱۹۴۹م کال کې په جمهوريت بدل شو؛ له دې ټولنې ووتو.

له ۱۹۵۰م کال راوروسته د هند د وړاندیز پر بنسټ غړو هېوادونو ته حق ورکړل شو چې د انګلستان بادشاه د کامنولت د رییس په توګه له منلو پرته هم کولی شو چې په دې ټولنه کې خپل غړیتوب وساتي. سربېره پردې چې ددې ټولنې په ۱۶غړو هېوادونو ( انتیګوابار بودا، بهاما، بلیز، استرالیا، کاناډا، جمیکا، نوی زیلاند، پاپوایو ګینې، سلیمان ټاپوګانو، باربادوس، ګرینا دا، سنت کیتس ونیوس، سنت لوسیا، سنت وینسنت و ګرینادین، تولاو او انګلستان) کې اوس هم د انګلستان بادشاه ددې دولتونو د رییس په توګه منل شوی.

په ټولیزه توګه د نړۍ د نفوسو څلورمه برخه ددې ټولنې اړوند هېوادونو کې چې د نړۍ ۲۱ سلنه خاوره جوړوي او د ۱۶سلنې په اندازه د نړۍ اقتصاد په واک کې لري؛ ژوند کوي.

ددې ټولنې یوازینی هېواد چې پخوا د انګلستان مستعمره نه و؛ موزمبیق دی چې په ۱۹۹۵م کال کې ددې ټولنې سره یو ځای شو. د زمبابوی هېواد په ۲۰۰۳م کال ورڅخه ووتو، او د فیجي غړیتوب په ۲۰۰۶م کال کې د تعلیق (ځوړند ) حالت کې شو.

ددې ټولنې تر ټولو غوره د تصمیم نیولو مرجع ددې هېواد د حکومتونو د رییسانو جلسه(Commonwealth Head Of Government Meeting (CHOGM ده. چې هر کال کې یو ځلې ددې ټولنې په یو غړي هېواد کې دایرېږي او په کې د نړۍ پر غوره مسایلو اوږدې خبرې کېږي.

ددې ټولنې لومړنۍ جلسه (ناسته) په ۱۹۷۱م کال کې د سنګاپور په ښار کې او د ۲۲ مه جلسه یې د ۲۰۱۱م کال په اکتوبر کې د استرالیا په پرت (Porth) ښار کې شوې وه. همدا راز ددې ټولنې د ۲۰۱۳م کال جلسه په سریلانکا، او د ۲۰۱۵م کال جلسه په موزمبیق کې وشي. د هرارې (Harare) په اعلامیه کې چې په ۱۹۹۱م کال کې لاسلیک شوه، ددې ټولنې ژمنه پر دموکراسۍ او پر مناسبو او مطلوبو حکومتونو وه چې د تایید وړ شوه. او

داسې پریکړه وشوه تر څو د هغو هېوادونو پر وړاندې چې ددې تصمیم پیاده کولو څخه سرغړونه وکړي ، ددې ټولنې د غړو هېوادونو له لوري به ورسره په ګډه کړنې کېږي .

ددې ټولنې هغه غړي هېوادونه چې د انګلستان بادشاه د دوی په هېواد کې د دولت د رییس په توګه نه پېژندل کېږي له بنګله دېش ، بوتسوانا ، بروناى ، کامرون ، قبرس ، ګامبیا ، ګانا ، ګیانا ، هند ، کینیا ، کریباتي ، لیسوتو ، مالاوی ، مالیزیا ، مالدیو ، مالتا ، موریتس، موزامبیق ، نامیبیا ، ناورو ، نایجریا ، پاکستان ، ساموا ، سیشلز، سیرالیون ، سنګاپور ، جنوبي افریقا ، سریلانکا ، سوازیلینډ ، تونګا ، تانزانیا ، ترینیندادوباګو ، یوګندا ، او وانواتو څخه عبارت دي ( ۴ : ۱۵۴، ۱۴۶).

اوسمهال دویمه الیزابت ددې ټولو **۵۳** غړو هېوادونو ترمنځ د یووالي استازې ده . په دې اداره کې غړیتوب د سیاسي اتحاد په بڼه نه دی ، او ددې ادارې دیوې مشرې په توګه ددویمې الیزابت منل ، له برتانیې څخه د غړو هېوادونو د سیاسي پلوي په معنی نه دی.

له برتانیې پرته چې دویمه الیزابت خپله پکې حضور لري ، ددې اتحادیې په نورو غړو هېوادونو کې استازي معمولاً د هغه هېواد د لومړي وزیر په وړاندیز او د دویمې الیزابت په خوښه ټاکل کېږي .

https://fa.wikipedia.org/wiki/%D8%A7%D8%AA%D8%AD%D8%A7%D8%AF%DB%8C%D9%87_%DA%A9%D8%B4%D9%88%D8%B1%D9%87%D8%A7%DB%8C_%D9%85%D8%B4%D

## ۹.۷. د ازادو مشترک المنافع هېوادونو ټولنه

د ازادو مشترک المنافع هېوادونو ټولنه هغه ټولنه ده چې په **۱۹۹۱** م کال کې د شوروي اتحاد د ړنګېدو سره په یو وخت د سپینې روسیې د منسک په ښار کې د روسیې ، سپینې روسیې ، او اوکراین هېوادونو لخوا یې بنسټ کېښودل شو او د قزاقستان د الماآتا د بیانیې د ګټې پر بنسټ چې **۱۵** هېوادونو هغه لاسلیک کړی و ؛ رسمیت یې پیدا کړ .

ګرجستان هم ددې ټولنې سره په **۱۹۹۳** م کال کې یو ځای شو . د شوروي اتحاد د ړنګېدو له مخې له **۱۵** جمهوریتونو څخه یوازې د بالتیک حوزې هېوادونو یعنې استونې ،

لاتويا او ليتواني په دې ټولنه کې له ورګډېدو څخه ځان ګوښه کړ. ددې ټولنې مقر د سپينې روسيې په منسک ښار کې دی (۱۶: ۵۴۱).

دا ټولنه ((Commonwealth of independent states (CIS)) د شوروي اتحاد د ړنګېدو په درشل کې د دسمبر په ۷ مه ۱۹۹۱م کال کې د شوروي اتحاد د ۱۱ پخوانيو جمهوريتونو په يو ځای کېدو سره منځته راغله، چې البته ځانګړې او ټاکلې موخې يې درلودې. په ټوله کې دې هېوادونو ويره درلوده چې يو له بله د بېلتون له امله يې ښايي اقتصاد هم سقوط وکړي.

د بالتيک بحيرې درې جمهوريتونو لکه استونيا، لتويا او لېتوانيا چې د يو څه وخت لپاره د شوروي اتحاد سره يو ځای او ځانونه يې د اروپايي هېوادونو له ډلې ګڼل؛ په دې سازمان کې يې له ګډون څخه مخ واړولو. ګرجستان چې داخلي جنګونو په کې پايښت درلود، يو وارې په ۱۹۹۳م کال کې ددې ټولنې سره يو ځای شو، مګر په ۲۰۰۹م کال کې يو ځل بيا له دې ټولنې بېل شو.

د مرکزي اسيا پنځه هېوادونه چې ددې سازمان د غړو ترمنځ د اقتصادي همکارۍ له سست پرمختګ څخه ناخوښي وو، د ۱۹۹۳م کال په جنوري کې د مرکزي اسيا هېوادونو ګډ بازار (Centeral Asia CommonWealth) يې جوړ کړ.

ددې سازمان د بريالېتوب زياته هيله په راتلونکې کې نه لېدل کېده، خو په هر صورت په اوس مهال کې د ارمنستان، اذربايجان، بلاروس، قزاقستان، قرغزستان، مولدوا، روسيې، تاجکستان، او ازبکستان هېوادونه ددې ټولنې رسمي غړي دي او يوکراين او ترکمنستان ددې ټولنې غير رسمي غړي دي. ددې ټولنې مرکز د سپينې روسيې د منسک په ښار کې دی (۴: ۱۳۵، ۱۳۶).

## ۸.۹. د فارس خلیج د همکاریو شورا

د فارس خلیج همکارۍ شورا یا Cooperation Council of (Persian) Gulf هغه ټولنه ده چې دفارس خلیج جنوبي غاړو کې د پرتو شپږو هېوادونو لخوا په ۱۹۸۱م کال کې منځته راغله ، پلازمینه یې د سعودي عربستان په ریاض ښار کې ده. ددې ټولنې غړي د عربي متحده اماراتو ، بحرین ، سعودي عربستان ، عمان، قطر او کویټ څخه عبارت دي . دا ټولنه په کال کې یو ځلې عادي غونډه کوي او په اضطراري حالاتو کې د دوه یا زیاتو غړو هېوادونو په غوښتنه ښایي غونډه وکړي ( ۱۳ : ۵۴۱ ) .

دفارس خلیج دهمکاریو شوراچې په عربي کې ورته مجلس التعاون الدول الخلیج العربیه وایي ، لنډ نوم یې د خلیج همکاریو شورا دي . دغه شورا چې سیاسي – سوداګریز بلاک دی د فارس خلیج چاپېره هېوادونو اود سیمې عربي هېوادونو څخه جوړه ده ، چې غړي یې ګډې ټولنیزې او اقتصادي یوځای والي په موخه جوړه شوې ده . بله مهمه موخه یې د غړو هېوادونو تر منځ تر ۲۰۱۰ م کال پورې دیو پولي واحد رواجول و؛ چې ونه شو .

https://fa.wikipedia.org/wiki/%D8%B4%D9%88%D8%B1%D8%A7%DB%8C_%D9%87%D9%85%DA%A9%D8%A7%D8%B1%DB%8C_%D8%AE%D9%84%DB%8C%D8%AC_%D9%81%D8%A7%D8%B1%D8%B3

### د فارس خلیج د همکارۍ شورا موخې

د داخلي نا امنیو پر وړاندې د غړو متقابله همکاري او مرسته .

د بېرونیو ګواښونو پر وړاندې د غړو ګډه همکاري او مرسته .

په فارس خلیج کې د امنیت د ټینګښت لپاره هلې ځلې .

د غړو هېوادونو په بهرني سیاست کې همغږي .

د غړو هېوادونو په دفاعي سیاست کې همغږي .

اقتصادي همکارۍ .

د غړو ترمنځ د ګډ بازار رامنځته کول .

په صنعتي چارو کې همغږي .

په ټولنيزو او فرهنګي چارو کې همکاري ( ۳۴ : ۲۲۵ ، ۲۲۶ ) .

اوسمهال ددې شورا دغه شپږ غړي ( سعودي عربستان ، بحرين ، عربي متحده امارات ، قطر ، عمان او کويټ ) يو له بله سره همکار دي .

https://fa.wikipedia.org/wiki/%D8%B4%D9%88%D8%B1%D8%A7%DB%8C_%D9%87%D9%85%DA%A9%D8%A7%D8%B1%DB%8C_%D8%AE%D9%84%DB%8C%D8%AC_%D9%81%D8%A7%D8%B1%D8%B3

## ۹.۹. د اسيا جنوب ختيځ هېوادونو ټولنه

د اسيا جنوب ختيځ هېوادونو ټولنه ( Association of Southeast Asian Nations (ASEAN) په ۱۹۶۷ م کال کې د بنکاک په ښار کې د اسيا د جنوب ختيځ هېوادونو د اقتصادي پراختيا د چټکتيا او د ثبات په موخه تاسيس شوه ، او پلازمېنه يې د اندونيزيا په جاګرتا کې ده . د اندونيزيا ، تايلنډ ، سنګاپور ، فليپين او ماليزيا هېوادونه يې بنسټ ايښودونکي دي . همدارنګه د بروناى ، کمبوديا ، لاوس ، برما ، او ويتنام هېوادونه هم ورسره يو په بل پسې يو ځاى شول . نوې پاپوا ګينه هم له ۱۹۸۴ م کال راپدېخوا ددې ټولنې ناظر په توګه په غونډو کې ګډون کوي ( ۱۳ : ۵۳۸ ).

دجنوب ختيځ اسيا هېوادونو اتحاديه چې زياتره دآسه ان (Asean) په نوم پېژندل کېږي ، د اسيا په جنوب ختيځ کې يوه نړيواله سياسي ، اقتصادي او فرهنګي ټولنه ده . دا اتحاديه د ۱۹۶۷م کال د اکتوبر په اتمه د تايلنډ ، اندونيزيا ، ماليزيا ، سنګاپور او فلپين لخوا په ويتنام کې د کمونستانو د پراختيا او د يادو هېوادونوپه داخل کې د غوغا ګانو د مخنيوي په پار جوړه شوې وه .

د ۱۹۷۶م کال د ناستې وروسته دې ټولنې تر ډېره د اقتصادي همکاریو سیاست ته مخه کړه او هېوادونه ( آن چې په خپله وېتنام کې کمونست رژیم ) هم ددې ټولنې غړی شو. ددې ټولنې غړي کلنۍ جلسې لري .

http://tkg.af/%D8%A7%D8%AA%D8%AD%D8%A7%D8%AF%DB%8C%D9%87%DA%A9%D8%B4%D9%88%D8%B1%D9%87%D8%A7%DB%8C%D8%AC%D9%86%D9%88%D8%

دغه ټولنه(Association of South Asian Nations(ASEAN)) د اسیا یوازینۍ ټولنه ده چې د امریکایي هېوادونو ټولنې ، د افریقا یو والي ټولنې او یا د عربو ټولنې سره د پرتلنې وړ ده . دا سازمان د ۱۹۶۷م کال د اګست په میاشت کې د اندونیزیا ، مالیزیا ، فلیپین ، تایلینډ او سنګاپور لخوا د تایلینډ په مرکز بنکاک کې جوړ شو . د برونای هېواد ددې د ازادۍ وروسته په ۱۹۸۴م کال کې ددې سازمان غړی شو . ددې سازمان مرکزي دفتر په جاکارتا کې دی .

ددې سازمان بنسټیزه موخه په لومړیو کې د اسیا په جنوب ختیځ کې د کمونېزم د نفوذ مخه نېول و ، تر هغې پورې چې د اسیا په جنوب ختیځ کې کمونستان په ۱۹۷۵م کال کې مسلط شول یو څه کمو اقتصادي همکاریو د فعالیتونو پروسه یې په مخ وړله . له دې تاریخ وروسته دې سازمان په سیاسي ، ټولنیزو او کلتوري برخو کې خپلې کړنې ګړندۍ کړې . دا سازمان چې اوس هم ځانګړې اساسنامه نه لري د یو شمیر ځانګړو کمېټو څخه جوړ دی چې په مختلفو هېوادونو کې موقعیت لري .

اساسي ارګان یې د غړو هېوادونو د باندینیو چارو وزیرانو په کچه د سرانو جلسه ده چې له ۱۹۷۶م کال را وروسته هر کال په یو غړي هېواد کې دایره شوې ده . د سرانو لومړنۍ جلسه یې په ۱۹۷۶م کال کې په اندونیزیا کې او شلمه جلسه یې د الفبا په ترتیب سره په ۲۰۱۲م کال کې په کمبودیا کې دایره شوې وه .

په ۱۹۹۵م کال کې ویتنام هم ددې سازمان غړی شو ، په ۱۹۹۷م کال کې د جنوبي کوریا ، لاوس او برما هېوادونه او په ۱۹۹۹م کال کې کمبودیا او بالاخره په ۲۰۰۰م کال کې

شمالي کوریا هم ددې سازمان غړیتوب واخیست. اوسمهال لس هېوادونه لکه برونای، کمبودیا، اندونیزیا، لاوس، مالیزیا، برما، فلیپین، سنګاپور، تایلینډ او ویتنام ددې سازمان دایمي غړي دي. په داسې حال کې چې پاپوا نیوګیني د مرستیال غړي په توګه په کې منل شوی دی. په اوسمهال کې دغه سازمان په ۴،۵ کېلو متر مربع ساحه کې د ۶۰۰ ملیون وګړو په ۱۸۰۰ ملیارد ډالرو نا خالصو کورنیو تولیداتو(GDP) او د ۸۵۰ ملیارد ډالرو په ارزښت ددې سازمان د غړو هېوادونو د باندینۍ سوداګرۍ په لرلو سره پایښت لري، چې په ګډه توګه د امریکا متحده ایالاتو، چین، جاپان، جرمني، فرانسې، برازیل، انګلستان او ایټالیې وروسته نهم نړیوال اقتصاد جوړوي. ددې سازمان سکرتر جنرال په ازادو سیالیو کې د پنځو کلونو لپاره ټاکل کېږي. د هند، چین، جنوبي کوریا، استرالیا او نوي زیلاند هېوادونه ددې سازمان په ناستو کې د ناظرینو په بڼه ګډون کوي.

له سولې او ټینګښت څخه ملاتړ او عدالت، حکومت او قانون ته درناوی هغه موخې دي چې د ۲۰۲۰م کال لپاره په پام کې نېول شوي دي. ددې سازمان مشرانو په ۲۰۰۳م کال کې د آسیان امنیتي ټولنې، د آسیان په اقتصادي ټولنې او د آسیان په کلتوري ـ ټولنیزې ټولنې په جوړولو هوکړه کړې. په ۱۹۹۲م کال کې د آسیان ازادې سوداګرۍ سیمه Asean free trade area (AFTA) جوړه شوه او ۲۰۰۵م کال د جنوري په لومړۍ ورځ ګمرکي تعرفې په ۹۹ سلنه تولیداتو ددې سازمان په شپږو غړو هېوادونو (برونای، اندونیزیا، مالیزیا، فلیپین، سنګاپور او تایلینډ) له ۵ سلنې څخه کمې ته راښکته شوې، چې له هغې ډلې پر ۶۰ سلنه ددې تولیداتو ګمرکي محصول په بشپړه توګه له منځه تللی و، او په ټولو غړو هېوادونو ( کمبودیا، لاوس، برما، او ویتنام) ګمرکي تعرفې د هغوی پر ۸۱ سلنه تولیداتو له پنځو سلنې څخه کمې ته راښکته شوې ( ۴ : ۱۳۷، ۱۳۸).

۲۰۱۵م کال کې د اسیا جنوب ختیځ هېوادونو اتحادیې(Asean) لپاره دځانګړي ارزښت لرونکی و، دوی پتیلې وه په همدې کال کې د اسیا جنوب ختیځ هېوادونو لس غړي د ګډ بازار او ټولنې په رامنځته کېدو سره ټولنیز غوره مسایل لکه امنیتي، فرهنګي او اقتصادي برنامې یو له بله سره شریکې کړي.

## ۹. ۱۰. د سویلي اسیا د سیمه ییزې همکارۍ اتحادیه (سارک)

دا اتحادیه((South Asia Assocation for Reginal Cooperation (SAARC) چې په سیمه ییزه کچه غوره سازمان ګڼل کېږي ، د ۱۹۸۳م کال د اګست په میاشت کې د نیپال او بنګله دېش په نوښت جوړ شو . حال دا چې په دې موخه د سویلي اسیا هېوادونو د باندینیو چارو وزیرانو ناستې په ۱۹۸۱م کال کې په کولمبو کې او په ۱۹۸۳م کال کې په نوي ډهلي کې جوړې شوې وې .

ددې هېوادونو مشرانو د ۱۹۸۵م کال په دسمبر کې په ډاکه کې ملاقات وکړ ، ددې سازمان اوه غړي یعنې بنګله دېش ، نیپال ، هند ، بوټان ، پاکستان ، سریلانکا او مالدیو هر یو د بېلابېلو خوشبینیو سره خو په محتاطانه توګه ددې سازمان سره یو ځای شول ، ځکه دې هېوادونو په خپلو منځونو کې د پخوانیو اختلافاتو له امله کومه سیمه ییزه همکاري نه درلوده . سازمان دا چې د کولمبو پلان او یا Economic and Social Commission for Asia and Pacific (ESCAP) چې پورته یادو شوو غړو په هغې کې ګډون درلود ، ډېر ستر او د متعددو غړو لرونکی و ؛ چې شته ستونزو یې په کې سرنه شو راپورته کولی( ۴ : ۱۳۹، ۱۴۰).

ددې سازمان پالیسي جوړوونکي د وزیرانو شورا وه ؛ چې په کال کې دوه ځلې دایرېده ، او د سکرتریت په ګډون ۱۲ ګونو بېلابېلو کمېټو د کړنو څارنه یې کوله . دغه سازمان د ۱۹۸۷م کال په جنوري کې د نیپال په مرکز کتمندو کې تاسیس شو ، او یو بنګله دیشی دیپلومات یې د دوو کلونو لپاره د سکرتر جنرال په توګه ورته مشر وټاکلو . دغه سازمان د جوړېدو له لومړي کال څخه فعال و . پر کنوانسینونو له جوړېدو سربېره د تروریزم او مخدره دواګانو سره د مبارزې ، د خوراکي توکو او کنفرانسونو په جوړولو او د سیمه ییزو ستونزو د حل په اړه د علمي څېړنو تر سره کولو او بالاخره د سیاسي او اقتصادي همکاریو د یو والي جوړولو په ځانګړي توګه له ۱۹۹۱م کال راوروسته وختونو کې فعاله وه .



(۶.۹) نقشه: دسویلي اسیا د سیمه ییزې همکارۍ اتحادیه.

https://fa.wikipedia.org/wiki/%D8%A7%D8%AA%D8%AD%D8%A7%D8%AF%DB%8C%D9%87_%D9%87%D9%85%DA%A9%D8%A7%D8%B1%DB%8C%E2%80%8C%D9%87%D8%A7%DB%8C

ددې ټولنې بنسټیزې موخې د ملګرتیا د روحیې غښتلي کول، باور او تفاهم او همدارنګه د ژوند د تامین لپاره هڅې کول او بالاخره د فرهنګي، ټولنیزې او اقتصادي لارې د اسیا د جنوب وګړو د ژوند کچې لوړول ښودل شوي دي. په دې سازمان کې همکاري د هېوادونو تر منځ پرنسیپونو ته په درناوي، ځمکنې تمامیت، سیاسي ازادۍ او غړو هېوادونو په داخلي چارو کې د نه لاس وهنې پر بنسټ ولاړه ده.

د سارک (SAARC) سکرتریت د کټمنډو په ښار کې موقعیت لري. سکرتر جنرال د غړو هېوادونو د وزیرانو شورا له خوا د درې کلونو لپاره د الفبا په ترتیب سره ټاکل کېږي. سکرتر جنرال اوسمهال نژدې اوه مرستیالان لري چې د هر غړي هېواد څخه یو یو دی. ددې هېوادونو د مشرانو جلسې له ۱۹۸۵م کال را وروسته په ترتیب سره په ډاکه، بنګلور، کټمنډو، اسلام‌آباد، ماله، کولمبو، ډاکه او نوي ډهلي کې تر سره شوي دي.

په دې سازمان کې د افغانستان دایمي غړیتوب د ۲۰۰۶م کال د اګست میاشتې ددې سازمان غړو هېوادونو د باندنیو چارو وزیرانو په ناسته کې چې په بنګله دېش کې وشو؛ تایید شو. چې په اړه یې وروستی تصمیم د ۲۰۰۷م کال د اپریل په میاشت کې په هند کې ونېول شو.

په ټولیزه توګه ددې سازمان ټول غړي د افغانستان په ګډون د ۱۵ سلنې کرنیزې ځمکې ، او د نړۍ د ۲۳ سلنه نفوسو په درلودلو سره په نننۍ نړۍ کې غوره رول لري. سره له دې چې یوازې دوه سلنه نا خالصه داخلي تولید (GPD) او ۲.۱ سلنه نړیواله سوداګري دې هېوادونو پورې تړاو لري. ددې سازمان د اساسنامې مطابق، ددې هېوادونو د مشرانو غونډې یا ناستې هر کال باید په یو غړي هېواد کې جوړې شي، مګر عملاً دا ډول غونډې په یوه اوږده وقفه یې موده کې ترسره شوې دي. لومړنۍ د مشرانو ناسته یې په بنګله دېش کې په ۱۹۸۵م کال کې او ۱۷مه یې په ۲۰۱۱م کال کې په مالدیو هېواد کې جوړه شوې وه. پټه دې نه وي چې سربېره پر دې سازمان څلور هېوادونو (بنګله دېش، بوټان، هند او نیپال) د دوی ترمنځ د همکارۍ د پراختیا په پار په ۱۹۹۶م کال کې د South Asian Growth Quadrangl (SAGQ) او د ۲۰۰۳م کال په دسمبر کې بیا افغانستان، پاکستان او د مرکزي اسیا ځینو جمهوریتونو د دوی ترمنځ د همکارۍ د پراختیا په موخه د Sub Regional Economic Cooperation in South and Central Asia (SECSCA) ټولنه جوړه کړه.

د ۱۹۹۳م کال را وروسته د غړو هېوادونو ترمنځ د ګمرکي امتیازي تعرفو په برخه کې ترتیبات ونیول شول. سره له دې چې ددې سازمان د ځینو غړو ترمنځ اختلافاتو شتون درلود ؛ ناظرینو د پام وړ متوقعه پایلې په کې لېدلې. دا چې د هند هېواد ددې سازمان یو ستر هېواد ګڼل کېږي، په راتلونکې کې ددې سازمان په بریالیتوب کې یې رول څخه سترګې نه شو پټولی. ددې سازمان بل غړی پاکستان دی چې د هند سره یې د سیالۍ له امله ددې سازمان لپاره په سیمه ییزه کچه ستونزه زېږولې دي. پاکستان په ۱۹۹۷م کال کې اعلام کړه چې غواړي یوه سیمه ییزه واقعي ګروه بندي د جنوبي اسیا د ازادې سوداګرۍ په نوم South Asian Free Trade Area ( SAFTA) تاسیس کړي. ددې سازمان د تاسیس په برخه کې توافق، په ۲۰۰۴م کال کې په اسلام آباد کې ددې هېوادونو د مشرانو په ۱۲مه غونډه کې رامنځته شو چې پرېکړه شوې وه د ۲۰۰۶م کال له جنوري به عملي شي. د استرالیا، چین، د اروپا اتحادیه، ایران، موریشس، میانمار، جنوبي کوریا او د امریکا متحده ایالات په دې اتحادیه کې د ناظرینو په څېر غړیتوب لري (۴ : ۱۳۹، ۱۴۰).

د سویلي اسیا د سیمه ییزې همکارۍ سازمان د جوړېدو وړاندیز په ۱۹۷۰م لسیزه کې د بنګله دېش د ولسمشر ضیا نور رحمان له خوا وشو. د بنګله دېش دغه وړاندیز په ۱۹۸۳ م کال کې د کولمبو په غونډه کې د هند، پاکستان او سریلانکا له هرکلي سره مخ شو. د همدې کال په اګست میاشت کې د نوي ډیلي په سرمشریزه کې د بنګله دېش، سریلانکا، هند، پاکستان، نیپال، مالدیف او بوتان هېوادونو له خوا د سارک سازمان د جوړېدو اعلامیه لاسلیک شوه او غړو هېوادونو هوکړه وکړه چې په لاندې پنځو برخو کې به په ګډه همکاري کوي.

۱. دکرنې او کلیوالو سیمو پراختیا.

۲. اړیکې، علم، ټکنالوژي او هوا پېژندنه.

۳. خلکو ته روغتیایي خدمات.

۴. ټرانسپورټ.

۵. د انساني سرچینو لوړول.

افغانستان په ۲۰۰۵م کال کې د سارک سازمان څارونکی غړی شو او په ۲۰۰۷م کال کې یې بشپړ غړیتوب ترلاسه کړ.

امریکا په ۲۰۰۵ او چین په ۲۰۰۶م کال کې او دغه راز جاپان، سویلي کوریا او اروپایي ټولنه هم په سارک کې څارونکي غړي شول.

د سارک سازمان جوړښت ډېر ساده دی او یوازې د غړو هېوادونو د مشرانو او بهرنیو چارو وزیرانو په کچه یو کنفرانس او همدا راز یو سکرتریت لري، چې د نیپال په کتمندو ښار کې دی.

د سارک سازمان په ۱۷مه سرمشریزه کې د غړو هېوادونو ترمنځ یو هوکړه لیک لاسلیک شو چې له مخې یې په سیمه کې په ګمرکي تعرفو کې کموالی راغی. همدا راز د

سارک په ۱۲مه سرمشریزه کې چې په ۲۰۰۴م کال په اسلام اباد کې جوړه شوې وه، دسویلي اسیا د ازادې سوداګرۍ تړون( سفټا )لاسلیک شو او په ۲۰۰۶م کال کې د اجرا وړ وګرځېد.

په ۲۰۰۵م کال کې غړو هېوادونو د یوه پولي صندوق پر جوړولو هم هوکړه وکړه او د صندوق د چارو د پرمخ بیولو لپاره د یوې ځانګړې مالي ځانګې د جوړولو وړاندیز وشو. دغه راز په ۲۰۰۵م کال کې غړو هېوادونو هوکړه وکړه چې د ۲۰۱۵م کال ترپایه د سارک د غړو هېوادونو ټول صادرات به په ګمرکي معافیت کې شامل کړي.

**د سارک د غړو هېوادونو پر مخ پرتې ننګونې**

۱.جمو او کشمیر پر سر د هند او پاکستان ترینګلې اړیکې .

۲.د هند او بنګله دېش ترمنځ د کینک رود د اوبو د وېش پر سر ستونزه .

۳.د تامیل پړانګانو د بېلتون پاله غورځنګ پر سر د هند او سریلانکا ستونزه .

۴.د نفوسو زیاتوالی ، اقتصادي کمزروي او د منابعو نشتوالی.

۵. په سازمان کې د رایې اچونې ډول چې د رایو په اتفاق تر سره کېږي ، دغه چاره د سازمان پرېکړې له خنډ سره مخ کوي ( ۳۴ : ۲۲۲، ۲۲۳).

## ۹ . ۱۱ . د اسلامي همکاریو یا کنفرانس ټولنه

د اسلامي هېوادونو کنفرانس د عربو د جګړې په پایله کې د سعودي عربستان په نوښت په ۱۹۶۹م کال کې په مراکش کې جوړ شو . دغه سازمان تر ۱۹۹۸م کال پورې ۵۵ غړي لرل چې ټول اسلامي هېوادونه وو. خو پر افغانستان د شوروي د پوځي یرغل او د مصر له خوا له اسرائیلو سره د ډیوېډ کمپ تړون له امله په دغه سازمان کې د یادو دوو هېوادونو غړیتوب ځنډول شوی وو . د کنفرانس په څلورمه سرمشریزه کې مصر ته بېرته د ګډون بلنه ورکړل شوه.

همدا راز په ۱۹۸۹م کال کې ددغه سازمان د بېرونیو چارو وزیرانو په ۱۸م غونډه کې پرېکړه وشوه چې د افغانستان غړیتوب دې ددغه هېواد د مجاهدینو ایتلافي حکومت ته ورکړل شي ( ۱۳ : ۵۴۰).

د اسلامي همکاریو سازمان غړي هېوادونه په افریقا کې الجزایز، بنین، بورکینا فاسو، کامرون، کوموروس، چاد، جیبوتي، مصر، ګابون، ګامبیا، بیساو، ګینیا، عاج ساحل، لیبیا، مالي، موریتانیا، مراکش، موزمبیق، نایجر، نایجریا، سینیګال، سیرالیون، سومالیا، سوډان، توګو، تونس او یوګندا په اسیا کې افغانستان، بحرین، بنګله دېش، بروناى، اندونیزیا، ایران، عراق، اردن، قزاقستان، کوېټ، قرغزستان، لبنان، مالیزیا، مالدیف، عمان، پاکستان، فلسطین، قطر، سعودي عربستان، سوریه، تاجکستان، ترکیه، ترکمنستان، عربي متحده امارات، ازبکستان، یمن، په اروپا کې البانیا، په جنوبي امریکا کې ګیانا او سورینام دي. په لاندې نقشه کې د اسلامي همکاریو سازمان غړي هېوادونه ښیي ( ایضاً : ۵۵).



غړي هېوادونه | هېوادونه چې غړیتوب غواړي | بند شوي هېوادونه | لري کړی شوي هېوادونه

(۷ . ۹) نقشه : د اسلامي همکاریو سازمان غړي

https://ps.wikipedia.org/wiki/%D8%AF_%D8%A7%D8%B3%D9%84%D8%A7%D9%85%D9%8A_%D9%87%D9%85%DA%A9%D8%A7%D8%B1%D9%8A%D9%88_%D8%B3%D8%A7%D8%B2%D9%85%D8%A7%D9%86

**د اسلامي هېوادونو کنفرانس موخې**

د اسلامي هېوادونو ترمنځ همغږي او پیوستون په اقتصادي، ټولنیزو او علمي برخو کې، د اسلامي هېوادونو ترمنځ همکاري، د هر ډول نژادي تبعیض او استعمار پرضد مبارزه ، د نړیوالې سولې او امنیت د ټینګښت په برخه کې هڅې، د مقدسو ځایونو د ساتنې په اړه ګډې هڅې ، د فلسطینیانو له حقونو او ازادیو څخه ملاتړ او د فلسطین ازادول د اسلامي هېوادونو کنفرانس بنسټیزې موخې دي (۳۴ : ۲۳۹، ۲۴۰).

## ۹.۱۲. د جنوب ختیځې اسیا تړون ټولنه یا سیټو

د استرالیا، فرانسې، نوي زیلاند، پاکستان، فلپاین، تایلینډ، انګلستان او د امریکا متحده ایالاتو هېوادونو په وسیله د ۱۹۵۴م کال په دسمبر کې جوړه شوه او مرکزیې د تایلینډ په بنکاک ښار کې ځای لري.



(۸.۹) : د جنوب ختیځې اسیا تړون ټولنه یا سیټوغړي

https://fa.wikipedia.org/wiki/%D8%A7%D9%86%D8%AC%D9%85%D9%86_%D9%85%D9%84%D9%84_%D8%A2%D8%B3%DB%8C%D8%A7%DB%8C_%D8%AC%D9%86%D9%88%D8%A8_%D8%B4%D8%B1%D9%82%DB%8C

دا سازمان هم لکه د سنتو په څېر موخو لپاره جوړ شوی و ، خو د لاوس ، کمبوديا او ويتنام کشمکشونو کې د فرانسې ، فلپاين او پاکستان د مخالفتونو له امله يې کومې کړنې ترسره نه شوې کړی . د ناټو برخلاف دې سازمان هم ګډه قوماندانې او نظامي ځواکونه نه درلودل او همدارنګه ددې سازمان پر غړي حمله پر ټولو نه ګڼل کېده . پاکستان په ۱۹۷۳م کال او فرانسه په ۱۹۷۴م کال له دې سازمان څخه ووتل او بالاخره سازمان په ۱۹۷۷م کال کې رسماً منحل اعلان شو ( ۴ : ۱۵۸ ).

## ۹ . ۱۳ . د نفتو د صادروونکو هېوادونو سازمان ( اوپک )

اوپک سازمان (Organization of Petroleum Exporting Countries (OPEC)) په ۱۹۶۰م کال د سپتمبر په څوارلسمه د بغداد په کنفرانس کې د عربستان ، کويټ ، عراق ، ايران او وينزويلا ترمنځ د يو پرېکړه ليک په لاسليکولو سره تأسيس شو. لس ورځې وروسته يعنې د سپتمبر په ۲۴ د يادو پنځو نفت لرونکو هېوادونو ترمنځ بل پرېکړه ليک هم لاسليک شو چې له مخې يې د سازمان موخې او تګلاره په کې څرګند شوي وو. ياد دوه پرېکړه ليکونه په حقيقت کې د اوپک سازمان د تأسيس سندونه ګڼل کېږي.

قطر په ۱۹۶۱م ، لېبيا او اندونيزيا په۱۹۶۲م او متحده عربي اماراتو په ۱۹۶۷م کال کې د اوپک سازمان غړيتوب ترلاسه کړ. الجزاير په ۱۹۶۹م ، نايجريا ، اکوادور او ګابون هېوادونه هم د اوپايمې لسيزې په لومړيو کې د سازمان غړي شول .خو اکوادور په ۱۹۶۲م او ګابون په ۱۹۹۶م کال کې له اوپک سازمان څخه ووتل. مګر اکوادور بېرته په ۲۰۰۷م کال کې د غړيتوب وړانديز وکړ.

اوپک تر۲۰۰۸م کال پورې ديارلس غړي لرل لکه الجزاير، انګولا، اندونيزيا، ايران، عراق ، کويټ، يمن ، نايجريا ، قطر ، سعودي عربستان ، متحده عربي امارات او وينزويلا( ۳۴ : ۲۲۴، ۲۲۵).

د مصر هېواد غړیتوب په ۱۹۷۹م کال کې د تعلیق په حالت کې شو ، خو له ۱۹۸۹م کال وروسته بیا ځلې (اوپک) سره یو ځای شو . ددې ټولنې مقر د کویټ په ښار کې دي (۱۶ : ۵۴۰).

د اوپک سازمان د اساسنامې په دویمه ماده کې د سازمان موخې داسې بیان شوې دي:

الف : د دې سازمان د جوړېدو اصلي موخه د غړو هېوادونو ترمنځ همغږي ، په نفتي تګلاره کې یو والی او همدا راز په غوره توګه د عامه او فردي ګټو تحقق دی.

ب: سازمان په نړیوالو بازارونو کې د نفتو د بیې د تثبیت په موخه له ټولو ښاییه لارو څخه په استفادې احتمالي زیانونه پېشبیني او حل لارې به ورته ومومي.

ج: د نفتو د تولیدوونکو هېوادونو د ولسونو عامه مصالح ، تولیدوونکو هېوادونو ته د ثابتو عوایدو د تضمین اړتیا ، د نفتو منظمه او کافي عرضه او د نفتو په سوداګرۍ کې د یوه شفاف سیستم رامنځته کولو ته به تل پاملرنه کېږي.

هغه هېوادونه چې د پام وړ خالص نفت صادروي او د اوپک سازمان غړو هېوادونو سره ورته ګټې د رسمي غړو د رایو په اکثریت (۳/۴) او د ټولو بنسټګرو غړو په موافقه کولی شي چې د سازمان غړیتوب ترلاسه کړي. د اوپک سازمان مرکز د اتریش په پلازمېنه ویانا کې دی او رسمي ژبه یې انګلیسي ده.

عربي هېوادونو په ۱۹۶۸ کال کې اوپک ته ورته ( OAPEC ) یا د نفتو صادروونکي عربي هېوادونو سازمان تأسیس کړ. عربستان ، کویټ ، لیبیا ، عربي متحده امارات ، الجزایر ، عراق ، قطر ، بحرین ، سوریه او مصر د او.اې.پک سازمان غړي دي (۳۴ : ۲۲۴ ، ۲۲۵).

## ۹ . ۱۴ . د شمالي اتلس تړون (ناټو)

د شمالي اتلس تړون (ناټو ) ((Narth Atlantic Treaty Organization(NATO) له دویمې نړیوالې جګړې وروسته په ۱۹۴۹ م کال کې منځته راغی ، په لومړیو کې یې د منځته

راتلو غوره موخه دکمونستي بلاک په مقابل کې د يو ځواکمن نظامي اتحاد جوړول و . ددې تړولنې بنسټګر هېوادونه امريکا متحده ايالات ، انګلستان ، فرانسه ، کاناډا ، بلجيم ، هالنډ ، لوګزامبورګ ، ایټاليا ، ډنمارک ، ناروی ، آيس لنډ ، او پرتګال وو. وروستي هېوادونه يې د غړيتوب په تاريخ سره ترکيه او يونان په ۱۹۵۲ ، لوېديځ المان په ۱۹۵۵ ، اسپانيه په ۱۹۸۲ ، چک ، پولنډ او مجارستان په ۱۹۹۹ م کلونو کې ورسره يو ځای شول. بالاخره د اوو (۷) پخوانيو کمونيستي هېوادونو( بلغاريا ، رومانيا ، استونيا ، لېتوانيا ، سلواکيا او سلونيا ) په يو ځای کېدو سره د ناټو غړو هېوادونو شمېر ۲۶ ته لوړ شو ( ۱۳ : ۵۴۰ ).




(۹.۹ نقشه) : په اروپايي او نړيواله کچه د ناټو غړي هېوادونه

https://fa.wikipedia.org/wiki/%D9%86%D8%A7%D8%AA%D9%88

**د ناټو سازمان اصلي موخې :** د امنيتي ګواښونو پر وړاندې ګډه دفاع ، د لوېديځ بلاک همغږي کول ، د کمونيستي ايډيالوژۍ د نفوذ مخنيوی او د شوروي د پراختيا غوښتونکو سياستونو مخنيوی .

د ناټو تړون په **۱۴** مادو کې چمتو شوی دی. ناټو د ملګرو ملتونو منشور د **۵۱** مې مادې څخه په الهام اخیستو، د نړیوالې سولې او امنیت د ټینګښت په برخه کې هڅې او لازم اقدامات کوي.

بل خوا د ناټو تړون په **۵** مه ماده کې راغلي دي، چې د ناټو پر هر غړي هېواد برید، پر ټولو غړو د برید په معنا دی او ټول غړي په دفاع مکلف ګرځول شوي دي (۳۴ : ۲۱۱).

ناټو سازمان درې اصلي څانګې لري چې په لاندې توګه ښودل کېږي .

**۱.د شمالي اتلانتیک شورا**: د شمالي اتلانتیک شورا د ناټو سازمان اصلي رکن دی چې د ۲۶ غړو هېوادونو له استازو څخه جوړه شوې ده او مرکز یې په بلجیم کې دی. یاده شورا د دوه ډوله چارواکو په کچه غونډې کوي. لومړی د وزیرانو شورا غونډې دي او دویمه غونډه یې د دایمي استازو په کچه ده.

د نړیوالو سیاسي او امنیتي مسایلو په اړه خبرې اترې، د نړیوالو سیاستونو څېړل او د سازمان د سیاسي کرښو او تګلارو ټاکل، د وزیرانو شورا له واکونو څخه دي. د مهمو مسایلو په اړه د ناټو دریځ په ډاګه کول او د اتلانتیک حوزې څخه بهرون د پوځي عملیاتو منظوري هم د وزیرانو شورا له صلاحیتونو څخه دي.

د وزیرانو شورا او دایمي استازو په شتون سربېره، د شمالي اتلانتیک شورا په سیاسي، اقتصادي او فرهنګي برخو کې یو شمېر کاري کمېټې هم لري. له دې جملې د دفاعي ستراتېژۍ کمېټه او د اټومي پالیسۍ جوړونې ډله د یادولو دي، چې هر یو په ترتیب سره د دفاعي ستراتېژۍ جوړونې او د اټومي چارو د تنظیم په برخه کې فعالیت کوي.

د اټومي پالیسۍ جوړونې ډله یو مشورتي پلاوی دی چې د دفاعي پالیسیو په برخه کې د اټومي انرژۍ د ارزښت او رول په اړه شورا ته مشوره ورکوي. یادې کمېټې چې عالي کمېټې ګڼل کېږي، د غړو هېوادونو دایمي استازي یا دفاع وزیران په کې غړیتوب لري.

**۲.سکرتریت**: د ناټو سکرتریت په بروکسل ښار کې موقعیت لري چې په سر کې یې عمومي منشي دی او منشي د سازمان استازیتوب کوي. عمومي منشي د پرېکړو پر مهال د لارښوونې مسولیت پرغاړه لري او دغه راز منشي کولی شي د تصمیم نیونکي پلاوو ترمنځ د ستونزو او اختلافونو د حل په موخه منځګړی رول ادا کړي. عمومي منشي همدغه راز د ناټو سازمان د اداري مقاماتو په سر کې ځای لري.

**۳.پوځي کمېټه**: پوځي کمېټه د ناټو سازمان تر ټولو عالي پوځي مقام دی چې د غړو هېوادونو د فوځ له لوی درستیزوالو څخه جوړه شوې ده . یاده کمېټه غړو هېوادونو څخه د دفاع په موخه د غړو هېوادونو مشرانو ته د ناټو د ستراتېژۍ او اړتیاوو په اړه توصیه کوي.

کمېټه همدغه راز د اجرائیوي طرحو د وړاندې کولو او د پوځي عملیاتو د پراختیا مسؤلیت هم پر غاړه لري. یاده کمېټه د شمالي اتلانتیک شورا تر مستقیمې قوماندې لاندې فعالیت کوي او د دفاعي پالیسۍ جوړونې کمېټې او د اټومي پروګرام ډلې سره نږدې همکاري لري او همدا راز د ستراتېژیکو طرحو او پلانونو د جوړونې په برخه کې پوځي کمېټې ته د اړتیا وړ کارپوهان او ماهرین په واک کې ورکوي( ایضاً : ۱۱۲).

د اروپا متحده قوماندانې، د اتلانتیک متحده قوماندانې او د امریکا او کاناډا د پالیسۍ جوړونې ډله هم د ناټو په پوځي کمېټه کې شاملې برخې دي. همدا راز یاده کمېټه څو نورې فرعي کمېټې هم لري لکه د سیاسي چارو کمېټه، د سمندري همکاریو کمېټه، د هوایي دفاع کمېټه، د پوځي دفاع کمېټه او د علمي چارو کمېټه.

د امریکا متحده ایالتونو په ۱۹۶۰م لسیزه کې د (انعطاف منونکي غبرګون ) په نوم خپله نوې ستراتېژي اعلان کړه چې له مخې یې له اروپایي هېوادونو څخه ددغه هېواد پوځي ملاتړ او همکاري محدوده شوه . یاده ستراتېژي د مایک نامارا د طرحې له مخې جوړه شوه. فرانسه د امریکا ددې ستراتېژۍ په غبرګون کې په ۱۹۶۶م کال کې د ناټو پوځي کمېټې څخه ووتله او همدارنګه له خپل هېواد څخه یې د ټولو بېرونیو ځواکونو د ژر تر ژره وتلو غوښتنه

وکړه، خو له دې سره سره بیا هم، فرانسې په سیاسي او امنیتي برخو کې د ناټو سازمان سره خپلو همکاریو ته دوام ورکړی دی (۳۴ : ۲۱۳).

## د ناټو لومړنۍ پراختیا

د شوروي او ختیځ المان دځواکونو لخوا پر لوېدیځ المان د حملو دمخنیوي لپاره ، نه یوازې د ناټو ځواکمنتیا بلکې د امریکا متحده ایالاتو ته د هغه د چارو په لاس کې ورکولو ته اړتیا وه .د ۱۹۵۰ م کال په دسمبرکې جنرال آیزنهاورپه اروپا کې دناټو ځواکونو د قومندان په توګه وګمارل شو. یوکال وروسته د ناټو قومنداني منځته راغله . د ۱۹۹۲ م کال فبروري کې دلسبون په ناسته کې چې د ناټو غړو هېوادونوتر واشنګټن وروسته تر ټولو ستره ناسته وه ، دناټو سره دالمان پېوستون او غښتلتیاپکې مطرح شوه . همدارنګه ددې یادونه هم وشوه چې د ناټو ځواکونه باید په دوه کلونوکې څلوربرابره شي او اروپا په پنځو ناحیو ووېشل شي . په همدې کال ترکیه او یونان دناټوسره یوځای شول او د المان دیوځای والي لپاره طرحه وړاندیز شوه . دې طرحې په ۱۹۵۲م کال کې دفرانسې دمخالفت سره ماتې وخوړه او المان په ۱۹۵۵م کال دلوېدیځې اروپا له لیارې ناټوته واردشو .
D9%86%D8%A7%D8%AA%D9%88

## د سوړجنګ وروسته د ناټو پراختیا

له ۱۹۹۹– ۲۰۰۴م کلونو پورې د پخواني شوروي لس هېوادونه دناټو غړي شول او دناټو د غړو شمېر تر ۲۶هېوادونو پورې ورسېدو . په ۲۰۰۸م کال کې په بالتیک حوزه کې او دروسیې تر کرښو پورې د ناټو دپراختیا لپاره هڅې پیل شوې ، چې په دې منځ کې ددرېیوهېوادونو (البانیې ، کرواسي اومقدونیې) غړیتوب لپاره خبرې پیل شوې اوپه بریالیتوب پای ته ورسېدې یعنې د یادو هېوادونو غړیتوب ومنل شو، خو دګرجستان او اوکراین سره چې دروسیې سره ګډه پوله لري د غړیتوب سره یې مخالفت موجود و، خووروسته په ۲۰۰۸م کال کې د ګرجستان دغړیتوب لپاره ملاتړ زیات شو (ایضاً) .

**ناټو په افغانستان اوعراق کې**

په افغانستان اوعراق کې د جنګ له پیل وروسته د ناټو ځواکونو خپلې حوزې ددې دواړو هېوادونو د کرښو داخل ته وغزولې . په عراق کې دناټوکړنې تر ډېره په نظامي زده کړو پورې منحصرې وې، په افغانستان کې په ۲۰۰۶م کال کې دالمان او هالنډ تر غوښتنې وروسته دناټو ځواکونه ( دملګرو ملتونو چوکاټ کې دآیساف دځواکونو ) ځای ناستي شول . ناټو په ۲۰۰۸م کال کې دنړۍ د ۴۰ هېوادونو ۴۷۰۰۰ ځواکونو مشري په افغانستان کې په غاړه واخسته .

په ۲۰۱۷م کال کې د ژوین په ۵ مه د مونتته نګرو لخوا دناټو ټولنې ته ورکړل شوی وړاندیز د امریکا دباندینیو چارو وزیرلخوا ومنل شو ، له همدې امله به دمونتته نګرو په یو ځای کېدو سره به مونتته نګرو د ناټو۲۹ ام غړی شي .D9%86%D8%A7%D8%AA%D9%88%D9

# ۹ . ۱۵ . د وارسا تړون

د وارسا تړون په ۱۹۵۵م کال د شوروي اتحاد او ختیځې اروپا هېوادونو لخوا د لوېدیځ المان د نه مسلح کېدو او په ناټو ټولنه کې د هغه نه غړیتوب پر وړاندې ؛رامنځته شو. دې تړون هم لکه د ناټو تړون په څېر عمل کولو او مرکز یې په مسکو کې و. د البانیې غړیتوب له دې امله چې د چین ولسي جمهوریت سره یې نژدې اړیکې درلودې د تعلیق حالت کې و ، تر څو چې په ۱۹۶۸م کال کې له دې تړون څخه ووتو . ددې تړون ځواکونو په ۱۹۶۸م کال کې د شوروي اتحاد د ځواکونو سره یوځای د چکوسلواکیا په نېولو کې ونډه واخېسته . دا ټولنه په ۱۹۹۱م کال کې رسماً منحل شوه ( ۴ : ۱۵۷).

## لنډيز

د اوسنی نړی وګړي داسې انګيري چې په سيمه ييزه او نړيواله کچه تړونونو وکړای شول چې د هېوادونو تر منځ کړکېچونه راکم او يا يې پای ته ورسوي . په نړی کې د سولې او امنيت ټينګښت او د سياسي ، فرهنګي ، کلتوري او ټولنيزو همکاريو رامنځته کول چې د بشر اړتيا او پخوانی هيلې وې تر ډېره د همدغسې تړونونو په وسيله تر سره شوې .

د بشري ټولنې د پرمختګ او همکاری اړتيا چې له پخوا وختونو څخه احساسېده ددې لامل شوه چې دلومړی نړيوالې جګړې ورروسته دنړ يوالې ټولنې لخوا نړيوال سازمان جوړ شو ، خو داچې داخلي جوړښت کې يې ځينې ستونزې موجودې وې ، ويې نه شو کړای چې د دويمې نړيوالې جګړې مخه ونيسي . له دويمې نړيوالې جګړې وروسته بيا ديو نړيوال بنسټ (ملګرو ملتونو ) د جوړېدو بنسټ رامنځته شو ، دې سازمان پر ډېرو غوره توبونو سربېره ځينې نيمګړتياوې هم درلودې .

نړيوالو ټولنو منځته راتګ دننی نړی لپاره غوره او اړينې موضوعګانې ثابت شوې . که څه هم په اروپا کې کوچنی اتحاديې ډيره مخينه لري خو د اروپا اتحاديه د اروپا د يووالي په لور لومړنی بنسټيز ګام ګڼل کېږي . دغه ټولنه د تاريخ په بېلابېلو پړاوونه کې منظمه او منسجمه شوې ده اوبالاخر داسې يو حالت ته ورسېده چې د اروپا د يو والي او وحدت لامل شوه . ددې ټولنې بسټيزې موخې تر ډېره د سوداګری په غښتلتيا راڅرخېدې او هڅه کېده چې د سوداګری په مرسته اروپا ته ښيګڼې ور وبخښي . چې همدې موخې ته تر ډېره بريده ورسېدل .

همدارنګه په افريقا لويه وچه کې هم ډېرې اقتصادي ، سياسي او ټولنيزې ټولنې رامنځته شوې چې ددې لويې وچې په پرمختګ او هوساينې کې اغېزمنې ثابتې شوي دي . ددې ټولنو په ليکه کې د افريقا يې ټولنې نوم يادولی شو چې له آره اقتصادي خو پر دې سربېره يې د افريقايي ولسونو لپاره د اروپا د استعمار له ژغ څخه د افريقايانو د غاړو

وېستل و او ددې تر څنګ يې د افريقا د يو والي او يو موټي کولو موخې هم له ځان سره لرلې .

همدارنګه نورې ټولنې په اسيا اروپا افريقا او امريکا لويو وچو کې د بېلابېلو موخو له امله جوړې شوي دي چې د بېلګې په توګه يې د ځينو هغو يادونه دلته کوو لکه عربو ټولنه چې بنسټيزه موخه يې د عربي هېوادونو يو والی او د سياسي فعاليتونو هم غږي کول و . همدارنګه نورې ټولنې هم به دې نړې کې د ورته موخو لپاره جوړې شوي دي لکه د اروپا شورا ، داروپاد اقتصادي همکاريو سازمان ، داقتصادي پراختيا او همکارۍ سازمان ، د مشترک المنافع ټولنه ، د ازادو هېوادونو د مشترک المنافع ټولنه ، دفارس خليج دهمکاريو شورا... او داسې نور چې تر ډېره د اقتصادي موخو لپاره جوړې شوې دي .

په دې سربېره په نړۍ کې ځينې نظامې ټولنې هم جوړې شوي دي چې دبيلګې په توګه يې د ناټو او وارسا تړونونو يادونه کولی شو . دناټو (NATO) تړون چې د ګډ امنيتي او دفاعي سيستم په موخه جوړ شوی ، چې د بروکسل تړون په نوم يادېږي . ددې سازمان د جوړېدو بنسټيزه موخه د امنيتي ګواښونو پر وړاندې ګډه دفاع ، د لوېديځ بلاک همغږي کول، د کمونيستي ايډيالوژۍ د نفوذ مخنيوی او د شوروي د پراختيا غوښتونکو سياستونو مخنيوی . دغه سازمان بيلابيلې کمېټې لري او په نړيواله کچه يو غښتلی او ځواکمن نظامي ځواک دي .

د وارسا سازمان هم يو نظامي سازمان و ، چې بنسټيزه موخه يې د لويديځ المان د نه مسلح کېدو او په ناټو ټولنه کې د نه ورګډېدو په موخه جوړ شوی و ، چې ډېر زر لمنځه ولاړ.

## پوښتنې

۱. په کوم کال او دچالخوا په اروپاکې د ډبرو سکرو او پولادو تړون لاسلیک شو؟

۲. داروپایي ټولنې موخې تر ډیره په کومو موضوعګانو راڅرخېدې ؟

۳. افریقایي ټولنه کله او په کومو اصولوولاړه وه ؟

۴. دعربو ټولنه کله اوچېرته لومړی ځل جوړه شوه؟

۵. دعربو ټولنې دجوړېدو بنسټیزه موخه څه وه؟

۶. داروپاشورا کله رامنځته او کوم ډول شورا ده ؟

۷. د اروپا شورا د اروپایي ټولنې سره کوم ډول توپیرلري ؟

۸. د لوېدیځې اروپا اتحادیه په کومه موخه جوړه او اوس مهال یې اغېزمنتیا څومره ده؟

۹. داروپایي اقتصادي همکاریو سازمان دنده کومه او کوم غړي لري ؟

۱۰. د مشترک المنافع ټولنه له څو هېوادونو جوړه ده اوکوم ډول هېوادونه پکې راټول دي ؟

۱۱. د انګلستان بادشاه د مشترک المنافع ټولنې دکومو هېوادونو د دولت رییس ګڼل کېږي ؟

۱۲. دازادو مشترک المنافع هېوادونو ټولنه له کومو هېوادونو جوړه ده؟

۱۳. د ازادو مشترک المنافع هېوادونو ټولنه کله او دڅه لپاره جوړه ده ؟

۱۴. دفارس خلیج د همکاریو شورا کله او دچالخوا جوړه شوې ده؟

۱۵. دفارس خلیج دهمکاریو شورا موخې څه دي ؟

۱۶. دشانګهای دهمکارۍ ټولنه کله او په کومه موخه جوړه شوې ده؟

۱۷. دشانګهای دهمکارۍ ټولنې اصلي او څارونکي غړي کوم دي ؟

۱۸. دسارک ټولنه کله جوړه او د څو غړو لرونکې ده؟

۱۹. دسارک ټولنې ته په مخ کې پرتې ننګونې کومې دي؟

۲۰. په سارک ټولنه کې افغانستان ته دایمي غړیتوب کله ورکړل شو ؟

۲۱. سارک ټولنه په کومو برخو کې ګډې همکارۍ کوي ؟

۲۲. د اسیا پاسفیک ټولنې بنسټ دکومو هېوادونو لخوا کېښودل شو؟

۲۳. د اسلامي هېوادونوکنفرانس دکومو هېوادونو لخوا د چا په نوښت جوړ شو؟

۲۴. داسلامي هېوادونو کنفرانس موخې څه دي ؟

۲۵. نفتاتړون کله او دچالخوا جوړشوی اومرکزیې چېرته دی؟

۲۶. داوپک ټولنې غړي کوم دي ؟

۲۷. داوپک ټولنې موخې کومې دي؟

۲۸. دناټو ټولنه لومړی دکومو هېوادونو لخوا کله لاسلیک شوه ؟

۲۹. دناټو ټولنې موخې کومې دي؟

۳۰. دوارساټولنه کله او د چا لخوا جوړه شوې وه؟

# د سياسي جغرافيې اړينې اصطلاحګانې

دا چې هره پوهه ځانګړې اصطلاحګانې لري او هره پوهه د همدغو اصطلاحګانو په مرسته په مخ ځي نو لازمه وي چې د هر مسلک او پوهې ځانګړې اصطلاحګانې د مسلک خاوندانو لخوا يادې او په سمه توګه په موزونو او وړو ځايونو کې وکارول شي. د سياسي جغرافيې هم ځانګړې اصطلاحګانې دي چې په مرسته يې کيدی شي سياسي جغرافيه په غوره توګه پرمختګ وکړي نو له همدې امله لازمه ده چې د سياسي جغرافيې ځينې اړينې اصطلاحګانې دلته ذکر شي.

**۱. ابر قدرت (لوی ځواک)**

په نړيوال سياست کې هغې قوې ته منسوب کېږي چې د پراخې خاورې، د زياتې انساني قوې، د لومړنيو موادو د غني زېرمو لرونکی او د اقتصادي او نظامي ځواک لرونکی وي او په عين حال کې پر نورو هېوادو د تسلط او د استعماري او نويو استعماري اعمالو غوښتونکی وي. په اوسنيو شرايطو کې او په ۱۹۹۱م کال کې د شوروي اتحاد د ړنګېدو را وروسته د امريکا متحده ايالاتو هېواد د نړۍ يواځني ابر قدرت په عنوان پېژندل کېږي. ظاهراً په امريکا کې د ۱۱ سپتمبر ۲۰۰۱م کال را وروسته، دې هېواد د نړۍ د ټولو هېوادونو په چارو کې د لاس وهنې چارې زياتې کړي دي (۱۶ : ۵۴۷).

**۲. اپارتايد**

د اپارتايد معنی بېلتون دی، او دا هغه نوم دی چې د جنوبي افريقا حکومت په خپل حکومت يعنې توکميز تبعيضه نظام باندې ايښی دی (۳۹ : ۱۳).

اپارتايد د نژادي تبعيض رسمي سيستم و، چې د ۱۹۴۸ او ۱۹۹۴م کلونو تر منځ په جنوبي افريقا کې د مسلط ملي حزب لخوا پلی کېدلو. ددې سياست لاندې، د نه سپين پوستو ډيری وګړو حقوق هيڅ ګڼل کېدل، او د سپين پوستو اقليت حکومت په هغه هېواد کې چلېدو. دا سياست په سهيل لوېديځه افريقا کې چې د ملتونو ټولنې د پرېکړې پر بنسټ د

سهيلي افريقا د قيموميت لاندې و ، د نامبيبيا تر ازادۍ پورې په ۱۹۹۰م کال پورې هم پاينبت درلود . دا ډول سياست د ۱۹۴۸م کال د ټوليزو ټاکنو وروسته نافذ شو . نوي قانون د سهيلي افريقا ټولنه په سپينو ، تورو ، رنګه او اسيايي ډلو ووېشله . له ۱۹۷۰م کال را وروسته تور پوستو خپل تابعيت هم له لاسه ورکړ او د لسو خود مختارو قبايلي سيمو وګړي چې د بانتوستانيانو (Bantustans) په نوم يادېدل ؛ له ډلې شول .

نژادي تبعيض په جنوبي افريقا کې په ټولو سيمو کې لکه معارف (پوهنې) صحت او په ټولو ټولنيزو خدماتو کې پلى کېدو . له ۱۹۵۰م کلونو راپدېخوا ددې نظام پر وړاندې مقاومت پيل شو . په دې نظام کې په ۱۹۸۰م کلونو کې راوړل شوي اصلاحات د تورپوستانو د منلو وړ نه شول او په ۱۹۹۰م کال کې د سپين پوټکو له جمهور رييسانو څخه يو تن يې د دوکلرک ( Frederik Willem de Klerk ) په نوم ؛ ددې نظام د ختمولو لپاره خبرې پيل کړې چې بالاخره د ۱۹۹۴م کال ازادو ټاکنو باندې تمامه شوه . چې نلسن ماندېلا په مشرۍ د افريقايي ملي کانګرس حزب(ANC) په کې ټاکنې وګټلې او نلسن ماندېلا په کې واک ته ورسيد ( ۴ : ۱۹۳).

**۳ . ارستوکراسي ، د اشرافو حکومت**

هغه حکومت ته وايي چې اشرافو او غوره کسانو ته منسوب وي او يوازې د لوړې طبقې يا د يوې محدودې ډلې ممتاز کسان يې چارواکي وي ، په لرغوني يونان کې يې د نېکانو او مناسبو خلکو حکومت ته د اشرافو حکومت ويلو ( ۳۹ : ۱۶).

**۴ . ازاد بندر**

ازاد بندر هغه بندر ته وايي چې سوداګريز مالونه د ګمرکي عوارضو او حقوقو پرته هلته وارد او يا صادر شي ، لکه د اسيا په جنوب ختيځ کې د سنګاپور او هانګ کانګ بندرونه ( ۱۶ : ۵۵۱ ) .

**۵ . استبداد**

له هغه سیاسي تګلارې څخه عبارت دی چې د لاندې ځانګړتیاوو لرونکی وي .

الف. د دولت د ځواک لپاره د قانون یا دودیزه حدودو نه شتون .

ب .د ځواک لمن پراخول چې عملاً تر سره کیږی ، او ددې کار د ترسره کولو لپاره یوې متمرکزې ادارې ته اړتیا وي ( ۱۱ : ۲۱ ).

**۶ . استبدادي حکومت یا شخصي حکومت**

هغه حکومت چې په هغې کې قدرت په تدوین شوي اساسي قانون اتکاء نه کوي ، بلکې قدرت او اختیار د یو فرد په لاس کې وي او هیڅ ډول قانوني محدودیت ونه لري ( ۳۹ : ۱۹ ).

**۷ . استعمار**

استعمار په لغت کې د جوړولو او آبادولو د غوښتنې په معنی دی . مګر دودیزه معنی یې د اقتصادي ، نظامي او سیاسي پلوه د یو ځواکمن ملت تسلط ، پر یوې کمزورې ځمکې یا قوم . په لنډو سره ، هر ډول ځمکنۍ پراختیا استعماري عمل ګڼل کېږي ( ۱۱ : ۲۲ ).

**۸ . اقلیت ( لږکۍ )**

هغه ډله وګړي چې په یو هیواد کې اوسېږي او د ژبې ، مذهب ، او د ټولنیزو دودونو له مخې د هغې هېواد د اکثریت وګړو سره توپیر لري . په پراخه مفهوم سره هغو حزبونو ته چې په پارلماني ټاکنو کې یې د ټاکل شوو استازو شمېر د ټولو استازو د شمیر له نیمایي څخه کم وي ؛ هم اطلاق کېږي ( ۱۶ : ۵۴۹ ) .

**۹ . الحاق یا پیوستون**

یو هېواد پورې تړلې یا بې خاونده ځمکې تملک کول د یو بل هېواد په وسیله د الحاق په معنی ده . د یوې ځمکې په الحاق کېدو سره ملحق کوونکي هېواد ته د الحاق ځمکې

ټول حاکمیت په لاس کې ورځي ، او د الحاق شوې ځمکې وګړي د ملحق شوې ځمکې وګړي ګڼل کېږي . د الحاق شوو ځمکو غوره بېلګې د اتریش او د سودت ځمکې الحاق کېدل د المان سره له دویمې نړیوالې جګړې وړاندې و ( ۱۱ : ۱۸ ).

کیدای شي ووایو چې دا هغه حقوقي عمل دی ، چې د دولت په تړون کې شامل نه وي خو ددغه تړون له مقرراتو او قواعدو څخه خپل ملاتړ اعلان کړي او په مقابل کې یې له مزایاوو څخه ګټه پورته کوي ، په ټولیزه توګه دا کار د یو تړون له رامنځته کېدو وروسته کېږي او هغه دولت چې دغه ډول ملاتړ اعلاموي ، لکه د تړون کوونکو اصلي دولتونو په څېر په تړون کې په ټاکل شوو حقوقو او ربړو کې یو شان ونډه اخلي . د پیوستون لپاره بنایي د ټولو هېوادونو پر مخ دروازې خلاصې وي لکه د ملګرو ملتونو د منشور په څېر او یا دا چې د پیوستون دروازه د یو شمېر هېوادونو پر مخ خلاصې وي لکه عرب لیک یا د عربو اتحادیه چې یوازې د خپلواکو عربي هېوادونو پرمخ یې دروازې خلاصې دي ( ۳۹ : ۱ ) .

**۱۰ . امپریالیزم**

په اصطلاح کې هغه سیاست دی چې له خپلې خاورې څخه پر بهرون وګړو د هغوی له اقتصادي سرچینو څخه ګټې اخېستنې ، نظامي موقعیتونو د ساتلو او پر هغوی باندې د خپلو صادراتي سامانونو د خرڅولو لپاره په کار اچول کېږي . دا چې طبیعتاً وګړي د نورو له سلطې منلو څخه بده وړي ؛ د امپریالیزم سیاست تل د زور په کارولو تر سره کېږي . امپریالیزم شرایطو ته په کتو سره بېلابېل سیاستونه غوره کړي دي چې په اوسني وخت کې تر ټولو غوره تګلاره یې د پانګه والو هېوادونو لخوا په پراختیا په حال کې هېوادونو کې د پلور بازارونو جوړول او د هغوی سرچینې او زېرمې په ډېره ټیټه بیه اخېستل دي ( ۱۶ : ۵۴۹ ) .

دا کلمه په ۲۰ مه پېړۍ کې د هغو اروپایي هېوادونو لپاره کارول شوې چې د ۱۸۸۰ـ ۱۹۰۰م کلونو په اوږدو کې یې پر اسیایي او افریقایي هېوادونو خپل تسلط ته پراختیا ورکړه ؛ او امپراتورۍ یې جوړې کړې .

د امپرياليزم دا معنی د اقتصادي حرکتونو په موخه کارول شوې. يا د يو هېواد هرډول تسلط پر بل هېواد ته امپرياليزم وايي لکه د روسيې تسلط پر ختيځه اروپا، روسيي امپرياليزم او د چين تسلط پر تبت د چين امپرياليزم ګڼل کېږي (۱۱ : ۱۸).

### ۱۱. امپراتور

د ملتونو يا هېوادونو ډلې ته چې د يو واکمن (امپراتور) تر قوماندې لاندې يې يو والي رامنځته کړی وي، دغې مشر ته يې امپراتور وايي. يا د امپراتور سرليک هغه دولت يا حکومت ته چې د يو امپراتور د فرمان لاندې وي، چې د پراخې محدودې لرونکی او هر ډول توکميز وګړي په کې ژوند لري؛ هم اطلاق کېږي. لرغونې امپراتورۍ په مصر، بابل، اشور، ايران، روم او مکدونيه کې جوړې شوي دي. په وروستيو کې کيدی شي د مغولو، هند، المان او جاپان امپراتوريو يادونه وکړو. کيدی شي چې امپرياليزم د امپراتورۍ نوې بڼه وګڼو (۱۶ : ۵۴۹).

### ۱۲. انقلاب

ناڅاپي او سخت بدلونونه چې په سياسي، ټولنيزې او اقتصادي وضعې کې رامنځته کېږي او يو مستقر هېواد خپل ځای بل ته ورکوي؛ ورته انقلاب ويل کېږي. دا ډول بدلونونه تر ډيره د زور او زياتي او د وګړو په سرکشۍ سره ترسره کيږي. انقلاب په غير سياسي بدلونو هم اطلاق کېږي، لکه صنعتي انقلاب، فرهنګي انقلاب، علمي انقلاب... (۱۱ : ۲۴).

### ۱۳. ايالت

د هيوادونو په سياسي وېش کې هر يوه پراخه سيمه چې معمولاً يو پراخه د وېش واحد جوړوي؛ ورته ايالت وايي. د ايالتونو محدوده او د واکونو حدود په بېلا بېلو هېوادونو کې توپير لري او د هغه هېواد په قوانينو او مقرراتو پورې تړاو لري (۱۶ : ۵۴۷).

### ۱۴. ایتلاف

د پارلماني او ټاکنو د موخو د لاس ته راوړلو لپاره د سیاسي ډلو او حزبونو موقت جوړجاړي ته ایتلاف ویل کېږي ( ۱۱ : ۱۹).

دحکومت د جوړېدو لپاره د احزابو یو ځایتوب په معنی سره دی ، دا چاره یوازې هغه مهال تر سره کېږي چې په پارلماني سیستمونو کې یو واحد حزب اکثریت ونلري او په پایله کې د دولت تشکیل د یو حزب لخوا ناشونی شي ، په دغه صورت کې دوه یا څو حزبه په موقته توګه یو له بله سره یو ځای کېږي تر څو د پارلمان اکثریت لاس ته راوړي او معمولاً هغه دولت چې په دغسې بڼه منځته راځي ؛ ورته ایتلافي دولت وایي ( ۱۶ : ۵۴۷ ) .

### ۱۵. بندر

د سمندر ، بحیرې ... او داسې نورو په غاړه سیمه ، یا هغه ځای چې کشتۍ د هغې په غاړه کې ودرېږي او یا بار هلته اخلي یا یې کوزوي . دا ډول سیمې معمولاً غوره ساختمانونه او د مخابراتي او اړیکو غوره تاسیساتو لرونکې وي ( ۱۶ : ۵۵۱ ) .

### ۱۶. بیروکراسي

د بیروکراسۍ اصطلاح په اروپا کې د ۱۸ مې میلادي پیړۍ له لومړیو څخه و کارول شوه ، دغه اصطلاح د Bureau له کلمې څخه چې د لیکلو د میز په معنی ، او یا دفتر او د کار ځای چې مامور په هغې کې کارکوي ؛ اخېستل شوې ده. د Kratia یا Kratos وروستاړی په یونان کې ځواک یا حکومت کولو په معنی دی . چې په دې ترتیب بېروکراسي د دفتر قدرت او یا د دفتر حکومت معنی ښایي ورکړي . له دې اصطلاح څخه ګټه اخېستنه د فرانسې انقلاب څخه لږ وړاندې په ۱۷۸۹م کال کې تر سره شوه ، چې البته وروسته یې په چټکۍ سره ټولو هېوادونو ته پراختیا ومونده . د المان ټولنپوه ماکس ویبر Max weber ( ۱۸۶۴-۱۹۲۰م) په نړۍ کې د بیروکراسۍ د پراختیا ستر پلوي و ( ۴ : ۱۹۵).

**۱۷. پنځمه ستن**

پنځمه ستن، اصطلاحاً په یو بل هېواد کې د یو هېواد د جاسوسي او ورانکارو عواملو او یا د هېواد په داخلي جوړښت کې د یوې ډلې لخوا ددغسې کړنو ترسره کولو ته د ا اصطلاح کارول کیږي (۱۱ : ۴۶).

**۱۸. پلازمینه**

د هر هېواد د حکومت مرکز، چې په هغه کې بادشاه یا جمهور رییس او یا د هغې هېواد حاکم هیات اوسیږي او له هماغه ځایه د هېواد په ټولو برخو حکم چلونه کوي (۱۶ : ۵۵۲).

**۱۹. تحت الحمایه**

هغه ځمکه چې په کې واکمن یا حکم چلوونکی وي او په داخلي چارو کې لږه او ډیره ازادي ولري، خو د بل هېواد تر حمایت لاندې وي او معمولاً بېروني اړیکې یې د هغه حمایت کوونکي هېواد په لاس کې وي (۱۶ : ۵۵۴).

**۲۰. ټولنه**

یو شمېر وګړي چې په یو ځمکني واحد کې ژوند کوي (۱۶ : ۵۵۷). جمهوري د حکومت هغه ډول دی چې په هغې کې د هېواد رییس ځای ناستی مورثي نه وي، او د ریاست موده تر ډیره محدوده وي او ټاکنې په کې په سیده او نا سیده رایي کارونې ترسره کیږي. جمهوري د کلمې د مفهوم له مخې تر ډیره د دموکراسۍ درجې هم دي، مګر په عین حال کې په ډیرو غیر سلطنتي دیکتاتوریو هم اطلاق کیږي (۱۱ : ۱۸).

**۲۱. جیوپولیتیک**

د سیاست او د ژوند طبیعي چاپیریال تر منځ د تړاو علم ته جیوپولیتیک وایي. که څه هم دغه علم د ارسطو تر مودې پورې مخینه لري، مګر په المان کې د ۱۹مې میلادي پېړۍ را وروسته د زیاتې پاملرنې وړ شو (۱۶ : ۵۶۶).

## ۲۲ . حکومت

هغه نهاد دي چې په نړیواله کچه د یو دولت استازیتوب دنده په غاړه لري (په نړیواله کچه د دولت نماینده) او د هغه د حقوقو او تکالیفو مسول وي . حکومت له درېیو برخو جوړ وي لکه مقننه قوه ، اجراییه قوه او قضایه قوه (۱۱ : ۹۵).

## ۲۳ . دموکراسي

دموکراسي یعنې د خلکو حکومت ، یا په بله ژبه د حکومت هغه ډول چې په کې لوړ حاکمیت د وګړو په لاس کې وي او شونې ده چې په سیده (په مطلقه دموکراسۍ کې ) او یا د استازو په وسیله چې وګړي ټاکي عملي شي (د هغو حکومتونو برخلاف چې په هغې کې حکومت د یوې طبقې ، یوې ډلې ، ممتازو او یا یو فرد په لاس کې وي ) (۱۶ : ۵۶۲). هغه ځمکه چې په کې واکمن یا حکم چلوونکی وي او په داخلي چارو کې لږ او ډېره ازادي ولري ، خو د بل هېواد تر حمایت لاندې وي او معمولاً بېرونۍ اړیکې یې د هغه حمایت کوونک هېواد په لاس کې وي (۱۶ : ۵۵۴) .

## ۲۴ . دیکتاتوري

له دیکتاتورۍ څخه مطلب د ځواک هغه ډول دی چې د لاندې ځانګړتیاوو څخه ولري :

الف . د قوانینو یا دودونو نه شتون چې واکمنان یې پیاده کړي .

ب . د ځواک بې پولې توب .

ج . د عالي ځواک لاس ته راوړل یا د پخوانیو قوانینو نقص کول .

د . د ځای ناستي توب لپاره د منظمو مقرراتو نه شتون .

ه . د یوې کوچنې ډلې د ګټو لپاره د ځواک کارول .

و . د دولت د ځواک او ویرې له امله د وګړو اطاعت .

ز. د يو تن (کله‌بيا د څو نفرو ) په لاس کې د ځواک تمرکز .

ح. د ترور او وحشت (ويرې ) پيدا کول .

ديکتاتور لفظ د مطلقه حکومت پر هر ډول واکمنانو اطلاق کېږي ( ۱۱ : ۴۰ ).

**۲۵. سوړ جنګ**

د اقتصادي سياليو سره يو ځاى هغه سياسي کړکيچونه او نظامې لانجې وې چې له ۱۹۴۶ څخه تر ۱۹۹۱م کلونو پورې د کمونستي نړۍ چې په سر کې يې شوروي اتحاد ، او د لوېديځ پانګه وال نظام چې په سر کې يې د امريکا متحده ايالات و ؛ پايښت لرلو . سره له دې چې د دواړو لوروڅخوا نظامي سيده ټکر نه و رامنځته شوى ، مګر نظامي لانجو د نظامي ايتلافونو د جوړولو ، د ځواکونو ستراتېژيکي تمرکز ، ځپل شوو هېوادنو سره د مرستو زياتولو ، پروپاګندو ، د وسلو سياليو ، د بې لورو هېوادونو راګرځولو او د تګنالوژۍ ، مستعمراتو او داسې نورو له لارې پايښت وموند ( ۴ : ۱۹۷ ).

**۲۶. سوسياليزم**

سوسياليزم هغه تيوري يا سياست دى چې د توليد وسايلو مالکيت او د توليد وسايلو (چې د پانګې ، ځمکې ، مالونو او داسې نورو څخه عبارت دي) باندې څارنه د ټولنې په لاس کې او ټولو په ګټه غواړي . که څه هم چې د سيوسياليزم د عقايدو په اړه د نظرونو اختلافات ډير زيات دي ، خو ټول د يو مشترک عنصر لرونکي دي چې عبارت دي له : په فرد د ټولنې لومړيتوب او د ټوليزو ګټو لومړيتوب پر فردي ګټو )( ۱۱ : ۴۶ ).

**۲۷. قيموميت**

قيموميت يو نړيوال تاسيس دى ، چې د هغه په وجه د ملګرو ملتونو ټولنې تر څارنې لاندې دولتونه د قيم تر سرليک لاندې ، د خاصو ادارو او ځمکو نظارت په غاړه اخلي تر هغې چې دغه ځمکې ازادۍ يا خپلواکۍ ته ورسېږي . که څه هم شونې ده موخه يې تل ازادي نه وي ، خو بيا هم قيم حق لري تر قيموميت لاندې ځمکه خپلې خاورې پورې و تړي( ۱۱ : ۵۱ ).

## ۲۸. کابینه یي حکومت

دا هغه ډول حکومتي نظام دی چې ولسمشر تشریفاتي او سمبولیکه بڼه لري او واک د کابینې په لاس کې وي او کابینه هغه ګوندي مشران، چې اکثریت یې ګټلی وي او یا یې د ایتلاف مشران ټاکي. په دې نظام کې داسې نه شي کېدی چې کابینه د یو ګوند د مشرانو په واک کې وي او پارلمان د بل ګوند. په دې ډول نظام کې که د کابینې او پارلمان تر منځ اختلاف پیدا کېږي، نو کابینه دغه پارلمان منحلوي او موضوع رایې ورکوونکو ته سپاري. د کابینه یي حکومت نظام په انګلستان، کاناډا، هند او یو شمېر نورو هېوادونو کې دود دی ( ۳۹ : ۳۳).

## ۲۹. کاپیټالیزم

کاپیټالیزم د اقتصادي سیستم هغه ډول دی چې په هغې کې د اقتصادي فعالیتونو غټه برخه، په ځانګړې توګه د توکو د تولید لپاره مالکیت او پانګه اچونه، د وګړو او خصوصي موسساتو په لاس کې وي. او هغوی د اقتصادي سیالۍ له لارې او د ګټې د لاسته راوړلو په انګیزې سره، د چارو لارښوونه کوي. د کا پیټالیزم کلمه تر ډېره سوسیالیستان کاروي، د هغو موخه له کاپیټالیزم څخه، هغه سیستم دی چې په هغې کې خصوصي وګړي د تولید وسایلو مالکین وي، او همدا وسایل د سود (ګټې) د تر لاسه کولو په موخه کاروي ( ۱۱ : ۵۱).

## ۳۰. کمونېزم

کمونیزم پر هغې تیورۍ اطلاق کېږي چې له (مشترک ژوند) څخه پلوي کوي، او د هغې ټولنې غوښتونکي وي چې په هغې کې د سلسله مراتب تسلط شتون نه لري. د تفریح او ژوند کولو ټول وسایل او اموال په ګډه د ټولو وګړو په واک کې وي. کمونیستان، د سوسیالیستي نظام د کمونیستي نظام پیلیزه بولي، او په دې باور دي چې کمونیزم ته د رسېدو لپاره باید د سوسیالیزم په لاره تېر شي ( ۱۱ : ۵۲).

### ۳۱. کنګره یا کانګرس

د ګوند د رهبرۍ تر ټولو لوړ ارګان او مقام ته کنګره وايي، یا کنګره له هغې غونډې څخه عبارت ده چې د ګوند د غړو او ایالتي شوراګانو استازو د شمېر په تناسب په کې راغونډېږي. په نړیواله اصطلاح هغې غونډې ته ویل کېږي چې د هېواد مشران او یا استازي په سیاسي مسایلو کې د تفاهم او د نظریاتو د شریکولو په موخه راغونډېږي (۳۹ : ۴۹).

### ۳۲. کودتا

کودتا، د زور او جنګ لارې د دولتي مقاماتو په لاس په نا څاپي توګه د دولت بدلون ته ویل کېږي. د کودتا توپیر د انقلاب سره دادی چې کودتا له پاسه لوري او د حاکمې طبقې یا د دولتي دستګاه د وګړو لخوا تر سره کیږي، حال دا چې انقلاب د وګړو او ټیټ پوړ خلکو لخوا د دولت په ضد پاڅون ته وايي. کودتا تر ډېره د رادیو او مهمو نښلوونکو مرکزونو لکه هوايي میدانونو، د اوسپنې لارې په سټېشنونو او د دولتي مهمو ودانیو په لاسته راوړلو سره پیلېږي (۱۱ : ۵۴).

### ۳۳. ګمرکي اتحادیه

د دوو یا څو هېوادونو تر منځ اتحادیه چې پر بنسټ یې له یوې ګمرکي تعرفې څخه ګټه اخېستل کېږي، ورته ګمرکي اتحادیه ویل کېږي لکه د اروپا ګډ بازار ګمرکي اتحادیه (۱۶ : ۵۴۷).

### ۳۴. لیبرالیزم

لیبرالیزم د لاتیني Libralis اصطلاح څخه اخېستل یوه نړیواله سیاسي فلسفه او د پام وړ ټکی دی، چې پر ازادۍ او برابرۍ یې اساس کېښودل شوی دی. که څه هم ددې فکري مکتب د ګټې اخېستنې ساحه ډېره پراخه ده، مګر په ټولیزه توګه له ازادو او عادلانه ټاکنو، مدني حقوقو، د مطبوعاتو ازادي، د دین او مذهب ازادي، د سوداګرۍ ازادي او خصوصي مالکیت څخه پلوي کوي او دا یې غوره ځانګړنې دي.

که څه هم د لیبرالیزم تاریخي فلسفي رېښه د یونان ښاري دولت دورې ته رسېږي، مګر په معاصره دوره کې د یو سیاسي خوځښت په توګه د روښنګرۍ په عصر کې یې بروز وکړ، د فلسفې او اقتصاد لویدیځ پوهانو په لیکنو کې یې انعکاس موندلی، او د الهي حقوقو، مطلقه شاهي او د مذهب او دین موروثي امتیازاتو سره په مخالفت کې پرېوته.

د انګلیسي جان لاک John locke (۱۶۳۲ـ۱۷۰۴م) فکري او فلسفي برخه کې د لیبرالیزم تیوریکي اساسات پیل شوي و. د فرانسې او امریکا انقلابیونو د استبداد پرضد په خپلو مسلحانه حرکتونو کې له همدې فلسفې څخه ګټه پورته کړه. د اقتصاد په برخه کې د سکاتلینډي آدم سمیت Adan Smith (۱۷۲۳ـ۱۷۹۰م) چې د دې مکتب بنسټ ایښودونکی دی، چې خپل نظریات یې د ملتونو په ثروت The Wealth of Nations کې بیان کړي دي، انسان پالنه Humanism، فرد پالنه Individualisn، تجدد پالنه Modernism، او د دود پالنې سره مخالفت Anti- traditionalism په فرهنګي او ټولنیزې برخې کې د لیبرالیزم غوره ځانګړتیاوې دي (۴: ۲۰۳، ۲۰۴).

**۳۵. مرز**

یوه کرښه یا نښه چې د دوو هېوادونو یا د دوو بېلابېلو ځمکو ترمنځ د بېلتون حد واقع شوې وي، چې کله ورته سرحد هم وایي. (۱۶: ۵۷۸).

**۳۶. مستعمره**

مستعمره یا کالوني هغه هېواد یا سیمې ته ویل کېږي چې یو ځواکمن هېواد په هغه کې سیاسي او یا پوځي واک ولري، چې سیاسي واک او ټولې دولتي چارې یې د بهروني ځواکمن هېواد په لاس کې وي. دغه ځواکمن یا په اصطلاح امپریالستي هېواد له خپلې مستعمرې څخه د لومړنیو موادو د زېرمې او پوځي اډې په توګه کار اخلي (۳۹: ۴۳).

### ۳۷ . مطلق اکثریت

هغه اکثریت ته وایي چې لږ تر لږه له نیم څخه زیات د یو شمېر رایې ورکوونکو د رایو ټولګه وي ( ۳۹ : ۱ ) .

### ۳۸ . مطلقه حکومت

هغه حکومت چې په کې د ټولو کړنو د واکمنۍ حق د یو کس یا یوې ډلې په لاس کې وي ، پرته له دې چې ولس د حکومت د چارو څارنه وکړي . دا اصطلاح د دسپوتیزم سره مترادفه هم کله نا کله کارول کېږي ( ۳۹ : ۱ ) .

### ۳۹ . مطلقه سلطنت یا مطلقه سلطنتي حکومت

هغه سلطنت چې نا محدودو واکونو درلودونکی وي ، مطلق العنان هم ورته وایي( ۱۶ : ۵۴۷ ) .

### ۴۰ . مهاجرت

د وګړو لخوا د اصلي او زېږېدلو د ځای پرېښودلو او یا د وګړو داخلي ( دهېواد په دننه ) او بېروني ( له یو هېواد څخه بل هېواد ته ) حرکتونو ته مهاجرت وایي . بنایي چې مهاجرت د دوه لاملونو له امله پیدا شي .

الف . تلل : د اقتصادي ، مذهبي او سیاسي عواملو له امله .

ب . راتلل : هغو ځمکو ته چې له وګړو څخه خالي وي ، زړه راښکونکو ځمکو ته ، د ځمکې سطحې لاندې سرچینو شتون او د کار د پیدا کېدو له امله ( ۱۶ : ۵۸۰ ) .

### ۴۱ . نا قانونه حکومت ، خپل سری حکومت

هغه حکومت چې په هغې کې د خلکو پر ژوند ، ازادۍ او د خلکو پر مالونو او شتمنیو قانون کنترول او واک نه لري ( ۳۹ : ۱۵ ) .

**۴۲. نړیوالې اوبه**

د هېواد داخلي اوبه پرته د سمندرونو او بحیرو ټولو هغو اوبو ته ویل کېږي چې د نړۍ ټول هېوادونه ورڅخه په یو ډول ګټه اخېستلی شي (۱۶ : ۵۴۶).

**۴۳. نژاد**

د وګړو ډله چې د طبیعي وراثت او اصالت له مخې د یو ډول ځانګړتیاوو لرونکي وي (۱۶ : ۵۸۱).

**۴۴. نشنلیزم**

نشنلیزم یا ملت پالنه هغه احساس یا ایډیالوژي ده چې د ملت دوستۍ پر بنسټ استواره وي. په ۲۰مه پیړۍ کې د استعمار لاندې هېوادونو زیاترو یې د نشنلیزم په حربې سره ازادي تر لاسه کړه. (۱۶ : ۵۸۱).

**۴۵. هېوادنۍ اوبه (ساحلی اوبه)**

د ساحلي اوبو هغه برخه چې د نړیوالو قوانینو پر بنسټ یې ګاونډیو هېوادونو پورې تړاو پیدا کړی وي. د ملګرو ملتونو د ټولنې د " د سمندرونو د حقوقو کنفرانس " کې چې په ۱۹۸۱م کال کې دایر شو، د هېوادنیو اوبو عرض (سور) یې تر ۱۲ سمندري میل پورې (۲،۲۲ کېلومتره) پورې ټاکل شوی (۱۶: ۵۴۶).

**۴۶. هېواد**

جغرافیایي واحد چې له څو ولایتونو، یا ښارونو څخه جوړ شوی وي او سیاسي لوی واحد یې جوړ کړی وي، دا واحد معمولاً د یو حکومتي سیستم څخه چې د پلازمېنې په نوم وي ؛ پیروي کوي (۱۶: ۵۷۵).

## ماخذونه


۱. اشرفی ریزی، حسن و کاظم پور، زهرا(۱۳۹۱) . **جغرافیای سیاسی اطلاعات ( فاصله های بی فاصله )** . تهران : چاپار

۲. اشوری ، داریوش (  ) . **ملیت وقومیت ایران از امپراتوری به دولت ــ ملت** ؛ ماهنامه ایران فردا ، سال سوم ، شماره ۱۸.

۳. اقبال ، فرشید ( ۱۳۸۷ ) . **مکتب های سیاسی** . تهران : کتابخانه ملی ایران .

۴. امین ، حمید الله (۱۳۹۲) . **جغرافیای سیاسي** .کابل : انتشارات سعید .

۵. . امین ، حمیدالله (۱۳۶۵). **جغرافیای سیاسی** . کابل : انتشارات پوهنتون کابل .

۶. بدیعی ، مرجان و میر احمدي ، فاطمه سادات (۱۳۹۴) . **تحلیل دیدگاه ها درموضوعات نو ظهور در مطالعات مرز**. تهران : دانشگاه تهران

۷. برتون ، رولان (۱۳۸۰) . **قوم شناسی سیاسی** ؛ ترجمه : ناصر فکوهی ؛تهران : نشرنی

۸. بلاکسل ، مارک (۱۳۸۹) . **جغرافیای سیاسی** . مترجمین : محمد رضا ، حافظ نیا. عطا الله ، عبدی . حسین ربیعي اوعباس ، احمدي . تهران : ناشردانشگاهی وعمومي.

۹. بیدار ، کر یم الله (۱۳۸۹) . **دافغانستان سرحدونه** . جلال اباد : گودر خپرندویه ټولنه

۱۰ـ بیدار، کریم الله او اختیار ، هجرت الله ( ۱۳۹۴). **سیاسي جغرافیه** . جلال آباد : یارخپرندویه ټولنه .

۱۱. پورکیوان ، عقیل ( ۱۳۹۳). **آشنایی باعلم سیاست** .مکتب های سیاسی ونهادهای بین المللی . انتشارات الفلاح.

۱۲. پیردشتی، حسن اوکمري ، مریم (۱۳۹۴) . **مفهوم مرز وسرحد وسیر تحولات آن** . تهران : دانشگاه تربیت مدرس ، دبیر جغرافیا آمل.

۱۳. ثاقب ، نقیب الله او تصمیم ، تسبیح الله (۱۳۹۳) . **عمومي اساسي حقوق** . جلا ل آباد : یار خپرندویه ټولنه

۱۴. ثاقب ، نقیب الله (۱۳۸۶) . **عمومي نړیوال حقوقي شخصیتونه** . جلا ل آباد : دساپي د پښتو څېړنو اوپراختیا مرکز .

۱۵. جان ، رورکي او مارک ، بویر ( ۱۳۹۰) . **بین المللي سیاست ته یو ه کتنه** . ژباړن : محمد صدیق ، ظهیر . کندهار: علامه رشاد خپرندویه ټولنه .

۱۶ـ جعفري ، عباس (۱۳۸۴) . **گیتا شناسی نوین کشورها** . تهران : موسسه جغرافیایي وکارتوگرافی گیتاشناسی .

۱۷ـ حافظ نیا ، محمد رضا و کاویانی راد ، مراد ( ۱۳۹۲) . **افقهای جدید در جغرافیای سیاسی** . تهران : سازمان مطالعه و تدوین کتب علوم انسانی دانشگاهها ( سمت ) ، مرکز تحقیق وتوسعه علوم انسانی.

۱۸. حجهّ الاسلام والمسلمین ، امیدی (۱۳۹۳). **جغرافیای سیاسی کشورهای اسلامي** . تهران : موسسه اموزشي وپژوهشی امام خمینی "رح" .

۱۹. رحماني ، محمد شریف (۱۳۸۷) . **اسلامي سیاست پوهنه** . ننگرهار : د افغانستان د ټولنیزې اصلاح او پرمختګ ټولنه.

۲۰ـ رویان ، عبدالقدیر و امیری ، ضیأالحق (۱۳۸۴).**جغرافیای سیاسی جهان** . کابل : انتشارات سعید.

۲۱. ریحانه ، عالم و واثق ، محمود (۱۳۹۴) . مبانی جغرافیای سیاسی از دیدگا ه اسلام با تاکیدبرنهج البلاغه . **فصلنامه پژوهشنامه نهج البلاغه** . سال سوم ، شماره ۱۰، تابستان ۱۳۹۴.

۲۲ـ زاهدي ، احمدزی (۱۳۸۷) . **داسلامي حکومت بنسټونه** . پېښور : ا میر کروړ کتابتون

۲۳ـ ښاد جبارخېل ، حفیظ الله ( ۲۰۰۲) . **اسلامي سیاست نبوت او سیرت** . پېښور : د ساپي د پښتو څېړنو او پراختیا مرکز

۲۴. شکویی ، حسین (۱۳۸۹ ) . **شناخت وفلسفه جغرافیا** . تهران : دانشگاه پیام نور.

۲۵. شهیدي ، نذیر احمد(۲۰۰۵) . **دمخ پر ودې هېوادونو اقتصادي ستونزې** . پېښور : د دانش خپرندويې ټولنې تخنيکي څانګه .

۲۶. صافی ، ودیر( ) . **حقوق بین المللی عمومی** . سازمان مطالعه وتدوین کتب علوم انسانی دانشگا ها.

۲۷. صافی ، ودیر ( ۱۳۹۵) . **نړیوال عمومي حقوق** .ژباړن : امان الله ایمان وردګ . کابل : خپلواک خپرندویه تولنه.

۲۸ـ ظهیر، محمد صدیق ( ۲۰۰۸) . **پولیتیکل سیاینس ته یوه کتنه** . ژباړن : محمد معصوم هوتک . امریکا: ویرجینیا.

۲۹ـ عادل ، عبدالله . او ورین ،امان الله ( ۱۳۹۵) . **اقتصادي اصطلاحات** . جلال آباد: کتاب خپرندویه اداره .

۳۰ـ عزتی ، عزت الله (۱۳۸۶ ) . **ژ یوپولیتیک** . تهران : سازمان مطالعه و تدوین کتب علوم انسانی دانشگاهها ( سمت ) .

۳۱. کاویاني راد ، مراد( ۱۳۹۲) . **پردازش مفهوم " قلمرو " از دیدگاه جغرافیای سیاسی** . تهران : دانشگاه خوارزمي .

۳۲ـ مجتهد زاده ، پیروز (۱۳۹۲) . **جغرافیای سیاسي وسیاست جغرافیای** . تهران : سازمان مطالعه و تدوین کتب علوم انسانی دانشگاهها ( سمت ) ، مرکز تحقیق وتوسعه علوم انسانی.

۳۳ـ معتمد نژاد ، کاظم(۱۳۸۹) . **ارتباطات بین المللی** . ایران : وزارت فرهنګ و ارشاد اسلامي ، دفتر مطالعات وتوسعه رسانه ها.

۳۴ـ موسی زاده ، رضا(۱۳۹۳) . **نړیوال سازمانونه (له نویو زیاتونو سره )** . ژباړن : محمد نظیم ، سمون . ننګرهار : مومند خپرندویه ټولنه .

۳۵ـ موسی زاده ، رضا(۱۳۹۱) . **نړیوال سازمانونه** . ژباړن : محمد نظیم ، سمون . ننګرهار : مومند خپرندویه ټولنه .

۳۶. موسی زاده ، رضا(۱۳۸۷) . **نړیوال سازمانونه** . ژباړن : محمد نظیم ، سمون . ننګرهار : مومند خپرندویه ټولنه .

۳۷ . میرحیدر، دره (۱۳۸۹) . **اصول ومبانی جغرافیای سیاسی** .تهران : سازمان مطالعه و تدوین کتب علومن انسانی دانشگاهها (سمت ) مرکز تحقیق وتوسعه علوم انسانی

۳۸. نوده ، محمد جافر(۱۳۹۱) . **ارتباطات سیاسي** . دانشگاه ګلستان . دانشکده علوم انسانی

۳۹ـ ----------- (۱۳۸۴). **د سیاسي اصطلاحاتو قاموس**. ژباړن : سید عبدالله ، پاچا. پېښور : دانش خپرندویه ټولنه.

# مل پاڼې (ضمیمې)

## لومړۍ مل پاڼه

داسیايي هېوادونو لېښتلیک

| ګڼه | هېواد | پلازمینه | پراخوالی په کېلومتر | په ۲۰۱۷کې نفوس |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | اردن | عمان | ۹۲۳۰۰ | ۶۴۰۷۰۸۵ |
| ۲ | ازبکستان | تاشکند | ۴۴۷۴۰۰ | ۳۱۹۱۰۶۴۱ |
| ۳ | افغانستان | کابل | ۶۵۲۲۲۵ | ۳۵۵۳۰۰۸۱ |
| ۴ | عربي متحده امارات | ابوظبې | ۸۲۸۸۰ | ۹۴۰۰۱۴۵ |
| ۵ | اندونیزیا | جاکارتا | ۱۹۱۹۴۴۰ | ۲۶۶۹۹۱۳۷۹ |
| ۶ | ایران | تهران | ۱۶۴۸۰۰۰ | ۸۱۱۶۲۷۸۸ |
| ۷ | بحرین | منامه | ۶۶۵ | ۱۴۹۲۵۸۴ |
| ۸ | بروناې | باندرا | ۵۷۷۰ | ۴۲۸۶۹۷ |
| ۹ | بنګله دېش | ډاکه | ۱۴۴۰۰۰ | ۱۶۴۶۶۹۷۵۱ |
| ۱۰ | بوتان | تیمپو | ۴۷۰۰۰ | ۸۰۷۶۱۰ |
| ۱۱ | پاکستان | اسلام آباد | ۸۰۳۹۴۰ | ۱۹۷۰۱۵۹۵۵ |
| ۱۲ | تاجکستان | دوشنبه | ۱۴۳۱۰۰ | ۸۹۲۱۳۴۳ |
| ۱۳ | تایلېنډ | بنکاک | ۵۱۴۰۰۰ | ۶۹۰۳۷۵۱۳ |
| ۱۴ | تایوان | تایپه | ۳۵۹۸۰ | ۲۳۶۲۶۴۵۶ |
| ۱۵ | ترکمنستان | عشق آباد | ۴۸۸۱۰۰ | ۵۷۵۸۰۷۵ |
| ۱۶ | ترکیه | انقره | ۷۸۰۵۸۰ | ۸۰۷۴۵۰۲۰ |
| ۱۷ | تیمور شرقي | دیلي | ۱۵۰۰۷ | ۱۲۹۶۳۱۱ |
| ۱۸ | جاپان | توکیو | ۳۷۷۸۳۵ | ۱۲۷۴۸۴۴۵۰ |
| ۱۹ | چین | پیکنګ | ۹۵۹۶۹۶۱ | ۱۴۰۹۵۱۷۳۹۷ |
| ۲۰ | روسیه | مسکو | ۱۷۰۷۵۲۰۰ | ۱۴۳۹۸۹۷۵۴ |
| ۲۱ | سریلانکا | کولمبو | ۶۵۶۱۰ | ۲۰۸۷۶۹۱۷ |
| ۲۲ | سنګاپور | سنګاپور | ۶۹۲۷ | ۵۷۰۸۸۴۴ |
| ۲۳ | سوریه | دمشق | ۱۸۵۱۸۰ | ۱۸۲۶۹۸۶۸ |
| ۲۴ | عراق | بغداد | ۴۳۷۰۷۲ | ۳۸۲۷۴۶۱۸ |
| ۲۵ | عربستان سعودي | ریاض | ۱۹۶۰۵۸۲ | ۳۲۹۳۸۲۱۳ |
| ۲۶ | عمان | مسقط | ۲۱۲۵۴۰ | ۴۶۳۶۲۶۲ |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۲۷ | اسراييل | تل آبیب | ۲۰۲۷۰ | ۸۳۲۱۵۷۰ |
| ۲۸ | فلپاین | مانیلا | ۳۰۰۰۰۰ | ۱۰۴۹۱۸۰۹۰ |
| ۲۹ | قبرس | لفکوزیا | ۹۲۵۰ | ۱۱۷۹۵۵۱ |
| ۳۰ | قرغزستان | بشکیک | ۱۹۸۵۰۰ | ۶۰۴۵۱۱۷ |
| ۳۱ | قزاقستان | آستانه | ۲۷۱۷۳۰۰ | ۱۸۲۰۴۴۹۹ |
| ۳۲ | قطر | دوحه | ۱۱۴۳۷ | ۲۶۳۹۲۱۱ |
| ۳۳ | کمبودیا | پنومین | ۱۸۱۰۴۰ | ۱۶۰۰۵۳۷۳ |
| ۳۴ | کوریاي شمالي | پیونگ یانگ | ۱۲۰۵۴۰ | ۲۵۴۹۰۹۶۵ |
| ۳۵ | کوریا يي جنوبي | سیول | ۹۸۴۸۰ | ۵۰۹۸۲۲۱۲ |
| ۳۶ | کویټ | کویټ | ۱۷۸۲۰ | ۴۱۳۶۵۲۸ |
| ۳۷ | لاوس | ویتنام | ۲۳۶۸۰۰ | ۶۸۵۸۱۶۰ |
| ۳۸ | لبنان | بېروت | ۱۰۴۰۰ | ۶۰۸۲۳۵۷ |
| ۳۹ | مالدیف | ماله | ۳۰۰ | ۴۳۶۳۳۰ |
| ۴۰ | مالیزیا | کولالمپور | ۳۲۹۷۵۰ | ۳۱۶۲۴۲۶۴ |
| ۴۱ | مغولستان | اولان باتور | ۱۵۶۵۰۰۰ | ۳۰۷۵۶۴۷ |
| ۴۲ | میانمار(برما) | رنګون | ۶۷۸۵۰۰ | ۵۳۳۷۰۶۰۹ |
| ۴۳ | نیپال | کتمندو | ۱۴۰۸۰۰ | ۲۹۳۰۴۹۹۸ |
| ۴۴ | ویتنام | هانوی | ۳۲۹۵۶۰ | ۹۵۵۴۰۸۰۰ |
| ۴۵ | هند | دهلی جدید | ۳۲۸۷۵۹۰ | ۱۳۳۹۱۸۰۱۲۷ |
| ۴۶ | یمن | صنعا | ۵۲۷۹۷۰ | ۲۸۲۵۰۴۲۰ |

## دویمه مل پاڼه

## داروپایي هېوادونو لښتلیک

| ګڼه | هېواد | پلازمینه | پراخوالی په کېلومتر | په ۲۰۱۷کې نفوس |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | اتریش (استریا) | ویانا | ۸۳۸۵۸ | ۸۷۳۵۴۵۳ |
| ۲ | ارمنستان | ایروان | ۲۹۸۰۰ | ۲۹۳۰۴۵۰ |
| ۳ | استونیا | تالین | ۴۵۲۲۶ | ۱۳۰۹۶۳۲ |
| ۴ | انګلینډ (انګلستان) | لندن | ۲۴۴۸۲۰ | ۶۶۱۸۱۵۸۵ |
| ۵ | ایټالیا | روم | ۳۰۱۲۳۰ | ۵۹۳۵۹۹۰۰ |
| ۶ | آیرلینډ | دوبلن | ۷۰۲۸۰ | ۴۷۶۱۶۵۷ |
| ۷ | اذربایجان | باکو | ۸۶۶۰۰ | ۹۸۲۷۵۸۹ |
| ۸ | آیسلینډ | ریکجاویک | ۱۰۳۰۰ | ۳۳۵۰۲۵ |
| ۹ | البانیا | تیرانا | ۲۸۷۴۸ | ۲۹۳۰۱۸۷ |
| ۱۰ | المان | برلین | ۳۵۷۰۲۱ | ۸۲۱۱۴۲۲۴ |
| ۱۱ | بلجیم | بروکسل | ۳۰۵۱۰ | ۱۱۴۲۹۳۳۶ |
| ۱۲ | بلغاریه (بلغارستان) | صوفیه | ۱۱۰۹۱۰ | ۷۰۸۴۵۷۱ |
| ۱۳ | بوسنیا هرزه ګوینا | سارایوو | ۵۱۱۲۹ | ۳۵۰۷۰۱۷ |
| ۱۴ | بلاروس | مینسک | ۲۰۷۶۰۰ | ۹۴۶۸۳۳۸ |
| ۱۵ | پرتګال | لزبن | ۹۲۳۹۱ | ۱۰۳۲۹۵۰۶ |
| ۱۶ | پولنډ (لهستان) | وارسا | ۳۱۲۶۸۵ | ۳۸۱۷۰۷۱۲ |
| ۱۷ | چک | پراګ | ۷۸۸۶۶ | ۱۰۶۱۸۳۰۳ |
| ۱۸ | ډنمارک | کوپنهاګن | ۴۳۰۹۴ | ۵۷۳۳۵۵۱ |
| ۱۹ | روسیه | ماسکو | ۱۷۰۷۵۲۰۰ | ۱۴۳۹۸۹۷۵۴ |
| ۲۰ | رومانیه | بوخارست | ۲۳۷۵۰۰ | ۱۹۶۷۹۳۰۶ |
| ۲۱ | سان مارینو | سان مارینو | ۶۱۲ | ۳۳۴۰۰ |
| ۲۲ | سلواکیا | براتیسلاوا | ۴۸۸۴۵ | ۵۴۴۷۶۶۲ |
| ۲۳ | سلوانیا | لوبلیانا | ۲۰۲۷۳ | ۲۰۷۹۹۷۶ |
| ۲۴ | سوېډن | ستاکهلم | ۴۴۹۹۶۴ | ۹۹۱۰۷۰۱ |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۲۵ | سویس (سویتزرلیند) | برن | ۴۱۲۹۰ | ۸۴۷۶۰۰۵ |
| ۲۶ | فرانسه | پاریس | ۵۴۷۰۳۰ | ۶۴۹۷۹۵۴۸ |
| ۲۷ | فنلیند | هلسنکي | ۳۳۷۰۳۰ | ۵۵۲۳۲۳۱ |
| ۲۸ | قبرس | نیکوزیا | ۹۲۵۰ | ۱۱۰۲۶۷۷ |
| ۲۹ | کروشیا | زاگرب | ۵۶۵۴۲ | ۴۱۸۹۳۵۳ |
| ۳۰ | کوسوو | پرستن | ۱۰۸۸۷ | ۱۸۱۵۰۴۸ |
| ۳۱ | گرجستان (جورجیا) | تبلیسي | ۶۹۷۰۰ | ۶۲۲۵۶۷ |
| ۳۲ | لتویا | ریگا | ۶۴۵۸۹ | ۱۹۴۹۶۷۰ |
| ۳۳ | لختن شتاین | فادوز | ۱۶۰ | ۳۷۹۲۲ |
| ۳۴ | لگسمبورگ | لگسمبورگ | ۲۵۸۶ | ۵۸۳۴۵۵ |
| ۳۵ | لتوانیا | ویلینوس | ۶۵۲۰۰ | ۲۸۹۰۲۹۷ |
| ۳۶ | مالتا | والینا | ۳۱۶ | ۴۳۰۸۳۵ |
| ۳۷ | مقدونیه | اسکوپیه | ۲۵۳۳۳ | ۲۰۸۳۱۶۰ |
| ۳۸ | مولداویا | کشینوف | ۳۳۸۴۳ | ۴۰۵۱۲۱۲ |
| ۳۹ | موناکو | موناکو | ۱۹۵ | ۳۸۶۹۵ |
| ۴۰ | ناروی | اسلو | ۳۲۴۲۲۰ | ۵۳۰۵۳۸۳ |
| ۴۱ | واتیکان | واتیکان | ۴۴،۰ | ۷۹۲ |
| ۴۲ | هالند | امستردام | ۴۱۵۲۶ | ۱۷۰۳۵۹۳۸ |
| ۴۳ | هسپانیه | مادرید | ۵۰۴۷۸۲ | ۴۶۳۵۴۳۲۱ |
| ۴۴ | اندورا | اندورا | ۴۶۸ | ۷۶۹۶۵ |
| ۴۵ | هنگری (مجارستان) | بوداپست | ۹۳۰۳۰ | ۹۷۲۱۵۵۹ |
| ۴۶ | یوکراین | کیف | ۶۰۳۷۰۰ | ۴۴۳۳۳۹۴۷ |
| ۴۷ | سربیا | بلگراد | ۱۰۲۳۵۰ | ۸۷۹۰۵۷۴ |
| ۴۸ | یونان | اتن | ۱۳۱۹۴۰ | ۱۱۱۵۹۷۷۳ |

## درېيمه مل پاڼه

## دافريقايي هېوادونو لښتليک

| ګڼه | هېواد | پلازمینه | پراخوالی په کېلومتر | په ۲۰۱۷کې نفوس |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | انګولا | لواندا | ۱۲۴۶۷۰۰ | ۲۹۷۸۴۱۹۳ |
| ۲ | ایتوپیا | ادیسه بابا | ۱۱۲۷۱۲۷ | ۱۰۴۹۵۷۳۴۸ |
| ۳ | اریتریا | اسمره | ۱۲۱۳۲۰ | ۵۰۶۸۸۳۱ |
| ۴ | افریقای جنوبي | پرتوریا | ۱۲۱۹۹۱۲ | ۵۶۷۱۷۱۵۶ |
| ۵ | افریقای مرکزي | بانګي | ۶۲۲۹۸۴ | ۴۶۵۹۰۸۰ |
| ۶ | الجزایر | الجزیره | ۲۳۸۱۷۰۰ | ۳۴۵۸۶۱۸۴ |
| ۷ | بنین | پورتونو | ۱۱۲۶۲۰ | ۱۱۱۷۵۶۹۲ |
| ۸ | بوتسوانا | ګابرون | ۶۰۰۳۷۰ | ۲۲۹۱۶۶۱ |
| ۹ | بورکینافاسو | وګادوګو | ۲۷۴۲۰۰ | ۱۹۱۹۳۳۸۲ |
| ۱۰ | بوروندی | بوجومبورا | ۲۷۸۳۰ | ۱۰۸۶۴۲۴۵ |
| ۱۱ | تانزانیا | دارالسلام | ۹۴۵۰۸۷ | ۵۷۳۱۰۰۱۹ |
| ۱۲ | توګو | لومي | ۵۶۷۸۵ | ۷۷۹۷۶۹۴ |
| ۱۳ | تونس | تونس | ۱۶۳۶۱۰ | ۱۱۵۳۲۱۲۷ |
| ۱۴ | جیبوتي | جیبوتي | ۲۳۰۰۰ | ۹۵۶۹۸۵ |
| ۱۵ | چاد | انجامنا | ۱۲۸۴۰۰۰ | ۱۴۸۹۹۹۹۴ |
| ۱۶ | رواندا | کیګالي | ۲۶۳۳۸ | ۱۲۲۰۸۴۰۷ |
| ۱۷ | زمبیا | لوساکا | ۷۵۲۶۱۴ | ۱۷۰۹۴۱۳۰ |
| ۱۸ | زیمبابوی | هراری | ۳۹۰۵۸۰ | ۱۶۵۲۹۹۰۴ |
| ۱۹ | سایوتومه و پرنسیب | سایوتومه | ۱۰۰۱ | ۲۰۴۳۲۷ |
| ۲۰ | ساحل عاج | یاموسوکرو | ۳۲۲۴۶۰ | – |
| ۲۱ | سنګال | داکار | ۱۹۶۱۹۰ | ۱۵۸۵۰۵۶۷ |
| ۲۲ | سوازیلنډ | امبابان | ۱۷۳۶۳ | ۱۳۶۷۲۵۴ |
| ۲۳ | سوډان جنوبي | جوبا | ۲۵۰۵۸۱۳ | ۱۲۵۷۵۷۱۴ |
| ۲۴ | سوډان شمالي | خرطوم | – | ۴۰۵۳۳۳۰ |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۲۵ | سومالیا | موگادیشو | ۶۳۷۶۵۷ | ۱۴۷۴۲۵۲۳ |
| ۲۶ | سیرالیون | فری‌تاون | ۱۷۷۴۰ | ۷۵۵۷۲۱۲ |
| ۲۷ | سیشلز | ویکتوریا | ۴۵۵ | ۹۴۷۳۷ |
| ۲۸ | صحرای غربي | العیون | ۲۶۶۰۰۰ | ۵۵۲۶۲۸ |
| ۲۹ | کامرون | یایونده | ۴۷۵۴۴۰ | ۲۴۰۵۳۷۲۷ |
| ۳۰ | کانگو | برازاویل | ۳۴۲۰۰۰ | ۵۲۶۰۷۵۰ |
| ۳۱ | زایر | کینشاسا | ۲۳۴۵۴۱۰ | ۷۰۹۱۶۴۳۹ |
| ۳۲ | کینیا | نایروبیا | ۵۸۲۶۵۰ | ۴۹۶۹۹۸۶۲ |
| ۳۳ | کومورو | موروني | ۲۱۷۰ | ۸۱۳۹۱۲ |
| ۳۴ | کیپ‌ورد | پرایا | ۴۰۳۳ | ۵۴۶۳۸۸ |
| ۳۵ | گانا | اکرا | ۲۳۹۴۶۰ | ۲۸۸۳۳۶۲۹ |
| ۳۶ | گابون | لایبرویل | ۲۶۷۶۶۷ | ۲۰۲۵۱۳۷ |
| ۳۷ | گامبیا | بانجول | ۱۱۳۰۰ | ۲۱۰۰۵۶۸ |
| ۳۸ | گیني | کوناکری | ۲۴۵۸۵۷ | ۱۲۷۱۷۱۷۶ |
| ۳۹ | گیني استوایي | مالابو | ۲۸۰۵۱ | ۱۲۶۷۶۸۹ |
| ۴۰ | گیني بیساو | بیساو | ۳۶۱۲۰ | ۱۸۶۱۲۸۳ |
| ۴۱ | لیسوتو | ماسرو | ۳۰۳۵۵ | ۲۲۳۳۳۳۹ |
| ۴۲ | لایبریا | مونرویا | ۱۱۱۳۷۰ | ۴۷۱۹۰۶ |
| ۴۳ | لیبیا | ترابلس (تریپولي) | ۱۷۴۹۵۴۰ | ۶۳۷۴۶۱۶ |
| ۴۴ | مدغاسکر | انتانانا ریف | ۵۸۷۰۴۰ | ۲۵۵۷۰۸۹۵ |
| ۴۵ | مالاوي | لیلانگوي | ۱۱۸۴۸۰ | ۱۸۶۲۲۱۰۴ |
| ۴۶ | مالي | باماکو | ۱۲۴۰۰۰۰ | ۱۸۵۴۱۹۸۰ |
| ۴۷ | مصر | قاهره | ۱۰۰۱۴۵۰ | ۹۷۵۵۳۱۵۱ |
| ۴۸ | مراکش (مغرب) | رباط | ۴۴۶۵۵۰ | ۳۵۷۳۹۵۸۰ |
| ۴۹ | موریتانیا | نواکچوت | ۱۰۳۰۷۰۰ | ۴۴۲۰۱۸۴ |
| ۵۰ | موریشس | پورت‌لویی | ۲۰۴۰ | ۱۲۶۵۱۳۸ |
| ۵۱ | موزامبیق | ماپوتو | ۸۰۱۵۹۰ | ۲۹۶۶۸۸۳۴ |
| ۵۲ | نامیبیا | ویندهوک | ۸۲۵۴۱۸ | ۲۵۳۳۷۹۴ |
| ۵۳ | ناورو | یارن | ۲۱ | ۹۲۶۷ |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۵۴ | نایجر | نیامي | ۱۲۶۷۰۰۰ | ۲۱۴۷۷۳۴۸ |
| ۵۵ | نایجریا | آبوجا | ۹۲۳۷۶۸ | ۱۹۰۸۸۶۳۱۱ |
| ۵۶ | یوګاندا | کمپالا | ۲۳۶۰۴۰ | ۴۲۸۶۲۹۵۸ |

## څلورمه ملپاڼه

## دامریکایي هېوادونو لښتلیک

| ګڼه | هېواد | پلازمینه | پراخوالی په کېلومتر | په۲۰۱۷کې نفوس |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | ارجنټاین | بونس آیرس | ۲۷۶۶۸۹۰ | ۴۴۲۷۱۰۴۱ |
| ۲ | اکوادور | کیوتو | ۲۸۳۵۶۰ | ۱۶۶۲۴۸۵۸ |
| ۳ | انتیګوا اباربودا | سنت جانز | ۴۴۳ | ۱۰۲۰۱۲ |
| ۴ | ایالات متحده امریکا | واشنګټن | ۹۶۲۹۰۹۱ | ۳۲۴۴۵۹۴۶۳ |
| ۵ | باربادوس | بریج تاون | ۴۳۱ | ۲۸۵۷۱۹ |
| ۶ | بهاما | ناسایو | ۱۳۹۴۰ | ۳۹۵۳۶۱ |
| ۷ | برازیل | برازیلیا | ۸۵۱۱۹۶۵ | ۲۰۸۲۸۸۲۷۸ |
| ۸ | بلیز | بلموپان | ۲۲۹۶۶ | ۳۷۴۶۸۱ |
| ۹ | بولیویا | لاپاز | ۱۰۹۸۵۸۰ | ۱۱۰۵۱۶۰۰ |
| ۱۰ | پاراګوای | آسنشن | ۴۰۶۷۵۰ | ۶۸۱۱۲۹۷ |
| ۱۱ | پانامه | پانامه | ۷۸۲۰۰ | ۴۰۹۸۵۸۷ |
| ۱۲ | پیرو | لیما | ۱۲۸۵۲۲۰ | ۳۲۱۶۵۴۸۵ |
| ۱۳ | ترینیداد اوتوباکو | پورت آف سپین | ۵۱۲۸ | ۱۳۶۸۱۲۵ |
| ۱۴ | جمیکا | کینګستون | ۱۰۹۱۱ | ۲۸۹۰۲۹۹ |
| ۱۵ | چیلي | سانتیاګو | ۷۵۶۹۵۰ | ۱۸۰۵۴۷۲۶ |
| ۱۶ | دومینکا | روسو | ۷۵۴ | ۷۳۹۲۵ |
| ۱۷ | جمهوری دومنیکن | سانتادومنګو | ۴۸۷۳۰ | ۱۰۷۶۶۹۹۸ |
| ۱۸ | السلوادور | سان سلوادور | ۲۱۰۴۰ | ۶۳۷۷۸۵۳ |
| ۱۹ | سنت کیتس ونیوس | بیستری | ۲۶۱ | ۵۵۳۴۵ |
| ۲۰ | سنت لوسیا | کاستریس | ۶۱۶ | ۱۷۸۸۴۴ |
| ۲۱ | سنت وینسنت وګرنادین | کنګستاون | ۳۸۹ | ۱۰۹۸۹۷ |
| ۲۲ | سورینام | پاراماریبو | ۱۶۳۲۷۰ | ۵۶۳۴۰۲ |
| ۲۳ | کوستاریکا | سان خوزه | ۵۱۱۰۰ | ۴۹۰۵۷۶۹ |
| ۲۴ | کولمبیا | بوګاتا | ۱۱۳۸۹۱۰ | ۴۹۰۶۵۶۱۵ |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۲۵ | کاناډا | آتاوا | ۹۹۸۴۶۴۰ | ۳۶۶۲۴۱۹۹ |
| ۲۶ | کیوبا | هاوانا | ۱۱۰۸۶۰ | ۱۱۴۸۴۶۳۶ |
| ۲۷ | ګرینلینډ | ګودتاب | – | ۵۶۴۸۰ |
| ۲۸ | ګرینادا | سنت جارجز | ۳۴۴ | ۱۰۷۸۲۵ |
| ۲۹ | ګواتیمالا | ګواتیمالا | ۱۰۸۸۹۰ | ۱۶۹۱۳۵۰۶ |
| ۳۰ | ګیانا | جارج تاون | ۲۱۴۹۶۹ | ۷۷۷۸۵۹ |
| ۳۱ | مکسیکو | مکسیکوسیتي | ۱۹۷۲۵۵۰ | ۱۲۹۱۶۳۲۷۶ |
| ۳۲ | نیکاراګوا | ماناګوا | ۱۲۹۴۹۴ | ۶۲۱۷۵۸۱ |
| ۳۳ | وینزویلا | کاراکاس | ۹۱۲۰۵۰ | ۳۱۹۷۷۰۶۵ |
| ۳۴ | هایتي | پورتوپرنس | ۲۷۷۵۰ | ۱۰۹۸۱۲۲۹ |
| ۳۵ | هندوراس | تګوسګالپا | ۱۱۲۰۹۰ | ۹۲۶۵۰۶۷ |
| ۳۶ | یوروګوای | مونتیویډو | ۱۷۶۲۲۰ | ۳۴۵۶۷۵۰ |

## پنځمه ملپانه

## داستراليا او اقيانوسيې هېوادونو لښتليک

| ګڼه | هېواد | پلازمينه | پراخوالی په کيلومتر | په ۲۰۱۷کې نفوس |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | استراليا | کانبيرا | ۲۹۸۰۰ | ۲۴۴۵۰۵۶۱ |
| ۲ | پاپوانيوګيني | پورت موريس | ۴۶۲۸۴۰ | ۸۲۵۱۱۶۲ |
| ۳ | پالايو | کورور | ۴۵۸ | ۱۲۷۲۹ |
| ۴ | تونګا | توکوالورا | ۷۴۸ | ۱۰۸۰۲۰ |
| ۵ | تووالو | فونافوتي | ۲۶ | ۱۱۱۹۲ |
| ۶ | ساموای غربی | آپيا | ۲۹۴۴ | ۱۹۶۴۴۰ |
| ۷ | نوی زيلاند | ولينګتون | ۲۶۸۶۸۰ | ۴۷۰۵۸۱۸ |
| ۸ | سليمان جزيری | هونيارا | ۲۸۴۵۰۰ | ۶۱۱۳۴۳ |
| ۹ | فيجي | سووا | ۱۸۲۷۰ | ۹۰۵۵۰۲ |
| ۱۰ | کريباتي (کريباس) | تاراوا | ۸۱۱ | ۱۱۶۳۹۸ |
| ۱۱ | مارشال جزيرې | ماجورو | ۱۸۳۳ | ۵۳۱۲۷ |
| ۱۲ | ميکرونيزيا | پاليکير | ۷۰۲ | ۱۰۵۵۴۴ |
| ۱۳ | نايورو | يارن | ۲۱ | ۱۱۳۵۹ |
| ۱۴ | وانو آتو | وانوآتو | ۱۲۲۰۰ | ۲۷۶۲۴۴ |

(۴ : ۲۰۷–۲۱۴)او

http://www.worldometers.info/geography/largest-countries-in-the-world/